


# كشف البارى
عمّا فى
# صحيح البخارى

تصنيف
حضرت مولانا سلیم اللہ خان
سابق شیخ الحدیث جامعہ فاروقیہ کراچی

مولانا شاہ فیصل

وحاجی

# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

کتاب الطب، کتاب اللباس، کتاب الادب

**تالیف** ← صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ← مولانا ابن الحسن عباسي استاذ جامعه فاروقیه کراچی

**ترجمه** ← مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد** ⑭

① داحادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دګرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ دحدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې داحدیث په کوم کوم ځائې کښې دي.

**خورونکی** **فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور**

موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست مضامين

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## كِتَابُ اللِّبَاسِ

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| صفحه | مضمون | شمیره |
|---|---|---|



## ۸۱=کتاب الأدب

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

....................

# کتاب الطب

## (الاحادیث: ۵۳۵۴ ـ ۵۴۴۵)

په کتاب الطب کښې اووه پنځوس (۵۷) بابونه دی چه په دې کښې د څليريشتو (۲۴) بابونو تشریح ددې نه په مخکینی جلد کښې تیره شوې ده، په دې جلد کښې د باقی درې دیرشو بابونو تشریح ده.

## ۲۵ = باب ذات الجنب

[۵۳۸۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَتَّابُ بْنُ بَشِيرٍ عَنْ إِسْحَاقَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ أُمَّ قَيْسٍ بِنْتَ مِحْصَنٍ وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ الْأُوَلِ اللَّاتِي بَايَعْنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ أُخْتُ عُكَاشَةَ بْنِ مِحْصَنٍ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِابْنٍ لَهَا قَدْ عَلَّقَتْ عَلَيْهِ مِنَ الْعُذْرَةِ فَقَالَ اتَّقُوا اللَّهَ عَلَى مَا تَدْغَرُونَ أَوْلَادَكُمْ بِهَذِهِ الْأَعْلَاقِ عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْعُودِ الْهِنْدِيِّ فَإِنَّ فِيهِ سَبْعَةَ أَشْفِيَةٍ مِنْهَا ذَاتُ الْجَنْبِ يُرِيدُ الْكُسْتَ يَعْنِي الْقُسْطَ قَالَ وَهِيَ لُغَةٌ [ر: ۵۳٦۸]

[۵۳۸۹] حَدَّثَنَا عَارِمٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ قَالَ قُرِئَ عَلَى أَيُّوبَ مِنْ كُتُبِ أَبِي قِلَابَةَ مِنْهُ مَا حَدَّثَ بِهِ وَمِنْهُ مَا قُرِئَ عَلَيْهِ وَكَانَ هَذَا فِي الْكِتَابِ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ وَأَنَسَ بْنَ النَّضْرِ كَوَيَاهُ وَكَوَاهُ أَبُو طَلْحَةَ بِيَدِهِ وَقَالَ عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَذِنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ بَيْتٍ مِنَ الْأَنْصَارِ أَنْ يَرْقُوا مِنَ الْحُمَةِ وَالْأُذُنِ قَالَ أَنَسٌ كُوِيتُ مِنْ ذَاتِ الْجَنْبِ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَيٌّ وَشَهِدَنِي أَبُو طَلْحَةَ وَأَنَسُ بْنُ النَّضْرِ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأَبُو طَلْحَةَ كَوَانِي

لکه چه وړاندې تیر شویدی ذات الجنب هر هغه درد ته وائی چه د انسان په یو اړخ کښې راپیدا شی

**د ذات الجنب قسمونه:** حافظ ابن حجر فرمائی : د ذات الجنب دوه قسمه دی :

① یو قسم د ورم ( پړسیدو ) په شکل کښې وی چه د انسان د پختو په دننه پتو کښې پړسیدل راشی چه د هغې په وجه مریض په پنځو تکلیفونو کښې مبتلا وی ، تبه ، ټوخې ، نخس (نمونیا) د سا تنګیدل ، د نبض منشاری (پړسیدل ، پریکیدل) ، د ذات الجنب دا خطرناک قسم دې او نبی کریم ﷺ ددې باره کښې فرمائلې دی : " **ماکان الله لیسلطها علی** " ([1]) یعنی الله تعالی به دا په ما نه مسلط کوی

② د ذات الجنب دویم قسم دهغه درد په صورت کښې وی چه د ګیس په وجه د سړی په تشی کښې رااوچتیږی ، په حدیث کښې د ذات الجنب نه دا دویم قسم مراد دې ، ځکه چه هندوستانی عود هم د دې دویم قسم دپاره مفید دې ځکه چه دا ګیس لرې کوی او باطنی اندامونو ته طاقت ورکوی ([2])

خو که ړومبې قسم د بلغم په وجه پیدا شوے وی نو دې صورت کښې هم هندوستانې عود فائده ورکوې ([3])

---

[1]) ۲۱۲\۱۰ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۴۲)

[2]) فتح الباری : ۲۱۲\۱۰ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۴۲ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۵۱ )

[3]) فتح الباری : ۲۱۲\۱۰ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۴۳ )

د باب دویم روایت د امام بخاری رحمه الله د شیخ عارم دې ، د دوی نوم محمد بن الفضل دې (۱)دې د حماد بن زید نه نقل کوی :

قرئ على أيوب من كتب أبي قلابة منه ما حدث به ومنه ما قرئ عليه ، وكان هذا في الكتاب

د حضرت ایوب سختیانی رحمه الله سره د حضرت ابو قلابه عبد الله بن زید جرمی لیکلے شوے د احادیثو مجموعه وه ، ایوب به کله کله ددې مجموعې نه احادیث په خپله لوستل او خلقو ته به ئې اورول او کله به بل ویلے او ده به اوریدل ، دې حدیث هم په دې مجموعه کښې وو ـ

روایت کښې دی چه حضرت ابو طلحه (زید بن سهل) او حضرت انس بن النضر (د حضرت انس بن مالك تره) حضرت انس ئې اوداغلو او داغ کار حضرت ابو طلحه اوکړو -

وقال عباد بن منصور عن أيوب عن أبي قلابة عن أنس بن مالك قال: أذن رسول الله صلى الله عليه وسلم لأهل بيت من الأنصار أن يرقوا من الحمة والأذن

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی : چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د انصارو یو کور والا ته اجازت ورکړو چه دوی د زهرو او د غوږونو د درد دم دې کوی

دصحیح مسلم په روایت کښې دی چه دا د عمرو بن حزم کور والا وو (۲)

وړاندے حضرت انس فرمائی : څه اوداغلې شوم ، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ژوندے وو حضرت ابو طلحه ، حضرت انس بن نضراو زیدبن ثابت رضی الله عنهم موجود وو

امام بخاری رحمه الله د عباد بن منصور دا تعلیق څکه ذکر کړو چه دیکښې حضرت انس تصریح کړې ده چه څه د ذات الجنب د بیمارئ په وجه اوداغلې شوم ، دینه وړاندے د عارم په روایت کښې د داغولو ذکر خو وو خو د " ذات الجنب" ذکر نه وو ،د عباد بن منصور په روایت کښې ددې وضاحت اوشو

**عباد بن منصور:** ددوی کنیت ابومسلمه دې او صحیح بخاری کښې دده صرف هم دا یو حدیث موجود دې (۳)دې په کبار تبع تابعینو کښې دې ائمه د جرح او د تعدیل په ده جرح کړیده چه ده تدلیس کولو ، د دوی حافظه متاثر شوې وه (۴)یحيي بن قطان فرمائی : چه کله مونږ ده لره اولیدلو نو ده ته حدیثونه یاد نه وو پاتې (۵)

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۲۱۲ ارشاد الساری : ۱۲\۴۴۳، عمدة القاری ۲۱\۲۵۲)

۲) صحیح مسلم ، کتاب السلام ، باب استحباب الرقية من العين و النملة و الحمة و النظرة : ۴\۱۷۲۶ ( رقم الحديث : ۲۱۹۹ )

۳) فتح الباری : ۱۰\۳۱۲ ، دارنګه اوګورئ تهذیب الکمال : ۱۴\۱۵۶ و تهذیب التهذیب : ۵\۱۰۳ )

۴) فتح الباری : ۱۰\۲۱۳ لکه دے باره کښې علامه بن حجر فرمائی " قال مهنأ عن أحمد كانت أحاديثه منكرة و كان قدريا و كان يدلس .... و قال الجوزجاني : و كان يرى برأيهم و كان سيئ الحفظ و ( تهذيب التهذيب : ۵\۱۰۵ ) )

۵) تهذیب الکمال : ۱۴\۱۵۸ ، تهذیب التهذیب : ۵\۱۰۴ )

ابن عدى فرمائى : په مجموعى لحاظ سره دده حديثونه ليكلے كيدې شى (۱) بعضو ده لره مطلقا ضعيف ګرځولې دې (۲)
به هرحال امام بخارى رحمه الله دده يو تعليق په صحيح بخارى كښې ذكر كړېدې ، دا تعليق ابويعلې موصول نقل كړېدې (۳)
**قوله:** أن يرقوا من الحمة والأذن : ابن بطال رحمه الله فرمائى: د اذن نه مراد د غوږ درد دې: أى رخص فى رقية الأذن، إذا كان بها وجع (۴)
د داغولو متعلق تفصيلى كلام تير شويدې او د دم متعلق تفصيل څو بابونه وړاندے را روان دې ـ

## ۲۲= باب حرق الحصير ليسد به الدم

[۵۳۹۰] حدثني سعيد بن عفير حدثنا يعقوب بن عبد الرحمن القاري عن أبي حازم عن سهل بن سعد الساعدي قال لما كسرت على رأس رسول الله صلى الله عليه وسلم البيضة وأدمي وجهه وكسرت رباعيته وكان علي يختلف بالماء في المجن وجاءت فاطمة تغسل عن وجهه الدم فلما رأت فاطمة عليها السلام الدم يزيد على الماء كثرة عمدت إلى حصير فأحرقتها وألصقتها على جرح رسول الله صلى الله عليه وسلم فرقأ الدم [ر: ۲۴۰]
دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د وينې د بندولو دپاره د پوزى سوزول بيان كړيدى ، ابن بطال رحمه الله فرمائى چه " حرق الحصير " صحيح نه دې ، صحيح " إحراق الحصير " دې ، د إحراق معنى د سوزولو راځى ، يا د باب د تفعيل نه " تحريق الحصير " كيدل پكار دى خكه چه د مجرد " حرق " معنى د سوزولو نه راځى (۵)
خو علامه عينى رحمه الله " حرق " صحيح ګرځولې دې او وېلے دى چه ددې معنى د سوزولو راځى او چه كله د باب افعال يا د تفعيل نه وى نو دغه وخت ددې په معنى سوزولو كښې د مبالغه راځى (۶)
روايت د باب په كتاب الجهاد او كتاب المغازى كښې تير شويدې چه په غزوه احد كښې د حضور اكرم ﷺ سر مبارك زخمى شوې وو ، حضرت على رضي الله عنه به ډال كښې اوبه راوړلې اوحضرت فاطمه رضي الله عنها به د مخ مبارك نه وينه پاكوله ، خو چه كله ئې اوليدل چه وينه نه اودريږى بلكه د اوبو په وجه نوره هم زياتيږى نو يو پوزے ئې راوړو او وے سوزولو بيا ددې

۱) تهذيب الكمال : ۱۴\۱۶۰ ، تهذيب التهذيب : ۵\۱۰۴ ) )
۲) تهذيب التهذيب : ۵\۱۰۵ ، طبقات بن سعد : ۷\۲۷۰ )
۳) فتح البارى : ۱۰\ عمدة القارى : ۲۱\۲۵۳ ، ارشاد السارى : ۱۲\۲۴۳ )
۴) فتح البارى : ۱۰\ عمدة القارى : ۲۱\۲۵۳)
۵) فتح البارى : ۱۰\۲۱۴ عمدة القارى : ۲۱\۲۵۳) .
۶) عمدة القارى : ۲۱\۲۵۳ )

سوزيدلي ايره ئې په زخم اولګوله نو وينه بنده شوه
د څه څيز ايره هم چه وى ددې خصوصيت دا دې چه کُه دا په زخم اولګولې شي نو وينه اودريږى ، امام ترمذى رحمه الله په دې حديث باندې د " تداوى بالرماد " عنوان لګولې دې او ترجمه ئې کړيده ، (۱)

## ۲۷- بَابُ الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ

[۵۳۹۱] حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَأَطْفِئُوهَا بِالْمَاءِ قَالَ نَافِعٌ وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَقُولُ اكْشِفْ عَنَّا الرِّجْزَ [۳۰۹۱]

[۵۳۹۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ أَنَّ أَسْمَاءَ بِنْتَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَتْ إِذَا أُتِيَتْ بِالْمَرْأَةِ قَدْ حُمَّتْ تَدْعُو لَهَا أَخَذَتْ الْمَاءَ فَصَبَّتْهُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ جَيْبِهَا قَالَتْ وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا أَنْ نَبْرُدَهَا بِالْمَاءِ (۲)

[۵۳۹۳] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمَّى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَابْرُدُوهَا بِالْمَاءِ [ر: ۳۰۹۰]

[۵۳۹۴] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْحُمَّى مِنْ فَوْحِ جَهَنَّمَ فَابْرُدُوهَا بِالْمَاءِ [ر: ۳۰۸۹]

ړومبې روايت د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما دې ، حضور اکرم ﷺ فرمائلي دى: تبه د جهنم يو شعله ده دې وجه نه دا په اوبو سره مړه کړئ
دويم روايت کښې حضرت اسماء بنت ابى بکر رضي الله عنهما ته به چه کله يو ښځه په حالت د تبه کښې د دعا دپاره راوستې شوه نو دې به اوبه راخستې او دا به ئې ددې ښځې په ګريبان کښې اچولې او دا به ئې فرمائيل : رسول لله ﷺ به مونږ ته د اوبو په ذريعه ددې د يخولو حکم کولو ، احاديثو کښې درې قسمه الفاظ استعمال شويدې ، فيح ، فوح او فور ، د درې واړو يو معنى ده ، تاو ، بړاس د اور ، شعله (۳)
الحمى من فيح جهنم نه يا خو حقيقى معنى مراد ده چه د تبې تاو د جهنم يوحصه او شعله ده چه خلق ددې تاو محسوس کړى نو د جهنم د ګرمئ او د عذاب څه اندازه اولګوى او يا

---

۱) سنن الترمذى : کتاب الطب : باب التداوى بالرماد : ۴\۳۱۱ ( رقم الحديث : ۲۰۸۵ )

۲) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب لکل داء دواء و استحباب التداوى : ۴\۱۷۳۲ ( رقم الحديث : ۲۲۱۱ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الطب ، باب تبريد الحمّى بالماء : ۴\۳۷۹ ( رقم الحديث : ۷۶۱۰ ) و أخرجه ابن ماجه فى کتاب الطب ، باب الحمّى من فيح جهنم فأبردوها بالماء : ۲\۱۱۴۹ ( رقم الحديث : ۳۴۷۱)

۳) فتح البارى : ۱۰\۲۱۵ عمدة القارى : ۲۱\۲۵۴)

حقیقي معنی مراد نه ده ، بلکه دا په طور د مجاز او د تشبیه وئلې شویدې او مطلب دا دې چه د تبې تاو د جهنم د ګرمۍ او د تاو سره مشابه دې (۱)
**قوله: فأبردوها بالماء:** دلته خو مطلقا د " ماء " ذکر دې ، په بعض روایتونو کښې د "ماء زمزم " الفاظ راغلې دی ، لکه امام نسائی ، ابن حبان ، او امام حاکم د " عفان عن همام " په طریق سره روایت نقل کړیدې ، دیکښې دي "فأبردوها بماء زمزم " (۲) بهرحال د مکې د خلقو دپاره خو هم دا بهتر ده چه آب زمزم استعمال کړی ځکه چه دا دوی ته هر وخت ملاویږی خو د باقی خلقو دپاره عامې اوبه هم فائده ورکوی
**یو اشکال او ددې جواب:** دلته چا ته دا اشکال کیدې شی چه د تبې په بعض قسمونو کښې په بدن باندې د یخو اوبو استعمالول فائده مند نه دی ، خاص کر هغه تبه چه د یخنۍ په وجه راغلې وی دیکښې خو د اوبو استعمال نقصان ورکوی نو بیا حضور صلی الله علی وسلم مطلقا د اوبو د استعمال فرمان څنګه اوکړو (۳)
ددې جواب دا دې چه د حضور اکرم ﷺ ارشاد مطلقا د هرې تبې دپاره نه دې بلکه د تبې د هغه قسمونو باره کښې دې چه هغې کښې دبدن یخول په اوبو سره فائده مند وی . عموما چه کومه تبه د ګرمۍ یا د سخت تاو د وجه وی دیکښې د اوبو استعمال ډیره فائده ورکوی ، او حجاز مقدس خو ګرم دې نو هلته عموما خلقو ته تبه د ګرمۍ او د تاو د وجه راځی، ځکه د حضور ﷺ دا ارشاد ددې باره کښې دې د هرې تبې باره کښې نه دې(۴)
**په تبه کښې به یخو اوبو د استعمال طریقه:** اوس دا خبره پاتې ده چه بدن ته د یخو اوبو په ذریعه یخ والې ورکولو دپاره څه خاص طریقه ده او که په هرې طریقې سره د اوبو استعمال کیدې شی؟
ددې یو طریقه خو حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها نه نقل ده چه هغې به د تبې والا کس په سینه باندې یخې اوبه شیندلې (۵)
امام ترمذی رحمه الله د حضرت ثوبان رضی الله عنه نه یو مرفوع روایت رانقل کړیدې ، دیکښې یو طریقه بیان شویده . إذا أصاب أحدكم الحمى ..... فإن الحمى قطعة من النار ... فليطفئها عنه بالماء ، فليستنقع نهرا جاريا ، وليستقبل جرية الماء فيقول : بسم الله ، أللهم اشف عبدك ، وصدّق رسولك ، بعد صلاة الصبح قبل طلوع الشمس ، فليغتمس فيه ثلاث غمسات ثلاثة أيام ، فإن لم يبرأ في ثلاثة فخمس ، وإلا فسبع ، وإلا فتسع ، فإنها لا تكاد تجاوز تسعا بإذن الله " (۶)

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۲۱۵ عمدة القاری : ۲۱\۲۵٤)
۲) السنن الکبری للنسائی ، کتاب الطب ، باب تبرید الحمی بماء زمزم : ٤\۲۵٤ ( رقم الحدیث : ۷٦۱٤ ) والإحسان بترتیب صحیح ابن حبان ، کتاب الطب ، باب ذکر الخبر المفسر للفظة المجملة ..... ۱۸\۲۳ ، ٦۰ )
۳) فتح الباری : ۱۰\۲۱٦ عمدة القاری : ۲۱\۲۵٤)
٤) فتح الباری : ۱۰\۲۱٦ عمدة القاری : ۲۱\۲۵٤)
۵) لکه چه روایت د باب کښې دی )
٦) سنن الترمذی ، کتاب الطب ، باب : ۳۳ ، ٤\٤۱۰ ( رقم الحدیث : ۲۰۸٤ )

ددې حديث حاصل دا دې چه د تبې والا سړي د سحر د مانځه نه پس او د نمر خاته نه وړاندې يو نهر ته کوز شی او چه د کوم طرفه اوبه راځی هغه طرف ته مخ او سينه کړی او "اللهم اشف عبدك و صدّق رسولك" اووائی او درې غوټې اووهی ، درے ورځے دا عمل اوکړی روغ به شی ګنی پنځه ورځې يا اووه يا نه ورځې دې دا عمل اوکړي ، په نهو ورځو کښې به دننه دننه دده تبه انشاء الله خامخا ځی

امام ترمذی رحمه الله دا حديث غريب ګرځولې دې (١) او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې سند کښې سعيد بن زرعه يو مختلف فيه راوی دی (٢)

بزار د حضرت سمره ﷺ يو روايت ذکر کړيدې او امام حاکم ديته صحيح ويلے دی ديکښې دی :"كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا حم، دعا بقربة من ماء فأفرغها على قرنه فاغتسل" (٣)

حضور اکرم ﷺ په په تبه کښې د اوبو مشك رااوغوښتلو او دا به ئې د خپل سر په ويښتو واچولې او غسل به ئې اوکړو

علامه ذهبی رحمه الله دې حديث ته صحيح ويلې دی (٤) خو حافظ ابن حجر رحمه الله دا ضعيف ګرځولې دې (٥)

امام طحاوی رحمه الله د حضرت انس ﷺ يو روايت رانقل کړيدې او حاکم ديته صحيح ويلې دی او ددې سند قوی دې (٦) حضرت انس ﷺ فرمائی :"إذا حم أحدكم فليشن عليه من الماء البارد من السحر ثلاث ليال" (٧)

يعنی په تبه والا کس باندې به درې ورځو پورې د سحرپه وخت کښې يخې اوبه اچولې شی.

د طبرانی په يو روايت کښې د "وصبوه عليكم فيما بين الأذانين المغرب والعشاء" (٨)الفاظ هم راغلې دی چه د ماښام او د ماسختن په مينځنی وخت کښې په تبے والا باندے اوبه واچوئ

**قوله: قال نافع: وكان عبدالله يقول: اكشف عنا الرّجز:** دا د ماقبل سره سند سره موصول دې حضرت عبد الله بن عمر ﷺ به فرمائل چه مونږ نه دا عذاب لرې کړه ځکه حديث کښې ديته "فيح جهنم" ويلې شويدی ، حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی :

"وإنما طلب ابن عمر كشفه مع ما فيه من الثواب لمشروعيته طلب العافية من الله سبحانه و تعالى، إذ هو قادر

---

(١) ) سنن الترمذی ، کتاب الطب ، باب : ٣٣ ، ٤\٤١٠ ( رقم الحديث : ٢٠٨٤ )
(٢) فتح الباری : ١٠\٢١٧)
(٣) المستدرک للإمام الحاکم ، کتاب الطب ، باب الحمى قطعة من النار ، فأبردوها عنكم بالماء : ٤\٤٠٤ )
(٤) التلخيص للذهبی ، کتاب الطب : ٤\١٠١)
(٥) فتح الباری : ١٠\٢١٨ )
(٦) فتح الباری : ١٠\٢١٨)
(٧) ) المستدرک للإمام الحاکم ، کتاب الطب ، باب عليكم بألبان البقر : ٤\٤٠٣ ، فتح الباری : ١٠\٢١٨)
(٨) فتح الباری : ١٠\٢١٨ ، مجمع الزوائد ، کتاب الطب ، باب ما جاء فی الحمى و إبرادها بالماء : ٥\٩٥ )

على أن يكفر سيئات عبده ويعظم ثوابه ، من غير أن يصيبه شيء يشق عليه " (١)

يعنى حضرت عبد الله بن عمر ﷺ د تبې لړې کيدو دپاره دعا اوکړه ، سره ددې چه ديکښې ثواب دې ، وجه ددې دا ده چه د الله تعالى نه صحت غوښتل روا دى ، ځکه چه بيمارو او مصيبتونو کښې مبتلاء کولو نه بغير هم الله تعالى ګناهونه معاف کولې شى

## ٢٨=بَابُ مَنْ خَرَجَ مِنْ أَرْضٍ لَا تُلَايِمُهُ

[٥٣٩٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ أَنَّ نَاسًا أَوْ رِجَالًا مِنْ عُكْلٍ وَعُرَيْنَةَ قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَكَلَّمُوا بِالْإِسْلَامِ وَقَالُوا يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا كُنَّا أَهْلَ ضَرْعٍ وَلَمْ نَكُنْ أَهْلَ رِيفٍ وَاسْتَوْخَمُوا الْمَدِينَةَ فَأَمَرَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَوْدٍ وَبِرَاعٍ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَخْرُجُوا فِيهِ فَيَشْرَبُوا مِنْ أَلْبَانِهَا وَأَبْوَالِهَا فَانْطَلَقُوا حَتَّى كَانُوا نَاحِيَةَ الْحَرَّةِ كَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَقَتَلُوا رَاعِيَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ الطَّلَبَ فِي آثَارِهِمْ وَأَمَرَ بِهِمْ فَسَمَرُوا أَعْيُنَهُمْ وَقَطَعُوا أَيْدِيَهُمْ وَتُرِكُوا فِي نَاحِيَةِ الْحَرَّةِ حَتَّى مَاتُوا عَلَى حَالِهِمْ [٢٣١]

د امام بخارى رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره دا دې چه د کومې زمکې او د يو علاقې آب و هوا د يو انسان سره موافق نه وى نو دې ددينه چرته بل ځوا تلې شى امام د عرنين د واقعې نه استدلال کړيدې چه دوى مدينې منورې ته راغلل او ددې ځائې آب و هوا په دوى صاف رانغله بيمار شول نو حضور اکرم ﷺ دوى ته د مدينې منورې نه بهر يو ځائې ته د تلو دپاره اوويل ، دوى هلته لاړل او روغ شو خو بيا دوى ناشکرى اوکړه او ارتداد ئې اوکړو او د حضور اکرم ﷺ راعى ( د څناورو ساتونکې ) ئې قتل کړو ، قصاصا دوى تول قتل کړې شو ددې واقعې تفصيل وړاندې تير شويدې

## ٢٩=بَابُ مَا يُذْكَرُ فِي الطَّاعُونِ

طاعون د فاعول وزن دې د طعن نه (٢) طاعون په اصل کښې د وبا په شکل باندے د خوريدو د يو خاص بيمارئ نوم دې چه ديکښې ډيرو وختونو کښې د بدن په مختلف حصو کښې خاص کرپه ترخ وغيره کښې ننکئ راخيژى ، بدن سور يا تور شى او سوزى ، په زړه يره راشى ، قئې ورته شروع شى او انسان ډير زر مړ شى (٣)

١) فتح البارى : ١٠\٢١٨ )

٢) فتح البارى : ١٠\٢٢١ عمدة القارى :٢١\٢٥٦ ، ارشاد السارى : ١٢\٤٤٨ )

٣) قال الخليل : الذاعون الوباء . و قال صاحب النهاية : الطاعون المرض العام الذى يفسد له الهواء و تفسد به الأمزجة و الأبدان . وقال عياض : أصل الطاعون القروح الخارجة فى الجسد . و قال ابن عبد البر : الطاعون غدة تخرج فى المراق و الأباط و قد تخرج فى الأيدى والأصابع وحيث ما شاء الله [بقيه حاشيه برصفحه آئنده]

حديث كښې راغې چه د طاعون وجه دا وی چه پيريان دننه په بدن کښ يو نوکاره اولګوی . لکه امام احمد د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه روايت رانقل کړيدې : چه دوی ﷺ فرمائلي دی : څمامت به د طعن او د طاعون په وجه فناء کيږی ، نو اصحابو رضي الله عنهم اوويل : طعن خو مونږ ته معلوم دې ( يعنى نيزه وهلو ته ويلې کيږی ) خو طاعون څه څيز دې ، نو دوی ﷺ اوفرمائل : "وخز إخوانكم من الجن وفي كل شهادة " او يو روايت کښې "وخز أعدائكم من الجن" راغلې دې (١) د مسند احمد په روايت کښې د " اخوانكم " لفظ نشته دې او د خز تشريح په " طعن ليس بنافذ " سره شويده ، يعنى ټونګاره لګول ، څه څيز ننويستل (٢)

بهر حال کيدې شی چه اصل سبب ددې په دننه بدن کښ نوکاره لګول وی خو په ظاهری بدن باندې ددې اثر د ننکې او د دانې په شکل ظاهريږی (٣)

**اسلام کښې د ټولو نه رومبې وبا کله راغله ؟:** اسلام کښې د ټولو نه وړاندې د طاعون وبا د رملې او د بيت المقدس په مينځ کښې په يو کلی " عمواس " کښې راغلې وه ، حضرات اصحاب رضي الله عنهم او مجاهدين د شام د جهاد په سلسله کښې هلته موجود ديکښې قريبًا ديرش زره مسلمانان وفات شو (٤)

**يو اشکال او ددې جواب:** بعض حضرات وائی : که طاعون د پيريانو او د شيطانانو د نوکارے په وجه خوريږی نو بيا په رمضان المبارك په مياشت کښ طاعون راتلل نه دی پکار ځکه چه رمضان کښې خو سرکشه شيطانان خوترلې شوې وی ، او د رمضان هيڅ استثناء نشته دې دا وبا په رمضان کښ هم خوريدې شی

ددې جواب دا ورکړې شويدې چه ممکن ده چه د شيطان حمله د رمضان نه وړاندې شوې وی خو ددې اثر په رمضان کښې ښکاره شوی وی (٥)

[٥٣٩٦] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ إِبْرَاهِيمَ بْنَ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ يُحَدِّثُ سَعْدًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ إِذَا سَمِعْتُمْ بِالطَّاعُونِ بِأَرْضٍ فَلَا تَدْخُلُوهَا وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا مِنْهَا فَقُلْتُ أَنْتَ سَمِعْتَهُ يُحَدِّثُ سَعْدًا وَلَا يُنْكِرُهُ قَالَ نَعَمْ [ر: ٣٢٨٦]

حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه د حضور ﷺ نه روايت نقل کوی چه دوی ﷺ فرمائلي دی:

---

.....بقيه ازحاشيه گذشته]. قال الغزالي : هو انتفاخ جميع البدن من الدم مع الحمى او انصباب الدم إلى بعض الأطراف ينتفخ و يحمر و قد يذهب ذلک العضوء . ( فتح الباری : ١٠ \ ٢٢١ )

(١) مسند الإمام أحمد بن حنبل : ٤١٧\٤ ، وفى رواية " وفى كل شهداء " مسند الإمام أحمد بن حنبل : ٤ \ ٣٩٥ ، عمدة القاری :١٢ \ ٢٥٦ .

(٢) فتح الباری : ١٠\٢٢٣ ، عمدة القاری : ٢١ \ ٢٥٦ ، النهاية فی غريب الحديث و الأثر : ٥\ ١٦٣

(٣) فتح الباری : ١٠\٢٢٣ ، عمدة القاری : ٢١ \ ٢٥٦ ، ارشاد الساری : ١٢ \ ٤٤٨

(٤) عمدة القاری : ٢١\٢٥٦

(٥) ارشاد الساری : ١٢ \ ٤٤٩

چه کله یو علاقه کښې د طاعون متعلق واورئ نو هلته مه ځئ او چه کله ته په یو علاقه کښې ئې او هلته طاعون خور شی نو د هغه ځائې نه مه اوځه "فقلت: أنت سمعته يحدث سعدا، و لاینکرہ، قال: نعم"

حبیب بن ابی ثابت وائی ما د ابراهیم بن سعد نه تپوس اوکړو چه تا د اسامه بن زید حدیث د سعد نه بیانیدل اوریدلې دی او (د ستا پلار) سعد ددینه انکار اونکړو ؟ نو دوی اوویل: چې آو ما په خپله اوریدلے دې

د فقلت قائل حبیب بن ابی ثابت دې ، ده د خپل شیخ ابراهیم بن سعد نه تپوس اوکړو چه تا د خپل شیخ اسامه بن زید نه په خپله اوریدلې دی چه دوی دا حدیث د حضرت سعد نه روایت کړیدې او حضرت سعد دینه انکار اونکړو ، نو ابراهیم اوویل : هو ما دا حدیث دوی نه په خپله اوریدلې دې ، ابراهیم د حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه خوئ دې (1)

[۵۳۹۷] (2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خَرَجَ إِلَى الشَّأْمِ حَتَّى إِذَا كَانَ بِسَرْغَ لَقِيَهُ أُمَرَاءُ الْأَجْنَادِ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ وَأَصْحَابُهُ فَأَخْبَرُوهُ أَنَّ الْوَبَاءَ قَدْ وَقَعَ بِأَرْضِ الشَّأْمِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ عُمَرُ ادْعُ لِي الْمُهَاجِرِينَ الْأَوَّلِينَ فَدَعَاهُمْ فَاسْتَشَارَهُمْ وَأَخْبَرَهُمْ أَنَّ الْوَبَاءَ قَدْ وَقَعَ بِالشَّأْمِ فَاخْتَلَفُوا فَقَالَ بَعْضُهُمْ قَدْ خَرَجْتَ لِأَمْرٍ وَلَا نَرَى أَنْ تَرْجِعَ عَنْهُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ مَعَكَ بَقِيَّةُ النَّاسِ وَأَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا نَرَى أَنْ تُقْدِمَهُمْ عَلَى هَذَا الْوَبَاءِ فَقَالَ ارْتَفِعُوا عَنِّي ثُمَّ قَالَ ادْعُوا لِي الْأَنْصَارَ فَدَعَوْتُهُمْ فَاسْتَشَارَهُمْ فَسَلَكُوا سَبِيلَ الْمُهَاجِرِينَ وَاخْتَلَفُوا كَاخْتِلَافِهِمْ فَقَالَ ارْتَفِعُوا عَنِّي ثُمَّ قَالَ ادْعُ لِي مَنْ كَانَ هَا هُنَا مِنْ مَشْيَخَةِ قُرَيْشٍ مِنْ مُهَاجِرَةِ الْفَتْحِ فَدَعَوْتُهُمْ فَلَمْ يَخْتَلِفْ مِنْهُمْ عَلَيْهِ رَجُلَانِ فَقَالُوا نَرَى أَنْ تَرْجِعَ بِالنَّاسِ وَلَا تُقْدِمَهُمْ عَلَى هَذَا الْوَبَاءِ فَنَادَى عُمَرُ فِي النَّاسِ إِنِّي مُصَبِّحٌ عَلَى ظَهْرٍ فَأَصْبِحُوا عَلَيْهِ قَالَ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ أَفِرَارًا مِنْ قَدَرِ اللَّهِ فَقَالَ عُمَرُ لَوْ غَيْرُكَ قَالَهَا يَا أَبَا عُبَيْدَةَ نَعَمْ نَفِرُّ مِنْ قَدَرِ اللَّهِ إِلَى قَدَرِ اللَّهِ أَرَأَيْتَ لَوْ كَانَ لَكَ إِبِلٌ هَبَطَتْ وَادِيًا لَهُ عُدْوَتَانِ إِحْدَاهُمَا خَصِبَةٌ وَالْأُخْرَى جَدْبَةٌ أَلَيْسَ إِنْ رَعَيْتَ الْخَصْبَةَ رَعَيْتَهَا بِقَدَرِ اللَّهِ وَإِنْ رَعَيْتَ الْجَدْبَةَ رَعَيْتَهَا بِقَدَرِ اللَّهِ

---

1) عمدة القاری : ۲۱\۲۵۷ ، و ارشاد الساری : ۱۲\۴۴۹

2) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی كتاب الحيل ، باب ما يكره من الاحتيال فی الفرار من الطاعون ( رقم الحديث : ۶۵۷۲ ) و أخرجه مسلم فی كتاب السلام ، باب الطاعون و الطيرة و الكهانة و نحوها : ۴\۱۷۴۰ ( رقم الحديث : ۲۲۱۹ ) و أخرجه النسائی : فی كتاب الطب ، باب الخروج من الأرض التی لا تلائمه : ۱۴ ۳۶۲ ( رقم الحديث : ۷۵۲۲ ، ۷۵۲۵ ) و أخرجه ابوداود فی الجنائز ، باب فی فضل من مات فی الطاعون : ۱۸۸\۱۳ ( رقم الحديث : ۳۱۱۱ )

قَالَ فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ وَكَانَ مُتَغَيِّبًا فِي بَعْضِ حَاجَتِهِ فَقَالَ إِنَّ عِنْدِي فِي هَذَا عِلْمًا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوا عَلَيْهِ وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ قَالَ فَحَمِدَ اللَّهَ عُمَرُ ثُمَّ انْصَرَفَ [ر: ۶۵۷۲]

[۵۳۹۸] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ عُمَرَ خَرَجَ إِلَى الشَّأْمِ فَلَمَّا كَانَ بِسَرْغَ بَلَغَهُ أَنَّ الْوَبَاءَ قَدْ وَقَعَ بِالشَّأْمِ فَأَخْبَرَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوا عَلَيْهِ وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ

**په زمانه د طاعون کښې د حضرت فاروق اعظم شام ته د تللو واقعه:** حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه د حضرت ابوعبيده بن الجراح او د ده ملګرى د حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه سره ملاؤ شو او دوى ته ئې اوويل : چه د شام په ملك کښې وبا راغلې ده ، حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه اوويل : ما ته اولين مهاجرين راولئ، تو هغوى راوستلې شو ده د دوى سره مشوره اوکړه او دوى ته ئې اوويل : د شام په ملك کښې وبا خوره شويده ( هلته تلل پکار دى او که نه واپس کيدل پکار دى ؟ ) دوى کښې اختلاف شو ، څو اوويلې چه د کوم کار دپاره راووتې يو دينه واپس کيدل مناسب نه دى ، او څو اوويلې : تاسره لوے لوے خلق او د رسول الله ﷺ اصحاب دى ، دې وجه نه وبا طرف ته تلل مناسب نه دى

حضرت فاروق اعظم چه کله ددوى اختلاف اوليدلو نو وې فرمائل : تاسو څما نه لاړ شئ ، بيا ئې اوفرمائل : انصار راولئ ، ما هغوى رااوبلل : دوى سره مشوره اوشوه ، نو دې خلقو مينځ کښې هم د مهاجرينو په شان اختلاف اوشو ، حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه دوى ته هم اوويل : څما نه لاړ شئ،بيا ئې اوفرمائل: د قريشو مشران رااوغواړه ، چه کومو د فتح مکه په کال هجرت کړيدې ،نوما دوى رااوغوښتل :دوى کښې دوه سړو هم اختلاف اونکړو بلکه دوى ټولو اوويل: چه څمونږ خيال دى چه ته خلقو لره واپس بوځه او دې وبا طرفته مه ورځئ.
فاروق اعظم رضي الله عنه په خلقو کښې اعلان اوکړو چه څه صبا به د واپسئ دپاره سوريږم ، نو د سحر په وخت کښې خلق حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه ته راغلل ، حضرت ابو عبيده بن الجراح اوويل : امير المؤمنين د الله تعالى د تقدير نه تيښته اختياروے؟ حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه اوويل : چه افسوس د ستا نه علاوه بل چا دا خبره کړې وې ، مونږ د تقدير الهى نه تقدير الهى طرفته تيښته کوو ، دا خو راته اووايه چه تاسره اوښ وى او ته يو کنده کښې کوز شې چه د هغې يو طرف شنه تازه ګياه وى او بل طرف اوچ وى نو آيا دا حقيقت نه دې چه ته به په شين طرف باندے اوښ څروې نو دا به هم په تقدير الهى سره وى او که اوچ کښې څروې نو دا به هم په تقدير الهى سره وى "

راوى وائى ديکښې حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه راغلو ، چه دې د څه ضرورت په وجه

---

(۱) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب الطاعون و الطيرة و الكهانة و نحوها : ۱۴ / ۱۷۳۰ ( رقم الحديث : ۲۲۱۹ )

تر اوسه غائب وو ، دوى اوويل : ماسره ددې متعلق علم دې ما درسول الله ﷺ نه اوريدلے چه دوى فرمائل : چه كله تاسو د زمكې متعلق واورئ ( چه هلته وبا خوره شوې ده ° نو هلته مه ځئ او چه كله په يو ځائے كښې وبا خوره شى او تاسو هلته موجود ئې نو د هغه ځائے نه تيختته مه كوئې او بهر مه ځئې

حضرت فاروق اعظم چه دا حديث واوريدو نو د الله تعالى شكر ئې اداء كړو او بيا د هغه ځائې نه واپس شو -

**قوله: حدثنا عبد الله بن يوسف ، أخبرنا مالك ، عن ابن شهاب ، عن عبد الحميد بن عبد الرحمن بن زيد بن الخطاب......:** دې سند كښې درې تابعيان او دوه صحابى دى او ټول مدنى دى ، امام مالك ، محمد بن شهاب زهرى او عبد الحميد بن عبد الرحمن تابعيان دى او حضرت عبد الله بن عبد الله بن الحارث او حضرت عبد الله بن عباس دواړه صحابه دى (١)

د عبد الله بن عبدالله بن الحارث په بخارى كښې صرف هم دا يو حديث دې ، ٩٩ هجرى كښ د دوى وفات شويدې (٢)

**قوله: إن عمر بن الخطاب رضي الله عنه خرج إلى الشام:** دا د ربيع الثانى د اتلسم سن هجرى واقعه ده حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه دا سفر د خلقو د حالاتو او د حكومت د نظم او ترتيب معلومولو په غرض كولو - (٣)

**قوله: حتى إذا كان سرغ:** سَرْغ ( د سين زبر ، او د راء په سكون سره ) وادى تبوك سره نزدې د شام د يو كلې نوم دې د مدينه منوره نه د ديارلسو مرحلو په فاصله دې (٤)

**قوله: لقيه أمراء الأجناد أبو عبيدة بن الجراح وأصحابه :** په دې مقام د حضرت عمر فاروق سره د لشكر اسلام امراؤ ملاقات اوكړو ، دينه مراد حضرت ابو عبيده ( عامر بن عبد الله يا عبد الله بن عامر ) او دده ملګرى حضرت خالد بن الوليد ، زيد بن ابى سفيان ، شرحبيل بن حسنه او عمرو بن العاص مراد دى ، حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه شامل په مختلف لښكرونو تقسيم كړې وو ، اردن ، حِمص ، دمشق ، فلسطين ، قنسرين .... هر يو د مستقل لښكر حصه وه او د هرې حصې جُدا امير وو . (٥) دې وجه نه دلته د امراء الاجناد اوويلې شو يعنى صيغه د جمع استعمال شوه

**قوله: فأخبروه أن الوباء قد وقع بأرض الشام:** د وبا نه طاعون مراد دې ، اتلسمه سن

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٢٢۶ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٥٨ )

(٢) فتح البارى : ١٠ \ ٢٢۶ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٥٨ )

(٣) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٥٨ ، دارنګه اوګورئ ارشاد السارى : ١٢ \ ٤٥٠

(٤) فتح البارى : ١٠ \ ٢٢۶ ، ٢٢٧، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٥٨ ، ارشاد السارى ١٢ \ ٤٥٠ )

(٥) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٥٨ ، ارشاد السارى : ١٢ \ ٤٥٠ ، فتح البارى : ١٠ \ ٢٢٧ )

هجرئ کښې په محرم او صفر کښې په شام کښې طاعون خور شو خو بیا ختم شو چه کله حضرت فاروق اعظم هلته اورسیدو نو دا وبا په دوباره خوره شوه ، (۱)

**قوله: أدع لی المهاجرین الأولین:** اولین مهاجرین نه مراد هغه جلیل القدر صحابه دی چه کومو د ټولو نه ړومبې هجرت کړیدې او دواړو قبلو بیت المقدس او بیت الله شریف ته ئې مونځ کړې وو (۲)

**قوله: معك بقیة الناس وأصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم:** بقیة الناس نه بقیة الصحابة مراد دی یعنی د ستا سره ژوندی پاتې شوي اصحاب دی " اصحاب رسول الله " ددې عطف تفسیر دې ،(أطلق علیهم ذلك تعظیما لهم أی لیس الناس إلا هم) یعنی دوی دپاره تعظیما د بقیة الناس لفظ استعمال شو ګویا اصل په خلقو کښې هم دوی دی ، او دا احتمال هم شته چه د بقیة الناس نه مرا عام اصحاب وی او د اصحاب نه مراد خاص اصحاب وی (۳)

**قوله: أدع لی من کان ههنا من مشیخة قریش:** یعنی دلته چه کوم د قریشو مشران حضرات دی هغه را اوغواړه ، مشیخة د شیخ جمع ده ، ددې لفظ لس جمع راځی:

① شیوخ ( د شین په ضمه سره ) ② شُیوخ ( د شین په کسره سره ) ③ أشیاخ ④ شِیَخة ( د شین په کسره او د یاء په فتحه سره ) ⑤ شیخان ( د شین په کسره او د یاء په سکون سره ) ⑥ مَشایخ ( یاء سره . په همزه سره غلط دې خلق عموما دا په همزه سره وائی او لیکی ) ⑦ مَشِیخَة ( د میم فتحه او شین کسره ) ⑧ مَشَیخاء ( د میم او د شین فتح او د یاء سکون ) ⑨ مَشْیُوخا ( د میم فتح ، د شین سکون او د یاء ضمه او د واو سره ) ⑩ مَشْیُخاء دارنګه د لفظ د شیخ ټولې لس جمع راځی (۴)

**قوله: من مهاجرة الفتح:** ① دینه یا هغه خلق مراد دی چه دوی د فتح د مکه په کال مدینې منورې ته هجرت کړې وو.

② یا هغه خلق مراد دی چه دوی د فتح د مکه په موقع اسلام قبول کړې وو

③ یا هغه اصحاب مراد دی چه دوی د فتح د مکه نه پس مدینې ته هجرت کړې وی.

د هجرت حکم اګرچه روستو د فتح د مکه نه پاتې نه وو ، خکه چه حضور ﷺ فرمائلې وو: "لا هجرة بعد الفتح" خو بیا هم دوی صورتًا هجرت کړې وو دې صورت کښې دا به احتراز وی د هغه اصحابو رضی الله عنهم نه چه هغوی بالکل هجرت نه وو کړې او د فتح د مکه نه پس هم دوی په

---

(۱) عمدة القاری : ۲۱\۲۵۸ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۵۰ )

(۲) عمدة القاری : ۲۱\۲۵۸ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۵۰ ،

(۳) فتح الباری : ۱۰\۲۲۷ دارنګه عمدة القاری : ۲۱\۴۵۸

(۴) عمدة القاری : ۲۱\۲۵۸ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۵۱ ، فتح الباری : ۱۰\۲۲۷

مکه کښې مقیم وو (۱)
دینه معلومه شوه چه کومو اصحابو رضي الله عنهم اګر چه د فتح مکه نه پس هم هجرت کړې وی هغوی ته په هغه اصحابو رضي الله عنهم فضیلت حاصل دې چه دوی هغو هجرت نه دې کړې (۲)

**قوله:** إني مصبّح على ظهر: مُصَبِّح د باب د تفعیل د اسم فاعل صیغه ده. د سهار په وخت سفر کوونکې، د ظهر نه مراد ظهرالراحلة ده یعنی څه به صبا سحر په سوارلئ سوریدونکې یم (۳)

**قوله:** أفرارًا من قدر الله: دا مفعول له دې أی ترجع فرارًا من قدر الله-

**قوله:** لو غيرك قالها يا أبا عبيدة: دا شرط دې جزاء ئې مخذوف ده، جزاء "لأدّبته" هم کیدې شی یعنی که چا بل چا داسې خبره کړې وې نو ما به ده ته ادب خودلے وو او جزاء ئې "لكان أولى" هم کیدې شی یعنی که دا خبره بل چا کړې وې نو دا به زیاته بهتره وه، د ستا دپاره داسې نامناسبه اعتراض مناسب نه وو، او "لم أتعجب" هم محذوف کیدې شی یعنی که چا بل چا دا خبره کړې وې نو ما ته به تعجب نه وو د ستا پشان عالم سړی نه دا خبره اوریدل ما ته ډیره د تعجب ښکاری (۴)

**قوله:** وادیًا له عُدوتان: عُدْوَة (د واو (خو څما خیال دې چه عین دې واو خطاء د ناسخ ده، مترجم) ضمه او کسره دواړه صحیح دی، دال ساکن دې) عُدْوَة طرف او اړخ ته وائی. وهو المكان المرتفع من الوادي وهو شاطئه - (۵)

**قوله:** إحداهما خصبة: خصبة (د خاء فتحه او د صاد کسره) تر او تازه شین ګوشین، ددې په مقابله کښې جَدْبَة (د جیم فتحه او د دال سکون) راخی، اوچ، قحط وهلے (۶)
حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه مثال بیان کړو او دې ئې پوهه کړو چه که د یو میدان دوه اړخه وی یو تر و تازه شین وی او بل اړخ اوچ قحط وهلې وی او ته خپل اوښان یو طرف ته څرولو دپاره بوځې نو چه تروتازه شین طرف ته ئې بوځې نو دیته به هم څرل په تقدیر الهي سره ویلې کیږی او که اوچ طرف ته ئې څروې نو دیته به هم څرل په تقدیر الهی سره ویلې کیږی. اوس دې شین طرف کښې اوښ څرولو ته د تقدیر الهی نه تیخته کول نه ویلې کیږی دا رنګه مونږ هم که د شام د وبا والا علاقې نه واپس شو نو دیته به هم د تقدیر الهی نه تیخته نه

---

۱) عمدة القاری: ۲۱\ ۲۵۸، ارشاد الساری: ۱۲\ ٤٥١، فتح الباری: ۱۰\ ۲۲۷
۲) فتح الباری: ۱۰\ ۲۲۷
۳) عمدة القاری: ۲۱\ ۲۵۸، ارشاد الساری: ۱۲\ ٤٥١،
۴) عمدة القاری: ۲۱\ ۲۵۸، ارشاد الساری: ۱۲\ ٤٥١، فتح الباری: ۱۰\ ۲۲۸
۵) عمدة القاری: ۲۱\ ۲۵۹، فتح الباری: ۱۰\ ۲۲۸
۶) عمدة القاری: ۱۲\ ۲۵۹

ويلي كيږي ـ

**يو اشكال او ددې جواب** : په دې د حضرت انس ﷺ ددې روايت نه اشكال كيږي چه كوم امام طحاوى رحمه الله په صحيح سند سره رانقل كړيدي چه حضرت فاروق اعظم ﷺ كله شام ته راغلو نو حضرت ابو طلحه او ابو عبيده ﷺ د دوى استقبال اوكړو او وې ويل : چه امير المؤمنين ! تاسو سره لوے لوے اصحاب دى ، او مونږ د ځان نه روستو شام كښې لګيدلې او پريخودې دې دې وجه نه تاسو په دې كال واپس شئ نو حضرت عمر فاروق واپس شو د حضرت انس ﷺ د دې حديث نه معلوميږى چه حضرت فاروق اعظم ﷺ ته د واپس تلو مشوره حضرت ابوعبيده ﷺ وركړې وه ، او دلته د بخارى په روايت كښې په واپس تلو باندې دوى اعتراض كړيدې (۱)

خو دې دواړو خبرو كښې تطبيق داسې كيدې شى چه حضرت ابوعبيده ﷺ په شروع كښې خو د واپس كيدو مشوره وركړې وه خو بيا روستو په دوى باندې مقام د توكل غالب شو نو دوى د خپلې پخوانۍ مشورې نه رجوع اوكړه او په واپس كيدو باندې ئې اعتراض اوكړو (۲)

**قوله: إذا سمعتم به بأرض فلا تقدموا عليه**: د " به " ضمير مجرور طاعون ته راجع دې ، يعنى چه په كومه زمكه كښې تاسو د طاعون متعلق واورئ نو هلته مه ځئ " فلا تقدموا عليه" په حديث كښې دا نهى چه راغلې ده نودا په نزد د بعضو باندې دپاره د تحريم ده نو دې وجه نه چه په كومه علاقه كښې وبا خوره شوې وى نو هلته تلل جائز نه دى بلكه حرام دى او بعض حضرات وائى چه دا نهى دپاره د تنزيه ده نو چه د كوم سړى توكل مضبوط وى او په تقدير د مضبوط ايمان مالك وى نو هغه دپاره داسې علاقې ته تلل جائز دى - (۳)

**قوله: وإذا وقع بأرض وأنتم بها فلا تخرجوا فرارًا منه**: او چه كوم سړې په داسې علاقه كښې اوسيږى چه هلته وبا خوره شوې وى نو ددينه تيخته كول او وتل منع شويدى

**د طاعون والا علاقې نه سړې وتلې شى او كه نه ؟** : د طاعون والا علاقې نه سړې وتلې شى او كه نه نو ديكښې مختلف اقوال دى

بعض عالمان وائى : چه وتلې شى ، قاضى عياض رحمه الله په اصحابو ﷺ كښې د حضرت ابو موسى اشعرى او د حضرت مغيره بن شعبه ﷺ او په تابعينو كښې د اسود بن هلال او د مسروق دا قول رانقل كړيدې چه دوى په دې حديث كښې دا نهى په تنزيه اخلى چه د جواز سره جمع كيدې شى (۴)

خو د بعضې نورو عالمانو په نزد د داسې علاقې نه وتل حرام دى ، ځكه چه په وتلو وعيد راغلې دې،د شوافعو په نزد هم دا قول راجح دې (۵) د دوى استدلال د حضرت عائشه ﷺ

---

۱) فتح البارى ۱۰\۲۲۹

۲) فتح البارى : ۱۰ ۲۲۹

۳) فتح البارى : ۱۰\۲۳۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\۴۵۳

۴) ارشاد السارى : ۱۲\۴۵۳ )

۵) ارشاد السارى : ۱۲\۴۵۳ )

په دې روايت دې چه کوم امام احمد رحمه الله رانقل کړيدې ، چه دا فرمائی چه ما د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه طاعون څه څيز دې ؟ نو دوی ﷺ اوفرمائل : "غدة كغدة البعير، المقيم فيها كالشهيد، والفار منها كالفار من الزحف" [1] يعنی دا د اوښ د غوټې او د دانې په شان په بدن کښې ښکاره کيدونکې دانه ده چه کوم سړې دې وبا کښې مقيم پاتې شی نو دې به د شهيد برابر درجه بيا مومی او چه کوم اوتختی نو دې د جهاد نه د تختيدونکې په شان مجرم دې

خو حقيقت دا دې چه ديکښې تفصيل دې او ددې درې صورتونه کيدې شی

① چه يو سړې د وبا او د طاعون نه د تيختې او د بچ کيدو په اراده اوځی داسې چه په دې وبا کښې مبتلاء نه شی نو دا صورت ناجائز دې او په دې وعيد کښې شامل دې

② يو سړې د تيختې په نيت نه ځی بلکه د يو بل مقصد او ضرورت دپاره د داسې علاقې نه ځی ، مثلاً يو سړې دې چه ده د وړاندې نه د سفر تيارې کړيدې او وتو والا وو چه ديکښې د طاعون وبا خوره شوه او دې د خپل پخوانی قصد مطابق اووتلو نو داسې کس دپاره وتل جائز دی او دې د نهی او د وعيد تر لاندې داخل نه دې

③ دريم صورت دا دې چه ددې ځائې نه بهر ته د تللو د ده ضرورت او حاجت هم دې او ورسره ئې خيال د وبا او د طاعون نه د بچ کيدو هم دې ، نو دا صورت مختلف فيه دې چه آيا دې وتلې شی او که نه ، [2]

دې دريم صورت کښې چه صرف د طاعون نه تيخته نه ده بلکه يو بل مقصد ئې ورسره هم په خيال کښې شته دې وجې نه بعضې حضراتو دا جائز ګرځولې دې او ويلې دی چه دا صورت د نهی نه مستثنی دې

لکه تاريخی روايتونو کښې راځی چه حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه حضرت ابوعبيده بن الجراح ته خط اوليکلو چه "تاسره ځما ضروری کار دی دې وجه نه ځما د خط په کتلو سمدست ما ته راشه" حضرت ابوعبيده پوهه شو ، جواب ئې اوليکلو چه ما ته معلومه ده چه د ستا ما سره څه کار دې ؟ څه د مسلمانانو په لښکر کښې يم د دوی د پريخودو خواهش ځما په زړه کښې نشته دې" نو بيا روستو د دوی هم په دې طاعون د عمواس کښې وفات اوشو ، [3]

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې واقعې د ذکر نه پس ليکی :

فهذا يدل على أن عمر رأى أن النهي عن الخروج إنما هو لمن قصد الفرار متمحضا، ولعله كانت له حاجة بأبى

---

[1]) مسند الإمام احمد بن حنبل : ٦\٢٥٥ )

[2]) فتح البارى : ١٠\٢٣١ ، ارشاد السارى : ١٢\٤٥٣ ، قال الشيخ ابن دقيق العبد : " الذى يترجح عندى فى الجمع بينهما أن فى الإقدام على تعريض النفس للبلاء ، ولعلها لا تصبر عليه و ربما كان فيه ضرب من الدعوى لمقام الصبر أو التوكل فمنع ذلک حذرا من اغترار النفس و دعواها ما لا تثبت عليه عند الإختبار ، و أما الفرار فقد يكون داخلا فى التوغل فى الأسباب بصوة من يحاول النجاة بما قدر عليه فأمرنا الشارع بترک التکلف فى الحالتين "

[3]) فتح البارى : ١٠\٢٣١، ٢٣٢ )

عبيدة فى نفس الأمر، فلذلك استدعاه، و ظن أبوعبيدة أنه إنما طلبه ليسلم من وقوع الطاعون به، فاعتذر عن إجابته لذلك، و قد كان أمر عمر لأبى عبيدة بذلك بعد سماعهما للحديث المذكور من عبد الرحمن بن عوف، فتأول عمر فيه ما تأول، و استمر أبوعبيدة على الأخذ بظاهره (١)

يعنى حضرت فاروق اعظم حضرت ابوعبيده د طاعون والا علاقي نه رابللل په دي خبره دلالت كوى چه حديث كښې چه كومه نهى راغلې ده هغه د هغه كس دپاره ده چه د هغه نيت په بهر تلو سره صرف د وبا نه د تيختې وى ، خو كه څه بل ضرورت ئې وى نو تلې شى ، حضرت فاروق اعظم ﷛ هم غالبًا د حضرت ابوعبيده ﷛ سره څه كار لرلو دې وجه نه ئې راوبللو ، حال دا دې چه دوى د عبدالرحمن بن عوف نه د نهى والا حديث هم اوريدلې وو خو د دې سره ئې راوبللو ځكه چه ده نهى په دې ذكر شوې درې صورتونو كښې په ړومبنى صورت اخستله

**د طاعون والا علاقې نه د وتلو په ممانعت كښې حكمتونه** : بهرحال حديث شريف كښې د طاعون والا علاقې نه د وتلو حضور اكرم ﷺ ممانعت كړيدې د ددې ممانعت عالمانو مختلف حكمتونه بيان كړيدى :

① چه كله په يو علاقه كښې وبا عامه شى نو عموما دينه بچ كيدل مشكل شى داسې صورت كښې تيختنه څه فائده نه وركوى

② كه ټول خلق تيختنه شروع كړى نو چه كوم انسان په وبا كښې مبتلاء شويدې يا د څه په وجه هغه تلې نه شى نو دده خيال به څوك ساتى ، دارنګه صرف هغه خلق به وتلې شى چه كوم قوى او د قدرت خاوندان وى ، او چه كوم كمزور وى بودا ګان وى د سفر خرچه ورسره نه وى دا خلق به نشى وتلې نو دې سره به د كمزورو زړه ته درد اورسى

③ بعض وباګانې متعدى وى او ددې جراثيم خوريږى ، كه يو سړې ددغه ځائې نه اوځى نو ممكن ده چه دې دا جراثيم ځان سره نورو علاقو ته يوسى او داسې به نوې علاقو كښې هم دا وبا راشى (٢)

**حديث نه د يو څو ادابو استنباط** : امام بخارى رحمه الله چه د حضرت عمر فاروق د سفر د شام دا قصه په صحيح بخارى كښې دلته په ړومبى ځل ذكر كړه نو دې وجه نه حافظ ابن حجر رحمه الله د خپل عادت مطابق دينه مختلف احكام او آداب استنباط كوى او ليكى :

وفى قصة عمر من الفوائد : مشروعية المناظرة ، و الإستشارة فى النوازل ، وفى الأحكام ، و أن الإختلاف لا يوجب حكما ، و أن الإتفاق هو الذى يوجبه ، و أن الرجوع عند الإختلاف إلى النص ، و أن النص يسمى علما ، و أن الأمور كلها تجرى بقدر الله و علمه ، و أن العالم قد يكون عنده ما لا يكون عند غيره ممن هو أعلم منه ، و فيه وجوب العمل بخبر الواحد ، و هو من أقوى الأدلة على ذلك ، لأن ذلك كان بإتفاق أهل الحل و العقد من الصحابة ،

---

[1]) فتح البارى : ١٠\٢٣٢ )

[2]) فتح البارى : ١٠\٢٣٢، ٢٣٣ )

تقبلوه من عبد الرحمن بن عوف ، ولم يطلبوا معه مقويا ، و فيه الترجيح بالأكثر عددا ، و الأكثر تجربة ، لرجوع عمر لقول شيخة قريش مع ما انضم إليهم ممن وافق رأيهم من المهاجرين و الأنصار ..... و فيه تفقد الإمام أحوال رعيته لما فيه من إزالة ظلم المظلوم ، و كشف كربة المكروب و تنزيل الناس منازلهم " (١)

يعني دې حديث او واقعه نه لاندينى آداب او فائدے مستنبط كيږى

① دا چه مناظره او بحث كول روا دى ، لكه چه د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه او د حضرت ابوعبيده رضی الله عنه په مينځ كښې اوشو

② دا چه په راتلونكې واقعاتو او حادثو كښې د خپلو ملګرو سره مشوره كول پكار دى لكه چه حضرت فاروق اعظم اوكړلو

③ اختلاف سره څه حكم وجوبا نه ثابتيږى ، اتفاق سره ثابتيږى

④ په رائې كښې د اختلاف په وخت نص ته رجوع كول پكار دى

⑤ دا چه نص ته علم ويلې كيږى لكه چه حصرت عبدالرحمن بن عوف اوويل : چه ما سره ددې باره كښې "علم " دې او بيا ئې حديث واورولو ، نو حديث نه دوى تعبير په علم اوكړو

⑥ دا چه تمام امور د الله د تقدير او د علم مطابق جارى كيږى

⑦ دا چه د وړوكى عالم سره داسې يو خبره كيدې شى چه د لوې عالم سره به نه وى ، لكه چه حضرت فاروق اعظم په علم كښې د عبد الرحمن بن عوف نه زيات وو خو دا حديث دوى ته نه وو معلوم ⑧ دا چه په خبر واحد باندے عمل كول واجب دى نو په دې سره ددې روايت نه استدلال كيدې شى ، څكه حضرت عبد الرحمن بن عوف حديث واورولو او چا ئې ترديد اونكړو ، بلكه په دې ئې عمل اوكړو او واپس شو

⑨ چه كوم خلق مشوره كښې په اعتبار د تعداد زيات وى يا په تجربه كښې زيات وى نو د دوى رائې ته ترجيح وركول پكار دى ، دلته د قريشو د شيوخو تجربه زياته وه او د واپسئ رائې وركوونكې هم تعداد كښې زيات وو

⑩ امام او حاكم لره پكار دى چه د رعايا د احوالوخبر اوساتى

[٥٣٩٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نُعَيْمٍ الْمُجْمِرِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْمَدِينَةَ الْمَسِيحُ وَلَا الطَّاعُونُ [ر:١٧٨١]

مدينه منوره كښې دجال به نشى داخليدې او داسې د طاعون وبا به هم مدينه منوره كښې نه شى خوريدې

علامه قرطبى رحمه الله په شرح د مسلم " المفهم " كښې ليكلے دى چه " لا يدخل المدينة الطاعون " معنى دا ده چه طاعون به ديكښې په شان د عام وبا په شكل نه شى داخليدې لكه چه څنګه نورو علاقو كښې دا د وبا په شكل خوريږى - (٢)

(١) فتح البارى : ١٠\٢٣٣ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٢٣٤ ، درانګه اوګورئ : ارشاد السارى : ١٢\٤٥٤ )

دده ددې قول نه معلوميږي چه في الجمله په مدينه منوره كښې طاعون راتلې شي خو د عام وبا په شكل كښې نه شي راتلې
خو ابن قتيبه او امام نووى په " الاذكار " كښې ليكى چه طاعون مدينه منوره كښې د سره راتلې نه شي ، او دا يو تاريخى حقيقت دې چه مدينه منوره كښې د طاعون وبا كله هم نه ده خوره شوې ، طاعون نه علاوه نورې وباګانې خو راغلې دى او ددې وجه ډير مړى هم شوى دى خو د طاعون وباء كله هم نه ده خوره شوې (١)
مدينه منوره په شان د مكه مكرمه باره كښې هم يو روايت دې چه ديكښې به هم دجال او طاعون دواړه نه شى داخليدې ، دا روايت عمر بن شيبه په " تاريخ مكه " كښې نقل كړيدې او ددې سند صحيح دې - (٢)
خو بعضې حضراتو نه نقل دى چه اووه سوه يو كم پنځوست سن هجرى په مكه مكرمه كښې طاعون خور شوے وو ، (٣) نو يا خو دغه د طاعون وبا نه وه ، څه بله بيمارى وه او يا طاعون وو خو د وباء په شكل كښې نه وه (٤) او حديث كښې د عدم دخول نه مراد په وبائى شكل كښې داخليدل مراد دى لكه علامه قرطبى فرمائى
سند كښې د امام مالك شيخ نعيم بن عبد الله قرشى دې ، د ده لقب مُجمر دې ، چه د إجمار اسم فاعل دې،ده به مسجد نبوى په خوشبو وينځلو نو دې وجه نه د ده لقب " مجمر " شو(٥)

[٥٤٠٠] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ حَدَّثَتْنِي حَفْصَةُ بِنْتُ سِيرِينَ قَالَتْ قَالَ لِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَحْيَى بِمَ مَاتَ قُلْتُ مِنَ الطَّاعُونِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطَّاعُونُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ [ر:٢٦٧٥]

[٥٤٠١] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَبْطُونُ شَهِيدٌ وَالْمَطْعُونُ شَهِيدٌ [ر:٦٢٤]

حضرت حفصه بنت سيرين فرمائى : چه حضرت انس رضي الله عنه ما نه څما د رور يحي بن سيرين باره كښې تپوس اوكړو چه هغه په څه وجه وفات شوې وو ، ما اوويل : د طاعون په سبب ، نوده اوفرمائل: چه حضور اكرم ﷺ فرمائلې دى چه طاعون د هر مسلمان دپاره شهادت دې كتاب الجهاد كښې دا حديث تير شويدې ـ

د باب په آخرى حديث كښې دى چه مبطون او مطعون دواړه شهيد دى ، مبطون هغه كس دې چه د ګيډې د بيمارئ په وجه وفات شوې وى ، او مطعون چه په طاعون كښې مړ شوې وى ، دا دواړه د آخرت په اعتبار سره شهيدان دى،

---

(١) فتح البارى : ١٠\ ٢٣٤ )
(٢) فتح البارى : ١٠\ ٢٣٥ )
(٣) فتح البارى : ١٠\ ٢٣٥)
(٤) فتح البارى : ١٠\ ٢٣٥ )
(٥) ، تهذيب الكمال : ٢٩\ ٤٨٧ ' ٤٨٨ )

## ۳۰=باب أجر الصابر في الطاعون

[۵۴۰۲] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي الْفُرَاتِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا أَخْبَرَتْنَا أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُونِ فَأَخْبَرَهَا نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ عَذَابًا يَبْعَثُهُ اللَّهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ فَجَعَلَهُ اللَّهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِينَ فَلَيْسَ مِنْ عَبْدٍ يَقَعُ الطَّاعُونُ فَيَمْكُثُ فِي بَلَدِهِ صَابِرًا يَعْلَمُ أَنَّهُ لَنْ يُصِيبَهُ إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ الشَّهِيدِ تَابَعَهُ النَّضْرُ عَنْ دَاوُدَ [ر: ۳۲۸۷]

طاعون چه په يو علاقه كښې خور شى او يو سړې هلته پاتې شى دې يقين سره چه الله تعالى څه په تقدير كښې ليكلې وى هم هغه به كيږى نو داسې كس ته به د شهيد برابر اجر ملاويږى ، مقصد دا دې چه يو مسلمان د طاعون والا علاقه كښې په يقين د رضا بالقضاء سره پاتې شى او ددې خبرې ئې پوخ ايمان وى چه د تقدير ليك نه بدليږى ، كه تقدير كښې خما په دې باندې مبتلاء كيدل ليكلې وى نو مبتلاء به شم او كه نه ئې وې ليكلې نو د دې وبا د خوريدو سره به هم څه په هر حال كښې بچ پاتې يم ، اگر چه د داسې سړى مرگ په طاعون نه وى شوې ، خو بيا هم ده ته په داسې علاقه كښې په دې يقين سره اوسيدو باندې د شهيد برابر اجر دې

د طبرانى په يو حديث كښې راځى چه آخرت كښ به په طاعون سره د مړ كيدو والا او د شهيدانو زخمونه يو شان وى ، د حديث الفاظ دى :"يأتى الشهداء و التوفون بالطاعون ، فيقول أصحاب الطاعون : نحن شهداء ، فيقال : أنظروا فإن جراحهم كجراح الشهداء تسيل ما كريح المسك : فهم شهداء ، فيجدونهم كذلك" (۱)

تابعه النضر عن داود يعنى د حبان بن هلال متابعت نضر بن شميل كړيدې امام بخارى دا حديث وړاندې موصول ذكر كړيدې (۲)

## ۳۱=باب الرقى بالقرآن والمعوذات

[۵۴۰۳] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْفُثُ عَلَى نَفْسِهِ فِي الْمَرَضِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ فَلَمَّا ثَقُلَ كُنْتُ أَنْفِثُ عَلَيْهِ بِهِنَّ وَأَمْسَحُ بِيَدِ نَفْسِهِ لِبَرَكَتِهَا فَسَأَلْتُ الزُّهْرِيَّ كَيْفَ يَنْفِثُ قَالَ كَانَ يَنْفِثُ عَلَى يَدَيْهِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ [ر: ۴۱۷۵]

---

(۱) مجمع الزوائد ، كتاب الجنائز، باب فى الطاعون ، و ما تحصل به الشهادة : ۲ \ ۳۱۴ ، و فيه إ. ماعيل بن عباس و فيه كلام و حديثه عن أهل الشام مقبول و هذا منه )

(۲) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۳۹ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ۴۵۶ )

رُقى ( د راء د ضمه او د قاف د فتحه مقصوره سره ( الف مقصوره )) د رقية جمع ده ، رقية دم او شُف كولو ته وائي
قرآن كريم او معوذات سره دم شُف كول بالاتفاق جائز دى ، امام بخارى رحمه الله مقصد په ترجمة الباب سره ددې د جواز بيان دې ، د معوذات نه د قرآن كريم هغه ټول آيتونه مراد دى چه هغې كښې د شيطان او د ده د شر او د آفتونو نه پناه غوښتې شويده ، او يا ددينه قل أعوذ برب الناس او قل أعوذ برب الفلق دواړه سورتونه مراد دى ، دا اګر چه دوه سورتونه دى او " معوذات " جمع ده خو د جمع اطلاق په دوه هم كيږى ، او دا هم ويلې شى چه سورتونه خو دوه دى خو ديكښې آيتونه د دوه نه زيات دى دې وجه نه د جمع صيغه دوى دپاره استعمال شوه ، (١)
دم شُف كول جائز دى خو ددې د جواز دپاره دوه شرطونه دى - يو دا چه د دم الفاظو كښې داسې الفاظ نه وى چه هغه شركى وى يا موهم د شرك وى يا ئې معنى مجهوله وى ، دويم دا چه دم مؤثر بالذات او حقيقى سبب اونه ګڼړلې شى ، (٢)
بعض روايتونو كښې د دم نه حضور اكرم ﷺ منع فرمائيلې ده ، (٣) دينه هم هغه دم مراد دې چه كومو كښې شركى الفاظ وى يا دا دم خلق مؤثر حقيقى ګڼړلو عقيده لرى
روايت د باب كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه نبى كريم ﷺ په كوم مرض كښې وفات شو ، ديكښې به دوى په خپل ځان باندې معوذات دم كول ، او چه كله بيمارى سخته شوه نو ما به په دوى باندې معوذات دم كول او د دوى لاس به مې د دوى په بدن د بركت دپاره راكښلو ، راوى وائى چه ما د زهرى نه تپوس اوكړو چه څنګه به ئې دم كولو ، نو دوى اوويل چه په خپلو لاسونو باندې به ئې شُف اوكړو بيا به ئې دا په خپل مخ مبارك راښكل

## بَابُ الرُّقَى بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ

وَيُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٥٤٠٥]
[٥٤٠٤] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَوْا عَلَى حَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَلَمْ يَقْرُوهُمْ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ إِذْ لُدِغَ سَيِّدُ أُولَئِكَ فَقَالُوا هَلْ مَعَكُمْ مِنْ دَوَاءٍ أَوْ رَاقٍ فَقَالُوا إِنَّكُمْ لَمْ تَقْرُونَا وَلَا نَفْعَلُ حَتَّى تَجْعَلُوا لَنَا جُعْلًا فَجَعَلُوا لَهُمْ قَطِيعًا مِنَ الشَّاءِ فَجَعَلَ يَقْرَأُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَيَجْمَعُ بُزَاقَهُ وَيَتْفِلُ فَبَرَأَ فَأَتَوْا بِالشَّاءِ فَقَالُوا لَا نَأْخُذُهُ حَتَّى نَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلُوهُ فَضَحِكَ وَقَالَ وَمَا أَدْرَاكَ أَنَّهَا رُقْيَةٌ خُذُوهَا وَاضْرِبُوا لِي بِسَهْمٍ [ر:٢١٥٦]

---

(١) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٢ ، ارشاد السارى ١٢ \ ٤٥٧ )
(٢) فتح البارى : ١٠ \ ٢٤٠ )
(٣) فتح البارى : ١٠ \ ٢٤٠ ، ٢٤١ )

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د سورت فاتحه د دم هغه مشهوره واقعه بيانوی چه کومه اصحابو حضراتو ته په زمانه د نبوت کښې پيښه شوې وه چه څو اصحاب د عربو يو قبيلې ته ورغلل چه دوی کښې مشهور صحابی حضرت ابو سعيد خدری ﷛ هم وو - د قبيلې خلقو د دوی ميلمستيا اونکړه ، ديکښې د قبيلې سردار مار اوچيچلو نو دوی د اصحابو نه تپوس اوکړو چه تاسو سره څه دوا يا څوك دم کوونکې شته ؟ نو اصحابو اوويل : تاسو خلقو څمونږ ميلمستيا اونکړه ، دې وجه نه چه ترکومې تاسو مونږ لره څه معاوضه مقرر نه کړئ دغه وخته پورې به مونږ څه نه کوو ، په دې باندې دوی د څو بکرو ورکول منظور کړل ، نو حضرت ابو سعيد خدری ﷛ په ده سورت فاتحه ويل شروع کړل او د خپلې خُلې لاړې ئې په ده توك کړې او اومږلې ، نو دا سړې روغ شو ، بکرئ ئې راوړې نونورو اصحابو اوويل چه مونږ دا به تر هغه وخته نه اخلو چه تر څو د حضور اکرم ﷺ نه مونږ ددې باره کښې تپوس اونکړو ، حضور ته چه کله دا واقعه بيان شوه نو دوی مسکې شو او وې فرمائل تاسو ته څنګه معلومه شوه چه سورت فاتحه دم دے ، تاسو دا بکرئ واخلئ او څما حصه هم په کښې اوکړئ

**قوله: فلم يقروها:** دوی د اصحابو ﷡ ميلمستيا اونکړه ، **حتى تجعلوا لنا جعلا: جُعْل** ( د جيم په ضمه او د عين په سکون ) بدلې او معاوضه ته وائی ، **قطيعا من الشاء:** د بکرو رمه ، **قطيع** : ډلې او رمې ته وائی **شاء د شاة** جمع ده بکرئ ته وائی

بزاق : لاړے ، يتفل : باب ضرب او نصر دواړو نه راځی ، توك کول -

**قوله: ويذكر عن ابن عباس عن النبي صلى الله عليه وسلم:** يعنى **رقية بالفاتحة** حضرت ابن عباس ﷛ هم د حضور اکرم ﷺ نه نقل کړيدې لکه چه وړاندې باب کښې هم دا واقعه حضرت ابن عباس ذکر کړې ده

**يو اشکال او ددې جوابونه** :امام بخاری رحمه الله " يذكر " صيغه د مجهول استعمال کړيده ، چه صيغه د تمريض ده ، حال دا دې چه د ابن عباس دا روايت ضعيف نه دې بلکه امام بخاری په راتلونکی باب کښې دا په خپل سند سره نقل کړيدې نو بيا د " يُذكر " صيغه د مجهول ئې ولې استعمال کړه ؟

① ددې يو جواب خو دا ورکړې شويدې چه سورت فاتحه سره د دم کولو واقعه خپله حضور اکرم ﷺ سره نه ده راپيښه شوې ، دا دم دوی نه دې کړې ، بلکه يو صحابی کړې دې او دوی ددې تقرير او تصويب کړيدې نو د **رقية بالفاتحة** نسبت حضور اکرم ﷺ ته خو په معنوی لحاظ سره کيدې شی چه دوی ددې تقرير او تصويب کړيدې خو تصريحی او حقيقی اعتبار سره د دې نسبت دوی ﷺ ته نشی کيدې ، امام بخاری رحمه الله د " يذكر " مجهول صيغه راوړله او دې نکتې ته ئې اشاره اوکړه - (١)

(١) فتح البارى : ١٠\٤٤٣ . عمدة القارى : ٢١\٢٦٣)

② او دويم جواب ئې دا ورکړې شويدې چه کيدې شي حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه يو روايت دې سلسله کښې منقول وی خو دا روايت د امام بخاری په شرط نه دې نو دې وجه نه امام ″ يذکر ″ سره دې روايت ته اشاره اوکړه ، ګويا راتلونکې باب کښې د ابن عباس والا روايت مراد نه دې څه بل يو روايت مراد دې (١)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د تلاش او د تتبع سره ما ته داسې څه روايت تر اوسه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ندې ملاو شوې (٢)

## ٣٣=بَابُ الشَّرْطِ فِي الرُّقْيَةِ بِقَطِيعٍ مِنْ الْغَنَمِ

[٥٤٠٥] حَدَّثَنِي سِيدَانُ بْنُ مُضَارِبٍ أَبُو مُحَمَّدٍ الْبَاهِلِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو مَعْشَرٍ الْبَصْرِيُّ هُوَ صَدُوقٌ يُوسُفُ بْنُ يَزِيدَ الْبَرَّاءُ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ الْأَخْنَسِ أَبُو مَالِكٍ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرُّوا بِمَاءٍ فِيهِمْ لَدِيغٌ أَوْ سَلِيمٌ فَعَرَضَ لَهُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَاءِ فَقَالَ هَلْ فِيكُمْ مِنْ رَاقٍ إِنَّ فِي الْمَاءِ رَجُلًا لَدِيغًا أَوْ سَلِيمًا فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ عَلَى شَاءٍ فَبَرَأَ فَجَاءَ بِالشَّاءِ إِلَى أَصْحَابِهِ فَكَرِهُوا ذَلِكَ وَقَالُوا أَخَذْتَ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ أَجْرًا حَتَّى قَدِمُوا الْمَدِينَةَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخَذَ عَلَى كِتَابِ اللَّهِ أَجْرًا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَقَّ مَا أَخَذْتُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللَّهِ

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دے چه کُه څوك په دم درود کښ د څناورو د يو رمې شرط اولګوي نو شريعت کښ ددې جواز شته

د باب ترلاندې چه امام کوم حديث نقل کړيدې ديکښې هم هغه واقعه ذکر ده چه کومه دينه وړاندې باب کښې تيره شوه دواړو حديثونو کښې هم يو واقعه ده

**قوله:** إن أحق ما أخذتم عليه أجرا كتاب الله: دوی اوفرمائل چه په کومو څيزونو تاسو اجرت تعليم او ددې په دم کولو اجرت اخستل جائز دی (٣)

د احنافو حضراتو او د حنابله په نزد د کتاب الله په تعليم باندې اجرت اخستل جائز نه دی (٤) او دوی د لاندينی احاديثو نه استدلال کوی :

---

١) فتح الباری : ١٠\٤٤٣)

٢) فتح الباری : ١٠\٤٤٣)

٣) ) عمدة القاری : ١٢\٩٥ ، المغنی لابن قدامة ، كتاب الإجارة باب ما يعطى فی الرقية .....١٢\٩٥ و كتاب الصداق و فصول : ما يجوز أن يكون مهرا و ما تستحقه الزوجة إن لم يتم تسمية لامهر : ٧\١٦٤ ، ١٦٥ ( رقم الترجمة : ٥٥٥٧ ) ، الفتاوی البزازية علی هامش الفتاوی الهندية ، كتاب الإجارات ، نوع فی تعليم القرآن و الحرف : ٥\٣٩ )

٤) ) عمدة القاری : ١٢\٩٥ ، المغنی لابن قدامة و كتاب الصداق و فصول : ما يجوز أن يكون مهرا و ما تستحقه الزوجة إن لم يتم تسمية لامهر : ٧\١٦٤ ، ١٦٥ ( رقم الترجمة : ٥٥٥٧ )[بقيه برصفحه آئنده...

① دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه روایت امام ابو داود او ابن ماجه نقل کړیدې . دے وائی چه ما اصحاب صفه کښې څه کسانو ته د قرآن پاك تعلیم ورکړو نو دوی کښې یو کس ما ته یو لیندکۍ په هدیه کښې راکړه ، نو ما رسول الله ﷺ نه ددې کمان په باره کښې تپوس اوکړو ( چه ما دپاره ددې اخستل صحیح دی او که نه ) نو دوی اوفرمائل : "إن کنت تحب أن تطوق طوقا من نار فاقبلها" (١) او یو روایت کښې دی : "جمرة بین کتفیك تقلدتها" یعني که تا دا لیندکۍ واخسته نو تا د خپلو دوه اوږو مینځ کښې د اور سکروټې اوتړلې - (٢)

په دې حدیث کښې اګر چه کلام شویدې چه دیګښې یو راوی مغیره بن زیاد باندې امام احمد ، بخاری او ابوحاتم کلام کړیدې ، (٣) اګر چه ابن معین او عجلی د ده توثیق کړیدې (٤) خو علامه ابن عبد البر رحمه الله وائی : چه دا حدیث د عباده بن صامت نه په دوه طریقو سره روایت دې ، نو دې وجه نه د محدثینو په نزد دا حدیث مشهور دې (٥)

② ابن ماجه د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت رانقل کړیدې چه ما یو سړی ته د قرآن پاك تعلیم ورکړو ، نو ده ما ته په طور د هدیه یو لیندکۍ راکړه ، ما نبی کریم ﷺ ته ددې ذکر اوکړو نو دوی اوفرمائل "إن أخذتها، أخذت قوسا من نار" نو ما دا واپس کړه (٦)

په دې حدیث هم کلام شویدې او علامه هیثمی فرمائی چه ددې په سند کښې اضطراب دې (٧) خو صاحب الجوهر النقی فرمائی چه دا روایت د حضرت ابی بن کعب نه په متعدد

---

...بقیه ازګذشته] الفتاوی الهندیة ، کتاب الإجارة ، مطلب الإستیجار علی الطاعات : ٤ \ ٦١ ، الفتاوی البزازیة علی هامش الفتاوی الهندیة ، کتاب الإجارات ، نوع فی تعلیم القرآن و الحرف : ٥ \ ٣٩ ) تنقیح الفتاوی الحامدیة ، کتاب الإجارة و مطالبه ، الفتوی علی جواز الإجارة علی تعلیم القرآن : ٢ \ ١٣٧ و بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع ، کتاب الإجارة : ٦ \ ٨ ، ٩ ، ١٠ ، ١١ ، ١٢ و ١٣ ، ١٤ ، رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الإجارة ، مطلب فی الإستیجار علی الطاعات و مطلب تحریر مهم فی عدم جواز الإستیجار علی التلاوة و التهلیل و نحوه مما لا ضرورة إلیه : ٦ \ ٥٥ ، فتاوی قاضیخان ، کتاب الإجارات : ٣ \ ٢٠ ، فتاوی حقانیه ، کتاب الإجارة ، امامت او تعلیم قرآن پر اجرت لینآ کا حکم : ٦ \ ٢٤٨ ، إمداد الفتاوی ، تعلیم و تعلم او کتب مدارس کاحکم : ٤ \ ٧٩ ، ٨٥ ، کفایت المفتی ، کتاب المعاش ، پهلا باب نوکری ، اجرت کرایه ، تعلیم ، قرآن ، اذان اور ملازمت پر اجرت کا حکم : ٧ \ ٣٢٦ ، أحسن الفتاوی ، کتاب الإجارة ، امور دینیه پر اجرت کا حکم : ٧ \ ٢٨٧ )

(١) سنن أبی داود ، کتاب الإجارة ، باب کسب المعلم : ٣ \ ٢٦٤ ) و سنن ابن ماجه ، کاب التجارات ، باب الأجر علی تعلیم القرآن : ٢ \ ٧٢٩ ( رقم الحدیث : ٢١٥٧)

(٢) سنن أبی داود ، کتاب الإجارة ، باب کسب العلم : ٣ \ ٢٦٥ ( رقم الحدیث : ٣٤١٧ ) )

(٣) تهذیب الکمال : ٢٨ \ ٣٦١ ، ٣٦٠)

(٤) تهذیب الکمال : ٢٨ \ ٣٦١ )

(٥) إعلاء السنن ، کتاب الإجارة ، باب الأجرة علی تعلیم القرآن : ١٦ \ ١٧١ )

(٦) سنن ابن ماجه ، کتاب التجارات ، باب الأجر علی القرآن : ٢ \ ٧٣٠ ( رقم الحدیث : ٢١٥٨ )

(٧) مجمع الزوائدللهیثمی ، کتاب البیوع ، باب الأجر علی تعلیم القرآن و غیر ذلک : ٤ \ ٩٥ )

طريقو سره نقل دي ، علامه ذهبی دا په يو مرسل طريقه سره هم نقل کړيدي او دا طريقه دوی جيد الاسناد ګرخولې ده [1]

③ امام احمد بن حنبل رحمه الله يو روايت د عبدالرحمن بن شبل نه نقل کړيدې چه رسول الله ﷺ فرمائلي دی "إقرؤوا القرآن، ولاتأكلوا به" -

④ علامه زيلعی رحمه الله په نصب الرايه کښې د حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه نه يو مرفوع حديث رانقل کړيدې دوی فرمائلي دی "من أخذ قوسا على تعليم القرآن، قلده الله من نار" [2]

په دې احاديثو کښې اګر چه په بعضو کلام شويدې خو چه دا ټول يو ځائې کړې اوويې ګورې نو دينه استدلال کيدې شي

د حنفيه او حنابله د طرفه د حديث د باب مختلف جوابونه ورکړې شويدی

① حديث دباب په وجه د احاديثو د نهی او د حرمت منسوخ دې . خو د نسخ دپاره د تاريخ معرفت ضروری دې او دلته هيڅ څه دليل نشته دې چه هغې سره معلومه شی چه تاريخ د احاديثو د نهی روستو دې دې وجه نه دا جواب کمزورې دې - [3]

② په حديث د باب کښې چه کومه واقعه ده ، ديکښې د معاهدې تر لاندې ددې قبيلې په ذمه ميلمستيا ورکول لازم وو دوی سره ددې ميلمستيااو نکړه ، دې وجه نه حضور ﷺ د دوی د بکرو اخستو اجازت ورکړو [4]

③ دريم جواب دا ورکړې شويدې چه دم قربت ( عبادت ) محضه نه دې بلکه دا د علاج د قبيلې څخه دې . دې وجه نه په دې اجرت اخستل جائز دی ، خو د قرآن کريم تعليم خالص قربت دې دې وجه نه په دې باندې اجرت اخستل جائز نه دی ، يعنی قرآن کريم که اوويلې شی او په دې څوك دم کړې شی نو په دې اجرت اخستې شی خوپه تعليم د قرآن نه شی اخستې - [5]

خو متاخرين احنافو په تعليم د قرآن باندے د اجرت د جواز فتوی ورکړيده ، ځکه چه په خير القرون کښې د قرآن معلمينو دپاره سرکاری تنخواه ګانې مقرر وې ، دې وجه نه متقدمينو اجرت اخستل ناجائز ګرځولې وو ، خو اوس چه د سرکاری عطياتو او وظائفو دا سلسله بنده شويده ، دې وجه نه د ضرورت په وجه متاخرينو د جواز فتوی ورکړيده - [6]

سند کښې د امام بخاری رحمه الله شيخ سيدان بن مضارب دې ، سيدان د سين په کسره او د ياء په سکون سره دې ، د ده کنيت ابو محمد او نسبت باهلی دې ، ۲۲۴ ھ کښې دے

---

[1] ) السنن الكبرى مع الجوهر النقي و كتاب الإجارة ، باب من كره أخذ الأجرة على التعليم : ۶\۱۲۶)

[2] ) ) مسند الإمام أحمد بن حنبل : ۳\۴۲۸ )

[3] ) نصب الراية لأحاديث الهداية ، كتاب الإجارة ، باب الإجارة الفاسدة : ۴\۱۳۸ ( رقم الحديث : ۶۸۲۴ )

[4] ) ) عمدة القاری : كتاب الإجارة ، باب ما يعطى فى الرقية : ۱۲\۹۶ )

[5] ) ) عمدة القاری ، كتاب الإجارة باب ما يعطى فى الرقية : ۱۲\۹۶)

[6] ) عمدة القاری ، كتاب الإجارة باب ما يعطى فى الرقية : ۱۲\۹۶)

وفات شویدې ، ( [1] ) بخاری کښې د دوی صرف هم دا یو روایت دې - ( [2] )

بل راوی ابو معشر یوسف بن یزید دې ، بَرَّاء د ده لقب دې ځکه چه ده به غشي تیره کول ، امام بخاری رحمه الله دې صدوق گرځولې دې ، امام مسلم هم دده حدیث نقل کړیدې ، خو یحي بن معین ده ته ضعیف ویلې دې - ( [3] )

دریم راوی عبید الله بن اخنس دې ، دې هم د اکثر ائمه د جرح او د تعدیل په نزد ثقه دې ، خو ابن حبان دده متعلق فرمائلې دی يخطئ كثيرا - ( [4] )

ددې درې وارو په یو ځائې په صحیح بخاری کښې هم دا یو حدیث دې ، هَو د عبد الله بن اخنس یو حدیث په کتاب الحج کښې او د ابومعشر یو حدیث په کتاب الاشربة کښې هم امام بخاری رانقل کړیدې ( [5] )

**د تعویذ حکم** : دم کول خو ذکر شوې شرطونو سره بالاتفاق جائز دې ، خو د تعویذ باره کښې بعض حضرات وائي چه جائز نه دې ، دوی د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د روایت نه استدلال کوی چه حضور اکرم صلی الله فرمائلې دی "إن الرقى والتمائم والتولة شرك" ( [6] ) تمائم د تمیمة جمع ده تعویذ ته وائی ، چه دیته دې حدیث کښې شرك ویلې شویدې ، خو د جمهور عالمانو په نزد تعویذ لیکل او تړل جائز دی، په دې شرط چه دا په شرکی یا په موهم دشرك یا مهمل مجهول المعنی الفاظو باندې مشتمل نه وی - ( [7] )

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په حدیث کښې چه رقی او تمائم ته چه شرك ویلې شویدې نو دینه هغه دم او تعویذ مراد دې چه دا په شرکی الفاظو مشتمل وی یا دې لره څوك مؤثر حقیقي اوگڼړی ( [8] )

په اصحابو کښې حضرت عبد الله بن عمر ، حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه دتعویذ ثبوت ملاویږی ، ابن ابی شیبه د عمرو بن شعیب په طریق سره د حضرت عبد الله بن عمر روایت

---

[1]) عمدة القاری ، کتاب الإجارة باب ما یعطی فی الرقیة : ۱۲\۹۶ )

[2]) ) مهذیب الکمال : ۱۲\۳۱۹ ( رقم الترجمة : ۲۶۷۳ ) و تهذیب التهذیب : ٤\۲۹٤ )

[3]) تهذیب الکمال : ۱۲\۳۱۹ )

[4]) ) تهذیب الکمال : ۳۲\٤۷۷ ، الجرح و التعدیل : ۹\( رقم الترجمة : ۹۸۶ ) ، ابن حبان : ۷\۶۳۷ )

[5]) عمدة القاری : ۲۱\۲۶۳ )

[6]) ) سنن أبی داود ، کتاب الطب ، باب فی تعلیق التمائم : ٤\۹ ( رقم الحدیث : ۳۸۸۳ ) ، سنن ابن ماجه ، کتاب الطب ، باب تعلیق التمائم : ۲\۱۱۶۶ ( رقم الحدیث : ۳۵۳۰ )

[7]) ) فتح الباری : ۱۰\۲٤۰ ، رد المحتار علی الدر المحتار ، کتاب الحظر و الإباحة : ۶\۳۶۳ ، او اوگورئ کفایت المفتی : ۹\۷۷ ، باب دوم ، عملیات و تعویذات ، فتاوی حقانیه کتاب الکراهیة و الإباحة ، باب التداوی : ۲\٤۰۰ )

[8]) ) فتح الباری : ۱۰\۲٤۱ ، رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الحظر والإباحة ، فتاوی حقانیه : ۱۲\٤۰۰ )

نقل کوی ، چه کوم سړی په خوب کښې یریږی ، حضور اکرم ﷺ دده باره کښې فرمائلي دی چه دې دا کلمات وائی : "بسم الله أعوذ بكلمات الله التامات من غضبه ، و سوء عقابه ، و من شر عباده ، و من شر الشياطين و أن يحضرون ....." روایت کښې دی چه حضرت عبد الله بن عمر به خپلو بچو ته دا کلمات خودل او چه کوم بچی د ازده کولو قابل نه وو نودا کلمات به ئې ورته اولیکل او غاړه کښې به ئې ورته واچول - (۱)

د حضرت عبدالله بن عباس نه نقل دی چه ده به د هغه ښځې دپاره چه دا به د اولاد د راوړو په درد کښې مبتلاء وه دا کلمات فائده مند ګڼړل "بسم الله لا إله إلا الله الحليم الكريم ، سبحان الله رب العرش العظيم ، الحمد لله رب العالمين ، كأنهم يوم يرونهم لم يلبثوا إلا عشية أو ضحاها كأنهم يوم يرون ما يوعدون لم يلبثوا إلا ساعة من نهار بلاغ فهل يهلك إلا القوم الفاسقون"

روایت کښې وړاندې دی چه دا کلمات په کچه توره سیاهی اولیکلې شی او ښځه باندې اوڅکلې شی یا په دې اوبه دم کړې شی او دا د نامه لاندې چرګاؤ کړې شی ، یا ترینه تعویذ جوړ کړې شی او د ښځې په پتون اوتړلې شی - (۲)

راوی علی بن الحسن وائی چه مونږ ته دینه زیات فائده مند څیز نه دې ملاو شوې ، (۳) تابعینو کښې مجاهد ، محمد بن سیرین ، عبید الله بن عبد الله بن عمر ، ضحاك او حضرت سعید بن المسیب رحمهم الله نه د تعویذونو جواز منقول دې (۴)

علامه ابن تیمیه رحمه الله هم په خپله فتاوی کښې د تعویذونو د جواز تصریح کړیده (۵)

**د عملیاتو حکم** : دم ، منتر او د تعویذونو ذکر ذکر شوی شرطونو سره جائز دی ، هم دا حکم د عملیاتو هم دې ، مختلف کلمات ، مختلف وظائف خلق په بعضې مخصوص شمیر او مخصوص پابندو سره وائی ، شرعًا د داسې علمیاتو حکم دا دې چه که دیکښې څه شرکی الفاظ یا مبهم الفاظ نه وی نو جائز دې

دا په اصل کښې د خلقو خپل خپل تجربات وی ، چا د یو خاص غرض دپاره یو کلمه یو لاکهه خله د شپې په وخت کښې اوویله اودده کار اوشو ، ده بیا تجربه اوکړه او بیا کامیاب شو ، دارنګه دغه کس دیته د باقاعده یو وظیفې او د یو عمل شکل ورکوی ، دا دې څوك شرعی حکم او نه ګڼړی ، دا بالکل ددې په شان دې چه څنګه د مختلفو جړو بوټو اثر خلقو

---

(۱) سنن أبی داود ، کتاب الطب ، باب کیف الرقی : ٤\١٢ ( رقم الحدیث : ٣٨٩٣ )

(۲) فتاوی ابن تیمیه ، فصل و یجوز أن یکتب للمصاب و غیره من المرض شیئا من کتاب الله و ذکره بالمراد المباح و یغسل و یسقی : ١٩\٦٤ )

(۳) فتاوی ابن تیمیه ، فصل و یجوز أن یکتب للمصاب و غیره من المرض شیئا من کتاب الله و ذکره بالمراد المباح و یغسل و یسقی : ١٩\٦٤ )

(۴) مسنف ابن ابی شیبه : ٨\٣٩ )

(۵) فتاوی ابن تیمیة : ١٩\٦٤ ، رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة : ٦\٣٦٣ ، إمداد الفتاوی : تعویذات و أعمال : ٤\٨٩ )

په تجربه سره معلوم کړې وی او په مختلف مرضونو کښې ددې انفرادا یا ترکیبا استعمال مفید وی ، نو هم دا صورت د جائز غیر موثر عملیاتو دې چه دا د خلقو د خپلو تجرباتو نتیجه وی (۱)
خو داخبره دې په خیال کښې وی چه عملیاتو سره څه قطعی حکم نه ثابتیږی ، مثلاً بعض خلق د غل معلومولو دپاره عمل کوی نو صرف ددې عمل په وجه یو کس واقعی غل ګنړل او په ده باندے د غلا احکام جاری کول جائز نه دی (۲)

## ۳۴=باب: رُقْيَةِ العَيْنِ

[۵۴۰۶] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ شَدَّادٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ أَمَرَ أَنْ يُسْتَرْقَى مِنَ الْعَيْنِ

[۵۴۰۷] (۴) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ وَهْبِ بْنِ عَطِيَّةَ الدِّمَشْقِيُّ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ الزُّبَيْدِيُّ أَخْبَرَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ زَيْنَبَ ابْنَةِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً فِي وَجْهِهَا سَفْعَةٌ فَقَالَ اسْتَرْقُوا لَهَا فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ تَابَعَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَالِمٍ عَنْ الزُّبَيْدِيِّ وَقَالَ عُقَيْلٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (تابعه عبدالله بن سالم، عن الزبيدى)

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د نظر لګیدو والا باندې د دم اچولو جواز بیانوی رومبې روایت د حضرت عائشه ﷞ دې ، دا فرمائی چه حضور اکرم ﷺ ما ته حکم اوکړو چه بد نظر لګیدو په صورت کښ دم دې اوویلې شی

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۲٤۰)

۲) ) فتح البارى : ۱۰ \ ۲٤۰ و رد المحتار على الدرالمختار ، كتاب الحظر و الإباحة : ٦ \ ۳٦۳ ، إمداد الفتاوى پ تعویذات و أعمال : ٤ \ ۸۸ و قال القرطبى : الرقى ثلاثة أقسام : أحدها ما كان يرقى به فى الجاهلية مما لا يعقل معناه ، فيجب إجتنابه لئلايكون فيه شرک أو يؤدى إلى الشرک ، الثانى : ما كان بكلام الله أو بإسمائه فيجوز فإن كان ماثورا يستحب ، الثالث : ما كان بأسماء غير الله من ملک أو صالح أو معظم من المخلوقات كالعرش ، فهذا ليس من الواجب إجتنابه ولا من المشروع الذى يتضمن الإلتجاء إلى الله و التبرک بأسمائه فيكون تركه أولى ( فتح البارى : ۱۰\۲٤۱ )

۳) ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب استحباب الرقية من العين و النملة و الحمة و النظرة : ٤ \ ۱۷۲۵ ( رقم الحديث : ۲۱۹۵ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الطب ، باب رقية العين : ٤ \۳٦۵ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الطب ، باب من استرقى من العين : ۲ \ ۱۱٦۰ ( رقم الحديث : ۳۵۱۱ )

٤) ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب الرقية من العين والنملة و الحمة و النظرة : ٤ \ ۱۷۲۵ ( رقم الحديث : ۲۱۹۷ )

**قوله: أمرني أو أمر أن يسترقى من العين:** راوى ته شك دې چه حضرت عائشه " امرنى " اوويل او كه " امر " ئې اوويل ، يسترقى : رقيه طلب كول يعنى د بد نظر لګيدو په صورت كښې دوى حكم اوكړو چه په دم كوونكى دې دم كړې شى

دويم روايت د حضرت ام سلمه رضی الله عنها دې چه حضور اكرم ﷺ د دې په كور كښې يو جينۍ اوليدله چه ددې رنګ ( د كمزورۍ په وجه ) زيړ وو ، نو دوى اوفرمائل دا په چا دم كړئ ، ځكه چه ديته بد نظر لګيدلې دې

**سفعة**: زيړ والى او توروالى ته وائى سړې چه كله كمزورې شى نو دده رنګ كله زيړ او كله تور شى ، اصل رنګ باقى نه پاتې كيږى اصل رنګ كښې دا واقع كيدونكې تبديلى چه زيړ والې يا تورواليې دې ديته **سفعة** وائى [1] حافظ ابن حجر رحمه الله وائى چه ددې جينۍ نوم ما ته معلوم نه شو [2]

**دبد نظر باره كښې څو خبرې** : دلته يو څو خبرې ياد اوساتئ

① د بد نظر لګيدل يو ثابت شوې حقيقت دې ، راتلونكې باب كښې روايت راځى ، چه حضور اكرم ﷺ فرمائلې دې : العين حق ، يعنى دا د زمانهٔ جاهليت د نورو باطل رسمونو وهمونو او نظرياتو په شان څه باطل څيز نه دې بلكه حق او ثابت دې

② چه چا ته نظر اولګى هغه ته معيون او چه د چا نظر اولګى هغه ته عاين وائى ، ليدونكى ته يو كس يا يو څيز خوښ راشى ، دې ديته د خوښې په نظر ګورى خو دا د خوښې نظر ډير كرتې د معيون دپاره ضررى شى ،او ده دپاره د فساد او د مرض ذريعه جوړه شى ، ديكښې ډير كرتې د كتونكى څه اختيار او اراده شامل نه وى ، هم دا وجه ده چه د مور پلار نظر هم خپلو بچو ته لګى - [3]

ددې نظر د وجه نه دا فساد ولې پيدا كيږى ؟ بعض حضراتو ددې حقيقت معلومولو كښې كوشش كړيدې او دا ئې ويلې دى چه د كتونكى د سترګو نه زهريلى شعاع ګانې اوځى او داخى او د معيون په بدن كښې ننوځى او د فساد او د خرابۍ ذريعه جوړيږى ، دا زهريلى شعاع ګانې بعضې خلقو كښې زياتې او بعضو كښې كم وى - [4]

خو زړه ته د پريوتو خبره دا ده چه دا د الله تعالى و تبارك پيدا كړې يو سبب دې چه څنګه د فساد اود خرابۍ اود ورانى نور ډيراسباب دى نودا هم د دغه اسبابو په شان يو سبب دې[5]

③ حضور اكرم ﷺ په حديث د باب كښې فرمائلې دى چه بد نظر لګيدو باندے دے په چا دم كړې شى ، هغه دم څه دې د هغې ذكر په روايت كښې نشته دې

---

[1] ) فتح البارى : ١٠\٢٤٨ )
[2] ) فتح البارى : ١٠\٢٤٨ )
[3] ) فتح البارى : ١٠ ٢٤٥ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٠)
[4] ) فتح البارى : ١٠ ٢٤٥ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٠)
[5] ) فتح البارى : ١٠ ٢٤٥ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٠)

د سورت قلم آيت ( فاجتباه ربه فجعله من الصالحين وإن يكاد الذين كفروا ليزلقونك بأبصارهم لما سمعوا الذكر ويقولون إنه لمجنون ) د بد نظر دپاره په طور د دم مفيد او مشهور دي - ([1])
دا رنګه نظر لګوونکي کُه "ما شاء الله" "لاحول ولا قوة إلا بالله" اووائى نو ددې په وجه هم د بد نظر اثر ختميږى - ([2])
د دم نه علاوه د بد نظر لرې کولو دپاره په مختلفو علاقو کښې د خلقو نورې تجرباتى طريقې هم دى
**د بد نظر لرې کولو طريقه**: حديث کښې هم ددې يو طريقه راغلې ده چه عاين دې د خپل بدن بعض حصې اووينځى او دا اوبه دې په معيون واچوى ، نو د بد نظر اثر به ختم شى ،
امام ابو داود رحمه الله د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت نقل کړيدې ، دوى فرمائى "كان يؤمر العاين فيتوضأ، ثم يغتسل منه المعين" - ([3])
حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه ته د حضرت عامر بن ربيعه رضي الله عنه نظر اولګيدو او دې بيمار شو ، حضور اکرم ﷺ ته پته اولګيده نو دوى ته ئې د غسل حکم اوکړو ، نو دوى خپل مخ ، لاسونه ، څنګلې ، کنډۍ ، د پښو ظرفونه او د لنګ دننه حصه په يو تبر کښې اووينځله او دا اوبه ئې په حضرت سهل واچولې نو دې روغ شو - ([4])
امام نووى رحمه الله په شرح د مسلم کښې ددې تفصيل رانقل کړيدې چه عاين ته يو تب دې راوړې شى خو دا تب به په زمکه نه اږدى ، دې به په اوبو غړغړې اوکړي او د غړ غړو اوبه به په تب کښې واچوى ، بيا به مخ اووينځى ، بيا په ګس لاس دې اوبه واخلى او د ښى لاس پنجه دې اووينځى او بيا دې په ښى لاس اوبه واخلى او د ګس لاس دې څنګله صرف اووينځى ، د مينځ حصه دې نه وينځى ، بيا دې پښې او د لنګ دننه حصه اووينځى ، دينه د ملا د ښى طرف لاندې د لنګ والا حصه مراد ده ، بيا دې دغه غساله ( اوبه ) په معيون واچوى نو دې به روغ شى - ([5])
**فائده**: د باب دويم حديث کښې امام بخارى نه تر حضرت عروه بن زبير پورې شپږ راويان دى او د ټولو نوم " محمد " دې ، داسې دا روايت " مسلسل بالمحمدين دې ① محمد بن اسماعيل امام بخارى ② محمد بن خالد ③ محمد بن وهب ④ محمد بن حرب ⑤ محمد بن الوليد ۶ محمد بن شهاب زهرى - ([6])

---

[1]) معارف القرآن : ۸\۵۳۹ ، انوار البيان : ۹\۴۰۵ )
[2]) فتح البارى : ۱۰\۲۵۲ )
[3]) ) سنن أبى داود ، كتاب الطب ، باب ما جاء فى العين : ۴\۹ ( رقم الحديث : ۳۸۸۰ )
[4]) موطاء امام مالک ، كتاب العين ، باب الوضوء من العين : ۲\۹۳۸ )
[5]) شرح مسلم للنووى ، باب الطب والمرض و الرقى : ۲\۲۲۰ ، عمدة القارى : ۲۱\۲۶۶ )
[6]) عمدة القارى : ۲۱\۲۶۵ )

د محمد بن وهب بن عطیه په بخاری کښې صرف هم دا یو حدیث دې (۱)

**قوله: وقال عقيل عن الزهري: أخبرني عروة عن النبي صلى الله عليه وسلم:** دا تعلیق دې ، امام حاکم دا موصول نقل کړیدې - (۲)

تابعه عبد الله بن سالم عن الزبیدی
یعنی د محمد بن حرب متابعت عبد الله بن سالم هم کړیدې ، دا متابعت امام ذهلی په زهریات کښې موصولاً نقل کړیدې - (۳)

## ۳۵-باب: العَيْنُ حَقٌّ

[۵۴۰۸] (۴) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعَيْنُ حَقٌّ وَنَهَى عَنِ الْوَشْمِ [ر: ۵۶۰۰]

د بعض خلقو د نظر لګیدو نه انکار کړیدې ، (۵) امام بخاری په دې باب کښې ددې تردید کړیدې چه د نظر لګیدل حق او حقیقت دې

حدیث باب کښې دی " (العين حق) ونهى عن الوشم " وشم په بدن کښې په ستنه خالونه لګولو ته وائی ، د حدیث په دواړو جملو کښې په ظاهره څه مناسبت نشته دې

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه یو مجلس کښې څه خلقو د عین باره کښې او د وشم متعلق تپوس اوکړو نو دوی عین حق اوګرځولو او د وشم نه ئې منع اوکړه - (۶)

حافظ ابن حجر رحمه الله د دواړو جملو مینځ کښې څو نور مناسبتونه بیان کړیدی خو علامه عینی دا رد کړیدی ، مثلاً چه څنګه د وشم په ذریعه د اندام د اصلی رنګ نه علاوه یو بل مصنوعی رنګ پیدا کیږی بد نظر هم دارنګه د اندام دننه یو غیر اصلی رنګ پیدا کوی ، دا دواړه په غیر اصلی رنګ پیدا کولو کښې شریك دی ، ددې اشتراك په وجه دې دواړو مینځ کښې مناسبت دې

دویم مناسبت حافظ ابن حجر رحمه الله دا بیان کړیدې چه وشم ډیر کرتې دې دپاره کیږی چه په دې سره د بد نظر نه بچ کیدل اوشی ، څکه چه وشم سره د اندام خپل اصلی رنګ او ښائست نه پاتې کیږی ، د بد نظر نه ساتلو دپاره ډیر کرتې د وشم په ذریعه د دې فطری

---

۱) عمدة القاری : ۲۱\۲۶۵ ، فتح الباری : ۱۰\۲۴۷)
۲) فتح الباری : ۱۰\۲۴۹)
۳) فتح الباری : ۱۰\۲۴۸ ، عمدة القاری ۲۱\۲۶۶)
۴) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی كتاب اللباس ، باب الواشمة ( رقم الحديث : ۵۶۰۰ و أخرجه مسلم فی كتاب السلام ، باب الطب و المرض و الرقی : ۴\۱۷۱۹ رقم الحديث : ۲۱۸۷ و أخرجه ابوداود فی كتاب الطب ، باب ما جاء فی العين : ۴\۹ ( رقم الحديث : ۳۸۷۹ )
۵) فتح الباری : ۱۰\۲۴۸ ، عمدة القاری ۲۱\۲۶۶)
۶) عمدة القاری : ۲۱\۲۶۷)

خوبصورتی متاثر کوی ، حدیث شریف کښې دوشم ممانعت او د بد نظر اثبات شویدې ، ددې طرف ته اشاره کولو دپاره چه نظر حق دې او چه کله نظر لګیدل په تقدیر کښې وی نو بیا د وشم سره ددې بندیدل نشی کیدې -
خو علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دا دواړه جُدا جُدا جملې دی چه د دوه جُدا جُدا په سوالونو په جواب کښې ویلې شویدی ، د دې دواړو مینځ کښې دا قسم مناسبتونه تلاش کول خالص تکلف دې - (۱)

## ۳۶--باب: رُقْيَةِ الحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ

[۵۴۰۹] (۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الشَّيْبَانِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ الرُّقْيَةِ مِنْ الْحُمَةِ فَقَالَتْ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّقْيَةَ مِنْ كُلِّ ذِي حُمَةٍ
یعنی د مار او د لړم د چیچلو په وخت د دم او د رقیه جواز ئې بیان کړیدې - حدیث کښې د حیة او دعقرب صراحتا ذکر نشته دې ، خو دحمة ذکر دې او دا وړاندې تیر شو چه حمة دلړم یا د یو بل زهریلا څیز چیچلو ته وائی

## ۳۷--باب: رُقْيَةِ النَّبِيِّ ﷺ

[۵۴۱۰] (۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ دَخَلْتُ أَنَا وَثَابِتٌ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ فَقَالَ ثَابِتٌ يَا أَبَا حَمْزَةَ اشْتَكَيْتُ فَقَالَ أَنَسٌ أَلَا أَرْقِيكَ بِرُقْيَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَلَى قَالَ اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ مُذْهِبَ الْبَاسِ اشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شَافِيَ إِلَّا أَنْتَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا
دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د حضور اکرم ﷺ نه منقول او ماثور د دم الفاظ رانقل کړیدي
رومبی حدیث کښې دی "اللهم رب الناس، مذهب الباس، اشف، أنت الشافی، (۴) لا شافی إلا أنت شفاء لا

---

۱) عمدة القاری : ۲۱\۲۶۷ )
۲) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب السلام ،باب استحباب الرقیة من العین والنملة والحمة والنظرة : ۴\۱۷۲۴ ( رقم الحدیث : ۲۱۹۳ ) و أخرجه النسائی فی الطب ، باب رقیة العقرب : ۴\۳۶۶ ( رقم الحدیث : ۷۵۳۹ )
۳) ) الحدیث أخرجه أبوداود فی کتاب الطب ، باب کیف الرقی : ۴\۱۱ ( رقم الحدیث : ۳۸۹۰ ) و أخرجه النسائی فی کتاب عمل الیوم و اللیلة ، باب رقیة رسول الله صلی الله علیه و سلم : ۶\۲۵۳ ( رقم الحدیث : ۱۰۸۶۱ ) و أخرجه الترمذی فی الجنائز ، باب ما جاء فی التعوذ للمریض : ۳\۳۰۳ ( رقم الحدیث : ۹۷۳ ) )
۴) ) فیه جواز تسمیة الله تعالی بما لیس فی القرآن ، إذا کان له أصل ، فیه قال تعالی : ( و إذا مرضت فهو یشفین ) و أن لا یوهم نقصا ( ارشاد الساری: ۱۲\۲۵۹ )

يغادر سقما " اي الله : د خلقو ربه ، بيمارئ لره ختموونكيه ، ته شفا وركړه ، چه هم ته شفاء وركوونكي ئې ، صرف هم ته شافى ئې ، داسې شفا وركړه چه هيڅ قسم بيمارى پرې نږدى " شفاء د اشف دپاره مفعول مطلق دې او " رب الناس " منادى دې

[٥٣١١\٥٣١٢] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَوِّذُ بَعْضَ أَهْلِهِ يَمْسَحُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى وَيَقُولُ اللَّهُمَّ رَبَّ النَّاسِ أَذْهِبْ الْبَاسَ اشْفِهِ وَأَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا قَالَ سُفْيَانُ حَدَّثْتُ بِهِ مَنْصُورًا فَحَدَّثَنِي عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ

دويم روايت كښې د سليمان بن مهران اعمش شيخ مسلم دې ، دا مسلم بن صبيح همدانى دې ، د ده كنيت " ابو الضحى " دې او د ده كنيت د نوم په مقابله كښې زيات مشهور دې-(٢) علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دا مسلم بن عمران هم كيدې شى - (٣)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله د ده ترديد كړيدې او وائى چه دا صرف يو عقلى احتمال دې څكه چه د مسروق نه مسلم بن عمران هيڅ روايت ما نه دې ليدلې - (٤) علامه عينى رحمه الله فرمائى چه حافظ نه دې ليدلې نو دينه د كرمانى ترديد څنګه كيږى (٥)

خو وړاندے " باب مسح الراقي الوجع بيده " كښې هم دا حديث امام بخارى رحمه الله په دوباره ذكر كړيدې او علامه عينى رحمه الله هم هلته دا تصريح كړيده چه د مسلم نه هم ابو الضحى مراد دې ، (٦) معلومه شوه چه د علامه عينى په نزد هم دينه مسلم ابو الضحى مراد دې ، خو علامه كرمانى باندے د حافظ ابن حجر تنقيد علامه عينى ته ښه اونه لګيدو ، دې وجه نه ده دده ترديد اوكړو

**قوله: قال سفيان : حدثت به منصورا :** دا تعليق نه دې ، بلكه دماقبل سند سره منتصل دې ، سفيان ثورى وائى چه ما دا حديث منصور بن المعتمر ته واورولو نو دوى د " ابراهيم عن مسروق عن عائشة " په طريق سره دا حديث بيان كړو -

---

(١) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب استحباب رقية المريض : ٤ \ ١٧٢٢ ( رقم الحديث : ٢١٩١ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الطب ، باب رقية الحرق : ٤ \ ٣٦٦ ( رقم الحديث : ٧٥٣٨ ) و أخرجه النسائى ايضا فى كتاب عمل اليوم و الليلة ، باب رقية رسول الله صلى الله عليه وسلم : ٦ \ ٢٥٣ ( رقم الحديث : ١٠٨٦١ )

(٢) فتح البارى : ١٠ \ ٢٥٤ ، عمدة القارى : ١٢ \ ٢٦٩ )

(٣) فتح البارى : ١٠ \ ٢٥٤ ، شرح البخارى للكرمانى : ١٢ \ ٢٥ )

(٤) فتح البارى : ١٠ \ ٢٥٣ )

(٥) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٩ ) ) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٩ ) ) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٦٩ )

(٦) عمدة القارى : ٢١ \ ٢٧٢ )

[٥٤١٢]حَدَّثَنِي أَحْمَدُ ابْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْقِي يَقُولُ امْسَحْ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ بِيَدِكَ الشِّفَاءُ لَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا أَنْتَ [ر:٥٣٥١]

د باب دا حديث د امام بخارى رحمه الله نه علاوه اصحاب صحاح كتبو بل چا نه دي نقل كړي - (١)

[٥٤١٣\٥٤١٤]حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ لِلْمَرِيضِ بِسْمِ اللَّهِ تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا يُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا

[٥٤١٤](٢)حَدَّثَنِي صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي الرُّقْيَةِ تُرْبَةُ أَرْضِنَا وَرِيقَةُ بَعْضِنَا يُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حضور اكرم ﷺ به دا دم د مريض دپاره ويلو " بسم الله تربة أرضنا و ريقة بعضنا، يشفى سقيمنا بإذن ربنا " ( د الله په نوم سره دا خموږ د زمكې خاوره ده او موږكښې د بعضو دخُلې لاړې دى ، خموږ مريض به دالله تعالى په حكم سره شفا بيا مومى )

تربة أرضنا خبر دې ، مبتداء " هٰذه " محذوف ده ، د أرض نه مراد يا خو د مدينې منورې زمكه ده يا عامه ده - دارنگه د "بعضنا" نه مراد حضور اكرم ﷺ دې يا دا هم عام دې - (٣) امام نووى رحمه الله ليكلي دى چه د حضور اكرم ﷺ ددې دم طريقه دا وه چه دوى به مسواكه گوته باندې لاړې مباركې راواخستې ، بيا ئې دا په خاوره كښې كيخوده او د خاورې لگيدو پس به ئې دا گوته مباركه د مريض په زخم يا د درد والا په ځائې كيخودله او دا كلمات به ئې ارشاد كړل (٤) د خاورې اثر يخ او اوچ دې ، دې وجه نه دې سره ځائې د

---

(١) عمدة القارى : ٢١\٢٦٩ )

(٢) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب السلام ، باب استحباب الرقية من العين و النملة و الحمة و النظرة : ٤\١٧٢٤ ( رقم الحديث : ٢١٩٤ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الطب ، باب النفث فى الرقية : ٤\٣٦٨ ( رقم الحديث : ٧٥٥٠ ) و أخرجه النسائى ايضا فى كتاب عمل اليوم و الليلة ، باب رقية رسول الله صلى الله عليه وسلم : ٦\٢٥٣ ( رقم الحديث : ١٠٨٦٢ ) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الطب ، باب كيف الرقى : ٤\١٢١ ( رقم الحديث : ٣٨٩٥ ) و أخرجه ابن ماجه فى الطب ، باب ما عوّذ به النبى صلى الله عليه وسلم و ما عُوّذ به : ١٢\١١٦٣ ( قم الحديث : ٣٥٢١ )

(٣) فتح البارى : ١٠\٢٥٦ ، عمدة القارى : ٢١\٢٧٠ ، شرح مسلم للنووى ، باب استحباب رقية المريض : ١٢\٢٢٣ )

(٤) فتح البارى : ١٠\٢٥٦ ، عمدة القارى : ٢١\٢٦٩ ، شرح مسلم للنووى ، باب استحباب رقية المريض : ١٢\٢٢٣ )

زخم او د درد روغيږي ، زخم اوچيږي ، دارنګه لاړو کښې هم دا خصوصيت دې - ([1])
خو امام قرطبی رحمه الله فرمائي چه ددې طبی توجيهاتو د سر نه هڅو ضرورت نشته دې ، بلکه دا د الله تعالی د نوم د برکت اثر کيږي چه مريض د درد او دتکليفه روغيږي - ([2])

**قوله: يشفى سقيمنا:** يشفى صيغه د مجهول ده او په طور د دعا مستعمل ده ، دې صورت کښې " سقيمنا " نائب فاعل کيدو په وجه سره به مرفوع وی او دويم صورت د يشفى معروف هم کيدې شی ، دې صورت کښې فاعل به محذوف وی او " سقيمنا " به د مفعول کيدو په وجه منصوب وی يعنی الله تعالی دې څمونږ بيمار ته شفا ورکړی - ([3])

علامه توربشتی فرمائي چه "تربة أرضنا" نه فطرت د انسان ته اشاره ده او ريقة بعضنا سره نطفې ته اشاره ده ، ګويا په زبان حال سره وائی چه اې الله تا ددې بنده اول اصل د خاورې نه پيدا کړو ، بيا دې دده بنياد د معمولی اوبو نه جوړ کړو ، ده ته شفا ورکول ستا دپاره څه ګران کار نه دې دې وجه نه ته ده ته شفا ورکړه - ([4])

## ۳۸-- باب: النَّفْثِ فِي الرُّقْيَةِ

[۵۴۱۵] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا قَتَادَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الرُّؤْيَا مِنَ اللَّهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ شَيْئًا يَكْرَهُهُ فَلْيَنْفِثْ حِينَ يَسْتَيْقِظُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ وَيَتَعَوَّذْ مِنْ شَرِّهَا فَإِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ وَقَالَ أَبُو سَلَمَةَ وَإِنْ كُنْتُ لَأَرَى الرُّؤْيَا أَثْقَلَ عَلَيَّ مِنَ الْجَبَلِ فَمَا هُوَ إِلَّا أَنْ سَمِعْتُ هَذَا الْحَدِيثَ فَمَا أُبَالِيهَا [ر: ۳۱۱۸]

دې باب کښې امام بخاری د دم کولو په وخت د توک کولو بيان کړيدې
نفث ( د نون په فتحه او د فاء په سکون سره ) نفخ بلا ريق يا نفخ مع ريق قليل ته وائی ، دم کوونکې سرې پوک کوی دې پوک سره ډير کرتې د لاړو څه لږ لږ څاڅکی هم شامل وی او کله ورسره نه وی . ([5]) په پښتو کښې ديته توک کول وائی
روميې روايت د حضرت ابو قتاده ﷺ ( حارث بن ربعی ) دې ، فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی چه دوی فرمائيل چه رويا صالحه د الله تعالی د طرفه او بد خوبونه د شيطان د طرفه وی . چه کله تاسو کښې په خوب کښې خراب څيز اووينی نو د خوبه د بيداريدو په وخت درې خله دې اوتوکی او ددې د شره دې پناه اوغواړی نو دا به ده ته نقصان نه ورکوی .

---

[1]) فتح الباری : ۱۰\۲۵۶ . عمدة القاری : ۲۱\۲۷۰)
[2]) فتح الباری : ۱۰\۲۵۶)
[3]) فتح الباری : ۱۰\۲۵۶ . عمدة القاری : ۲۱\۲۷۰ .)
[4]) فتح الباری : ۱۰\۲۵۶ . عمدة القاری : ۲۱\۲۶۹)
[5]) فتح الباری : ۱۰\۲۵۸ . عمدة القاری : ۲۱\۲۶۹ )

راوی د حدیث حضرت ابو مسلمه ( بن عبد الرحمن بن عوف ) فرمائی چه ددې حدیث د اوریدو نه پس کُه څه د غر نه زیات درون خوب اووینم نو ما ته ددې څه پروا نشته دې

**قوله:** الرؤیا من الله والحلم من الشیطان: رؤیا نه رؤیا صالحه او ښه خوب مراد دې چه د الله تعالی د طرفه بنده دپاره زیرې دې او د حُلم ( په ضمه د حاء او په سکون او په ضمه د لام سره ) نه مراد بد خوبونه دی و اگر چه دواړه قسم خوبونه پیدا کوونکې الله جل شانه دې ، خو د ښو خوبونو نسبت الله تعالی ته د تکریم او تشریف دپاره شویدې ، او د بدو خوبونو نسبت شیطان ته ځکه شویدې چه شیطان په دې خوشحالیږی او راضی وی - (١)

دې حدیث کښې حضور اکرم ﷺ د بدو خوبونو نه د بچ کیدو او ددې د شر نه د محفوظ کیدو طریقه خودلې ده چه د ویخیدو نه پس گس طرف ته اعوذ بالله من الشیطان الرجیم اووایه او درې ځله توک کړه او دده د شر نه پناه اوغواړه نو انشاءالله دا خوب به نقصان ده نه وی ، توک کولو کښې د شیطان نه نفرت او د ده تحقیر او تذلیل کولو ته اشاره ده ، ځکه چه شیطان د بدو خوبونو په وخت خوشحالیږی او دیته حاضریږی - علامه قسطلانی رحمه الله لیکی : وفی النفث إشارة إلی طرد الشیطان الذی حضر رؤیاه المکروهة ، وتحقیرله واستقذار لفعله (٢)

[٥٤١٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ نَفَثَ فِي كَفَّيْهِ بِقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ وَبِالْمُعَوِّذَتَيْنِ جَمِيعًا ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ وَمَا بَلَغَتْ يَدَاهُ مِنْ جَسَدِهِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَلَمَّا اشْتَكَى كَانَ يَأْمُرُنِي أَنْ أَفْعَلَ ذَلِكَ بِهِ قَالَ يُونُسُ كُنْتُ أَرَى ابْنَ شِهَابٍ يَصْنَعُ ذَلِكَ إِذَا أَتَى إِلَى فِرَاشِهِ [ر: ٤١٧٥]

حضرت عائشه فرمائی :چه رسول الله ﷺ به کله خپلې بسترې ته تشریف اوړلو نو په خپلو لاسونو به ئې قل هو الله احد او معوذتین ( سورت فلق او سورت الناس ) اوویلې او دم به ئې کړو او بیا به ئې دواړه لاسونه په خپل نورانی مخ راښکل او چه د بدن کومې کومې حصې ته به رسیدې شو په هغې به ئې راښکلو ، حضرت عائشه ﷞ فرمائی چه کله دوی بیمار شو نو ما ته ئې د داسې کولو حکم به کولو ، راوی د حدیث یونس وائی چه ما ابن شهاب لیدلې وو چه دې به خپلې بسترې ته تللو نو داسې به ئې کولو

دا روایت په کتاب المغازی کښې تیر شویدې

[٥٤١٧] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ أَبِي الْمُتَوَكِّلِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَهْطًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْطَلَقُوا فِي سَفْرَةٍ سَافَرُوهَا حَتَّى نَزَلُوا بِحَيٍّ مِنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ فَاسْتَضَافُوهُمْ فَأَبَوْا أَنْ يُضَيِّفُوهُمْ فَلُدِغَ سَيِّدُ ذَلِكَ الْحَيِّ فَسَعَوْا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ لَا يَنْفَعُهُ شَيْءٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لَوْ أَتَيْتُمْ هَؤُلَاءِ الرَّهْطَ الَّذِينَ قَدْ نَزَلُوا بِكُمْ لَعَلَّهُ

---

١) عمدة القاری : ٢١ \ ٢٧٠ ، ارشاد الساری : ١٢ \ ٤٦٧ )

٢) ) عمدة القاری : ٢١ \ ٢٧٠ ، ارشاد الساری : ١٢ \ ٤٦٧ )

أَنْ يَكُونَ عِنْدَ بَعْضِهِمْ شَيْءٌ فَأَتَوْهُمْ فَقَالُوا يَا أَيُّهَا الرَّهْطُ إِنَّ سَيِّدَنَا لُدِغَ فَسَعَيْنَا لَهُ بِكُلِّ شَيْءٍ لَا يَنْفَعُهُ شَيْءٌ فَهَلْ عِنْدَ أَحَدٍ مِنْكُمْ شَيْءٌ فَقَالَ بَعْضُهُمْ نَعَمْ وَاللَّهِ إِنِّي لَرَاقٍ وَلَكِنْ وَاللَّهِ لَقَدِ اسْتَضَفْنَاكُمْ فَلَمْ تُضَيِّفُونَا فَمَا أَنَا بِرَاقٍ لَكُمْ حَتَّى تَجْعَلُوا لَنَا جُعْلًا فَصَالَحُوهُمْ عَلَى قَطِيعٍ مِنَ الْغَنَمِ فَانْطَلَقَ فَجَعَلَ يَتْفُلُ وَيَقْرَأُ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ حَتَّى لَكَأَنَّمَا نُشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَانْطَلَقَ يَمْشِي مَا بِهِ قَلَبَةٌ قَالَ فَأَوْفَوْهُمْ جُعْلَهُمُ الَّذِي صَالَحُوهُمْ عَلَيْهِ فَقَالَ بَعْضُهُمُ اقْسِمُوا فَقَالَ الَّذِي رَقَى لَا تَفْعَلُوا حَتَّى نَأْتِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَذْكُرَ لَهُ الَّذِي كَانَ فَنَنْظُرَ مَا يَأْمُرُنَا فَقَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا لَهُ فَقَالَ وَمَا يُدْرِيكَ أَنَّهَا رُقْيَةٌ أَصَبْتُمُ اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ بِسَهْمٍ [ر: ٢١٥٦]

د باب دا آخری حدیث تیر شویدې ، دیکښې دی ، " فانطلق فجعل یتفل " د تفل او د نفث تقریبا یو معنی ده ، ددې جملې د وجه امام بخاری دا حدیث ددې باب لاندې ذکر کړیدې

## ٣٩ = بَابُ مَسْحِ الرَّاقِي الْوَجَعَ بِيَدِهِ الْيُمْنَى

[٥٤١٨] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ مُسْلِمٍ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ بَعْضَهُمْ يَمْسَحُهُ بِيَمِينِهِ أَذْهِبِ الْبَاسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا فَذَكَرْتُهُ لِمَنْصُورٍ فَحَدَّثَنِي عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ بِنَحْوِهِ

نبی کریم ﷺ به د دم کولو په وخت کښې خپل ښې لاس د تکلیف په ځائې وهلو

## ٤٠ = بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَرْقِي الرَّجُلَ

[٥٤١٩] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَنْفِثُ عَلَى نَفْسِهِ فِي مَرَضِهِ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ فَلَمَّا ثَقُلَ كُنْتُ أَنَا أَنْفِثُ عَلَيْهِ بِهِنَّ فَأَمْسَحُ بِيَدِ نَفْسِهِ لِبَرَكَتِهَا فَسَأَلْتُ ابْنَ شِهَابٍ كَيْفَ كَانَ يَنْفِثُ قَالَ يَنْفِثُ عَلَى يَدَيْهِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ [ر: ٤١٧٥]

امام بخاری رحمه الله مقصد دا دے چه ښځه که خاوند دم کول غواړی نو سنت کښې دې دپاره جواز شته ، مناسبت د روایت د باب سره ظاهر دې

## ٤١ = بَابُ مَنْ لَمْ يَرْقِ

[٥٤٢٠] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْأُمَمُ فَجَعَلَ يَمُرُّ النَّبِيُّ مَعَهُ الرَّجُلُ وَالنَّبِيُّ مَعَهُ الرَّجُلَانِ وَالنَّبِيُّ مَعَهُ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ لَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ وَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَرَجَوْتُ أَنْ تَكُونَ أُمَّتِي فَقِيلَ

هٰذَا مُوسٰى وَقَوْمُهُ ثُمَّ قِيلَ لِي انْظُرْ فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَقِيلَ لِي انْظُرْ هٰكَذَا وَهٰكَذَا فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَقِيلَ هٰؤُلَاءِ أُمَّتُكَ وَمَعَ هٰؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ وَلَمْ يُبَيَّنْ لَهُمْ فَتَذَاكَرَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا أَمَّا نَحْنُ فَوُلِدْنَا فِي الشِّرْكِ وَلٰكِنَّا آمَنَّا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَلٰكِنْ هٰؤُلَاءِ هُمْ أَبْنَاؤُنَا فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هُمُ الَّذِينَ لَا يَتَطَيَّرُونَ وَلَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَكْتَوُونَ وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ أَمِنْهُمْ أَنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ فَقَامَ آخَرُ فَقَالَ أَمِنْهُمْ أَنَا فَقَالَ سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ [ر:٣٢٢٩]

دامام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه ګه یو سړی دم درمل وغیره نه کوی نو شریعت کښې د دې جواز شته ، په حدیث د باب تفصیلی کلام په باب من اکتوی کښې تیر شویدې ، دیکښې دی، هم الذین لایتطیرون، ولایکتوون ولایسترقون " دا هغه خلق دی چه د توکل په لوړ مقام دی او رضا بالقضاء مقام باندې اوسیږی د دم دارو درملو علاج وغیره ضرورت نه محسوسوی ، لکه علامه ابن الاثیر رحمه الله فرمائی :

" هذا من صفة الأولياء ، المعرضين عن الدنيا و أسبابها و علائقها ، و هؤلاء خواص الأولياء ، ولا يرد على هذا وقوع ذلك من النبي صلى الله عيه وسلم فعلا و أمراء لأنه كان فى أعلى مقامات العرفان و درجات التوكل ، فكان ذلك منه للتشريع و بيان الجواز و مع ذلك فلا ينقص ذلك من توكله ، لأنه كان كامل التوكل يقينا فلا يؤثر فيه تعاطي الأسباب شيئًا ، بخلاف غيره و لو كان كثير التوكل ، لكن من ترك الأسباب ، و فوض و أخلص فى ذلك كا نأرفع مقاما " (١)

یعنی علاج او اسباب پریخودل خاص د هغه اولیاؤ او د الله تعالی د لویو بندګانو صفت دې چه د دنیا او ددې د وسائلو نه اعراض کوی

دلته دې د چا په ذهن کښې دا شبه سر نه راوچتوی چه کله دا دالله تعالی د خاص مقربو بندګانو صفت دې نو بیا رسول الله ﷺ علاج او اسباب عملاً هم او قولاً هم اختیار کړل چه په خپله ئې هم علاج او اسباب اوکړل او بل ته ئې هم حکم اوکړو

ځکه چه رسول الله ﷺ بې شك شبه د عرفان او د توکل په لوړ مقام فائز وو ، خو بیا هم دوی د علاج او وسائلو د مشروعت خودلو او ددې د جواز د بیان دپاره ئې دا اختیار کړل . دې سره د دوی د توکل په صفت کښې هیڅ قسم کمې نه دې راغلې ، ځکه چه دوی داسې کامل متوکل وو چه اسباب اختیارولو سره د دوی په توکل هیڅ اثر نه پریوتلو ، دا صرف د دوی خصوصیت وو د نورو خلقو خبرې نورې دی ، ځکه چه ګه یو سړې ډیر هم متوکل وی خو اسباب اختیارولو سره د ده په توکل څه نا څه فرق راځی ، ګه یو سړې اخلاص سره توکل کوی او خپله معامله الله تعالی ته سپاری او اسباب پریږدی نو دې یقیناً د توکل په لوړ

(١) فتح البارى : ١٠\٤٦٠ . ٤٦١)

مقام دې ـ دا روايت امام بخاری رحمه الله د حصين بن نمير نه نقل کړيدې ، د حصين بن نمير په بخاری کښې صرف هم دا يو روايت دې - (١)

## ٤٢=بَاب الطِّيَرَةِ

[٥٤٢١] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَالشُّؤْمُ فِي ثَلَاثٍ فِي الْمَرْأَةِ وَالدَّارِ وَالدَّابَّةِ [ر: ١٩٩٣]

[٥٤٢٢] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا طِيَرَةَ وَخَيْرُهَا الْفَأْلُ قَالُوا وَمَا الْفَأْلُ قَالَ الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا أَحَدُكُمْ [ر: ٥٤٢٣]

طِيَرَة ( د طاء د کسرې او د ياء د فتحه سره ) د تطير مصدر دې چه څنګه د تحير مصدر حِيَرَة دې ، د بعض اهل لغت دا خيال دې چه عربی ژبه کښې په دې وزن باندې د دې دوه مصدرونو نه علاوه بل يو مصدر نه دې راغلې - (٣)

طِيَرَة بدشګونئ ( سپيره والی ) ته وائی په زمانه د جاهليت کښې به خلق سحر د څه کار دپاره وتل نو دوی به په طير يعنی مارغه باندې اعتماد کولو ، دوی به ناست مارغان الوزول نو که دا مارغه به ښی طرف ته والوتلو نو دوی به دا نيك شګون ګڼړلو او کار ته به روان شو او که دا مارغه به ګس طرف ته والوتلو ، نو دوی به دا بد شګون ګڼړلو کار له به نه تلل ، خلقو به ښی طرف ته الوتونکی مارغه ته " مساغ " ا و ګس طرف ته الوتونکی مارغه ته به ئې " بارح " ويلې - (٤)

اسلام چه راغلو نو دا وهم او خيال ئې باطل کړو چه د مارغه په ښی او په ګس طرف الوتلو سره د چا په کار کيدو او نه کيدو باندې څه اثر نه پريوځی

امام بيهقی رحمه الله په " شعب الايمان " کښې د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما روايت نقل کړيدې چه که د چا په زړه کښې داسې بد شګونی راشی نو هغه دې دا دعا

---

(١) فتح الباری : ١٠ \ ٢٦٠ ، عمدة القاری : ١٢ \ ٢٧٣)

(٢) ) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی كتاب الطب ، باب الفأل ( رقم الحديث : ٥٤٢٣ ) و أخرجه مسلم في السلام ، باب الطيرة و الفأل و ما يكون فيه من الشوم : ٤ \ ١٧٤٥ ( رقم الحديث : ٢٢٢٣ )

(٣) ) النهاية فی غريب الحديث و الأثر : ٣ \ ١٥٢ ، مجمع بحار الأنوار : ٣ \ ٤٨٠ و فتح الباری : ١٠ \ ٢٦١ ، شرح الطيبی علی مشكوة المصابيح ، كتاب الطب و الرقی ، باب الفأل و الطيرة ، الفصل الأول : ٨ \ ٣١٣ ، إكمال إكمال المعلم للأبی علی صحيح مسلم كتاب الطب ، باب قوله عليه السلام : لا عدوی : ٦ \ ٣٩١ )

(٤) ) النهاية فی غريب الحديث و الأثر : ٣ \ ١٥٢ ، فتح الباری : ١٠ \ ٢٦١ ، عمدة القاری : ١٢ \ ٢٧٣ ، إرشاد الساری : ١٢ \ ٤٧٢ )

اووائی " اَللّهم لاطيرالاطيرك ، ولاخيرالاخيرك " (١)
كله چه خلق داسې عقيده اولرى نو د دوى د خيال او د اعتقاد مطابق ډير كرتې داسې واقعات هم راپيښيږى ، دا په حقيقت كښې د دوى د باطن ظن سزا وى ، حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى :

" وربما وقع به ذلك المكروه بعينه الذى إعتقده عقوبة له ، كما كان يقع كثيرا لأهل الجاهلية " (٢)

## ٤٣= بَاب الْفَأْلِ

[5423] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا طِيَرَةَ وَخَيْرُهَا الْفَأْلُ قَالَ وَمَا الْفَأْلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الْكَلِمَةُ الصَّالِحَةُ يَسْمَعُهَا أَحَدُكُمْ [ر:٥٤٢٢]

[٥٤٢٤] (٣) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَيُعْجِبُنِي الْفَأْلُ الصَّالِحُ الْكَلِمَةُ الْحَسَنَةُ [ر:٥٤٤٠]

حضور اكرم ﷺ فرمائلې دى لا طيرة و خيرها الفال چه شګون نه دې او د دې بهتر قسم نيك شګون دې " فال ( په همزه او بغير د همزه ) ښه شګون ته وائى (٤) ددې جمع فئول راځى -(٥)

① بعضې حضراتو په نزد طيره بد شګون ( سپيره والى ) ته وائى او فال ښه شګون ( بختور والى ) ته وائى - دا دواړه جُدا جُدا دى طيره ناجائز او فال جائز دې ، دلته حديث كښې د خيرها كلمه استعمال شويده ، د فال اضافت طيره ته دې ، دا اضافت د توضيح دپاره دې ، د جزئيت ثابتولو دپاره نه دې ، د علامه كرمانى رحمه الله او د علامه طيبى رحمه الله رائ هم دا ده - (٦)

---

(١) شعب الإيمان للبيهقى ، باب التوكل و التسليم : ٢\٦٥ ( رقم الحديث : ١١٨٠ )
(٢) فتح البارى : ١٠\٢٦٤ )
(٣) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى الطب ، باب لاعدوى ( رقم الحديث : ٥٤٤٠ ) و أخرجه مسلم فى السلام ، باب الطيرة و الفأل و ما يكون فيه من الشوم : ٤\١٧٤٦ ( رقم الحديث : ٢٢٢٤ ) و أخرجه أبوداود فى الطب ، باب فى الطيرة : ٤\١٨ ( رقم الحديث : ٣٩١٦ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب السير ، باب ما جاء فى الطيرة : ٤\١٦٠ ( رقم الحديث : ١٦١٥ )
(٤) و فى النهاية لإبن الأثير : " فيه إنه كان يتفاءل و لا يتطير " الفال مهموز فيما يسر و يسوء ، و الطيرة لا تكون إلا فيما يسوء ، النهاية لإبن الأثير : ٣\٤٠٥ )
(٥) فتح البارى : ١٠\٢٦٣ ، إكمال إكمال المعلم على صحيح مسلم لأبى ، كتاب الطب ، باب قوله ﷺ : لا عدوى : ٦\٤١ )
(٦) شرح البخارى للكرمانى : ٢١\٣٢ ، شرح الطيبى على مشكوة المصابيح ، كتاب الطب و الرقى ، باب الفأل و الطيرة ، الفصل الأول : ٨\٣١٣ ، فتح البارى : ١٠\٢٦٣ ، عمدة القارى : ٢١\٢٧٤ )

② خو د حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره رائې دا ده چه " طیره " عامه ده مطلق شګون ته وائی ، او ددې دوه قسمونه دی : بد شګون او ښه شګون ، دویم قسم ته فال وائی ، شریعت کښې بیا د " طیرة " استعمال د بد شګونئ په معنی کښې اوشو ، حضور اکرم ﷺ ، چه "لا طیرة " اوفرمائل نو دې سره ئې شرعی معنی مراد واخسته او "خیرها " کښې ضمیر چه کوم " طیرة " ته راجع دې نو د هغې نه عام معنی یعنی مطلق شګون مراد دې (۱) د دې حضراتو تائید د ترمذی د یو روایت نه کیږی (۲)

**یو اشکال او ددې جواب:** دلته دا اشکال کیږی چه " خیرها " د اسم تفضیل صیغه ده چه د هغې مفهوم دا راووځی چه فال زیات بهتر دې ، خو طیره کښې هم بهتری شته ، حال دا دې چه طیره کښې هیڅ قسم بهتری نشته دې ددې مختلف جوابونه ورکړې شویدی ،

① علامه طیبی رحمه الله فرمائی : هو من نحو قولهم : " الصیف أحر من الشتا " أی الفال فی بابه أبلغ من الطیرة فی بابها ، و الحاصل إن أفعل التفضیل فی ذلك إنما هو بین القدر المشترك بین الشیئین ، و القدر المشترك بین الطیرة و الفال تاثیر کل منهما فیما هو فیه ، والفال فی ذلك أبلغ - (۳)

علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دا " الصیف أحر من الشتاء " د قبیله دې ، ددې لفظی ترجمه خو دا ده چه اوړې د ژمی نه زیات ګرم دې خو مطلب ئې دا کیږی چه د ګرمئ سختی د یخنئ د سختئ نه زیاته ده ، نو " سختی " په دواړو کښې قدر مشترك دې ، خو دیو شدت د بل په مقابله کښې زیات دې ، ددوه څیزونو په مینځ کښې قدر مشترك په یو کښې د زیاتی او د شدت د بیانولو دپاره د اسم تفضیل استعمال کیږی ، لکه چه الصیف أحر من الشتاء ، ( اوړی د ژمی نه زیات ګرم دې ) دا مطلب ترینه نه اخستې کیږی چه یخنئ کښې هم څه لږه غونده ګرمی او تاو شته ، خو د صیف حرارت زیات دې ، بلکه مطلب ترینه دا اخستې کیږی چه د صیف د حرارت شدت د شتاء د یخنئ د شدت نه زیات دې

دارنګه حدیث کښې هم د الطیرة خیرها الفال مطلب دا نه دې چه " طیرة " کښې هم څه لږ خیر شته خو د فال خیر زیات دې ، بلکه مطلب دا دې چه د طیره هم یو اثر دې او د فال هم یو اثر دې خو د فال اثر د طیره په مقابله کښې زیات ښه زیات بهتر او زیات بلیغ دې -

ددې جواب حاصل دا دې چه د بد شګون او د نیك شګون د دواړو اثر شته خو د طیره په مقابله کښې فال زیات موثر او بلیغ دې -

② دویم جواب دا ورکړې شویدې چه " خیر " دلته د مطلقا د خیریت په معنی کښې

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۲۶۳ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۷۴ ، شرح البخاری للکرمانی : ۲۱\۳۲ ، اکمال اکمال المعلم علی صحیح مسلم للابی ، کتاب الطب ،باب قوله علیه السلام : لا عدوی : ۶\۴۱ )

(۲) فتح الباری : ۱۰\۲۶۴ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۷۴ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۷۴ )

(۳) شرح الطیبی علی مشکوة المصابیح : ۸\۳۱۳ ، مکمل إکمال الإکمال ، کتاب الطب ، باب قوله علیه السلام : لا عدوی : ۶\۴۱)

استعمال دې ، د اسم تفضيل په معنى نه دې ، الفال محض خير كما أن الطيرة محض شر - (١)

③ اويو بل جواب دا وركړې شويدې چه دا على سبيل الفرض و التسليم دې چه بالفرض كه طيرة بهتر هم وى نو فال ددې په مقابله كښې زيات بهتر دې - (٢)

**نيك فال نيول مندوب دي:** بهرحال ښه او نيك فال نيول مستحب او مندوب دى مثلاً يو سړې بيمار دې او دې په دې حالت كښې د چا نه " يا سالم " ويل واورى ، يا څوك جنګ ته روان دې او دې د " ظفرعلى " يا د " فتح على خان " نوم واورى ، يا د چا څه څيز ورك شوې وى او دې ياواجد د چا د خُلې نه واورى نو دې ددې نومونو نه د روغوالى ، د فتح او د ورك شوې څيز په پيدا كيدو نيك فال اونيسى نو دا مستحب او د حضور اكرم ﷺ نه يو ثابت څيز دې - (٣)

أبى په شرح د مسلم كښې د قاسم بن اصبغ يو روايت نقل كړيدې چه حضرت بريده اسلمى د اويا سوارو سره د شپې په وخت حضور اكرم ﷺ ته ملاقات ته راغلو ، نو حضور اكرم ﷺ تپوس اوكړو څوك ئې ؟ نو ده جواب وركړو " بريده " نبى كريم ﷺ حضرت صديق اكبر رضي الله عنه ته متوجه شو او وے فرمائل :" برد أمرنا و صلح "څمونږ د جنګ معامله يخه شوه او صلح اوشوه ، بيا ئې تپوس اوكړو ممن ؟ ( يعنى د كومې قبيلې سره دې تعلق دې ؟ ) نو ده اوويل : من أسلم ، حضور ﷺ اوفرمائل :" سلمنا " يعنى مونږ محفوظ شو بيا حضور ﷺ تپوس اوكړو فمن ؟ ( يعنى اسلم كښې د كوم ښاخ سره تعلق لرې ؟ ) نو ده اوويل : من بنى سهم ، بيا حضور ﷺ اوفرمائل : خرج سهمنا ( څمونږ حصه رااووتله ) (٤) دا رنګه د غزوه حديبيه په موقع باندې د كافرانو د طرفه مختلف خلق حضور صلى الله عليه وسلم سره مذاكراتو دپاره راتلل چه كله سهيل بن عمرو راغللو نودوى ﷺ د نوم نه فال اونيولو او ارشاد ئې اوكړو "الآن سهل الله لكم أمركم" (٥)

د حضور اكرم ﷺ عادت مبارك وو چه كله به ئې د كوم يو كار په موقع باندے څه ښه نوم اوريدلو نو د خوشحالئ آثار به د دوى په مخ مبارك ښكاره كيدل ، لكه امام ابوداود رحمه الله په سند حسن سره د حضرت بريده اسلمى رضي الله عنه يو روايت نقل كړيدې :"إن النبى صلى الله عليه وسلم كان لا يتطير من شئ ، و كان إذا بعث عاملا يسأل عن إسمه فإذا أعجبه فرح به ، وإن كره إسمه رؤى كراهة ذلك فى وجهه " (٦)

---

(١) مرقاة شرح مشكاة ، كتاب الطب ، باب الفال و الطيرة : ٩\٢)
(٢) مظاهر حق : ٤\٣٠١ ، مرقاة شرح مشكاة كتاب الطب ، باب الفال و الطيرة : ٩\٢)
(٣) فتح البارى : ١٠\٢٦٤ ، مظاهر حق : ٤\٣٠٠)
(٤) إكمال إكمال المعلم على صحيح مسلم للأبى ، كتاب الطب ، باب قوله عليه السلام : لا عدوى : ٦\٤٢)
(٥) دلائل النبوة للبيهقى ، باب سياق قصة الحديبية و ما ظهر من الآثار فيها : ٤\١٠٥)
(٦) سنن أبى داود ، كتاب الطب ، باب فى الطيرة : ٤\١٩ ( رقم الحديث : ٣٩٢٠ )

کُه یو نوم به دوی ﷺ ته ناخوښه وو نو د دوی په مخ مبارك به د ناخوښتیا آثار ښكاره كیدل د بد فالۍ په وجه نه ، بلكه په دې وجه چه دوی ته بد نومونه خوښ نه وو ، هم دا وجه ده چه دوی په څو موقعو باندې د څو اصحابو نومونه بدل كړې وو - (١) دارنګه دوی ﷺ د "برة بنت أبي سلمة بن عبد الأسد" ( چه د دوی نوم ربیبه وه) نوم بدل كړو او زینب ئې كړو - الإصابة فی تمییز الصحابة : ٨\٣٨( رقم الترجمة : ١٠٩٢٨)، أسد الغابة فی معرفة الصحابة : ٦\٣٢( رقم الترجمة : ٦٢٦٧ )

## ٤٤=باب لَا هَامَةَ وَلَا صَفَر

[٥٣٢٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَكَمِ حَدَّثَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ أَخْبَرَنَا أَبُو حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَلَا هَامَةَ وَلَا صَفَرَ [ر: ٥٣٨٠]

د "هامة" او د "صفر" تشریح تیره شویده -

## ٤٥=باب الْكِهَانَةِ

كهانة ( د كاف په فتحه او په كسره سره ) د غیب خبرو خودلو پیشې ته وائی ، دې پیشه كوونكی ته كاهن وائی ، د دې جمع كهنة راځی ، بعض اهل لغتو د كاهن تعریف كړیدې ، كل من أذن بشیئ قبل وقوعه فهو كاهن (٢)

**د كهانت قسمونه** : د كهانت درې قسمونه مشهور دی

① د غیب دا خبرونه بعض خلق د شیطانانو او د پیریانو نه حاصلوی ، پیریان د اخبرې چه د اسمان د فرښتو خبرې واوری نو حاصل ئې كړی ، د دې دروازه بنده كړې شوه او د دې حفاظت د شهاب ثاقب په ذریعه اوشو ، د قرآن كریم دا آیت كریمه ( إلا من خطف الخطفة فأتبعه شهاب ثاقب) (٣) دې طرف ته اشاره كوی

② د بعضې پیریانو سره د خلقو رابطه وی او دوی دوی ته د لرې لرې خبرونه وركوی او كله څه خبرې صحیح هم خیژی

---

(١) لكه چه دوی صلی الله علیه وسلم د ام المؤمنین حضرت میمونه او د ام المؤمنین حضرت جویریه رضی الله عنهما نو مونه دوی دوارو سره نكاح كولو په وخت كښې بدل كړې وو د دوی دوارو نومونه بالترتیب وراندې " برة بنت الحارث الهلالیة " او برة بنت الحارث المصطلقیة " وو ، الإصابة فی تمییز الصحابة : ٨\٤٨ ( رقم الترجمة : ١٠٩٢٥ ، ١٠٩٢٦ )

(٢) ) فتح البارى : ١٠\٢٦٦، عمدة القارى : ٢١\٢٧٥ و عرّفه ابن الأثیر فی النهایة : الكاهن : الذی یتعاطی الخبر عن الكائنات فی مستقبل الزمان ، و یدعی معرفة الأسرار ، النهایة فی غریب الحدیث و الأر ٤\٢١٣ و كذا فی مجمع بحار الأنوار : ٤\٤٥٠ )

(٣) ) سورة صافات ، الآیة : ١٠ ) )

(۳) بعض خلق د خپلو حواسو ، تجربو او په اندازو سره د غيب خبرې بيانوى دى تولو صورتونو ته مذموم ويلې شويدى ځكه چه دا د قبيلې د ظنياتو نه دى او عموما ديكښې دروغ شامل وى - (١)

حضرت ابوهريره رضي الله عنه مرفوع حديث دې "من أتى كاهنا أو عرافا فصدقه بما يقول فقد كفر بما أنزل على محمد" (٢)

[٥٣٢٦\٥٣٢٧] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي امْرَأَتَيْنِ مِنْ هُذَيْلٍ اقْتَتَلَتَا فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ فَأَصَابَ بَطْنَهَا وَهِيَ حَامِلٌ فَقَتَلَتْ وَلَدَهَا الَّذِي فِي بَطْنِهَا فَاخْتَصَمُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَضَى أَنَّ دِيَةَ مَا فِي بَطْنِهَا غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ فَقَالَ وَلِيُّ الْمَرْأَةِ الَّتِي غَرِمَتْ كَيْفَ أَغْرَمُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ لَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ وَلَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ فَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا هَذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ

[٥٣٢٧] (٣) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ رَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ فَطَرَحَتْ جَنِينَهَا فَقَضَى فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ وَعَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي الْجَنِينِ يُقْتَلُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ فَقَالَ الَّذِي قُضِيَ عَلَيْهِ كَيْفَ أَغْرَمُ مَا لَا أَكَلَ وَلَا شَرِبَ وَلَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ وَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا هَذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ [ر: ٦٣٥٩ و ٦٥٠٨ و ٦٥١١ و ٦٥١٢]-

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د قبيله هذيل د دوه جګړه كوونكو ښځو باره كښې فيصله كړې وه چه دوى كښې يوې ( ام عفيف بنت مسروح ) بله ( مليكه بنت عويم ) په كانړى ويشتې وه چه دا په ګېډه اولګيدله او دا حامله وه چه د هغې د وجه ددې

---

(١) فتح البارى : ١٠\٢٦٦ ، ارشاد السارى : ١٢\٤٧٩) .

(٢) ) سنن الترمذى ، كتاب الطهارة ، باب ما جاء فى كراهية إتيان الحائض : ١\٢٤٢ ( رقم الحديث : ١٣٥ ) ، سنن أبى داود ، كتاب الطب ، باب فى الكاهن : ٤\١٥ ( رقم الحديث : ٣٩٠٤ ) ، مسند الإمام أحمد بن حنبل ، كتاب الحدود ، الفرع الرابع فى حدالزنا من الجلد و الرجم : ٢\٤٠٨ ، سنن إبن ماجه ، كتاب الطهارة ، باب النهى عن إتيان الحائض : ١\٢٠٩ ( رقم الحديث : ٦٣٩ )

(٣) ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الفرائض ، باب ميراث المرأة و الزوج مع الولد وغيره ( رقم الحديث : ٦٣٥٩ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الديات ، باب جنين المرأة ( رقم الحديث : ٦٥٠٨ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الديات باب جنين المرأة ، و إن العقل على الوالد و عصبته الوالد لا على الولد ( رقم الحديث : ٦٥١١ ) و أخرجه مسلم فى كتاب القسامة ، باب دية الجنين و وجوب الدية فى قتل الخطأ : ٤\١٣٠٩ ( رقم الحديث : ١٦٨١ )

بچې په ګېډه کښې مړ شو ، د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې مقدمه راغله دوی ددې بچی په دیت کښې غرة یعنی یو غلام یا د وینځې ورکولو حکم اوکړو ، د جنایت کوونکې ښځې ولی اوویل "کیف أغرمریا رسول الله من لاشرب ولاأکل، ولانطق ولااستهل، فمثل ذلك بطل" ( یعنی اے د الله رسوله : څه څنګه د هغه بچی دیت ورکړم چه نه ئې څښناك کړیدې او نه ئې خوراك او نه ئې خبرې کړیدی او نه ئې چغه وهلې ده ، نو داسې بچې خو توې ( څه تاوان ئې نشته ) حضور اکرم ﷺ چه دده دا مسجع کلام واوریدو نو وې فرمائل : دې خو د کاهنانو روردې "

د دې حدیث متعلق تفصیلی کلام خو به روستو راشی په دیاتو کښې دلته امام بخاری رحمه الله ددې ذکر څکه کړیدې چه دوی ﷺ ددې مسجع کلام کوونکې متعلق اوفرمائل : چه دې د کاهنانو رور دې لکه چه څنګه کاهن مسجع کلام کوی ، دده دا کلام هم دارنګه مقفی او مسجع دې لکه د مسلم شریف په روایت کښې دی : "إنما هذا من إخوان الکهان" نه پس دا اضافه ده "من أجل سجعه الذی سجع" ([1]) کلام کښې سجع کُه په تکلف او تصنع سره وی نو دا صحیح نه ده ، خو کُه بې تکلفه او بې تصنع وی نو بیا جائز دې ، ([2])

استهل : استهلال د پیدا کیدو په وخت د بچی اواز ته وائی ،غرة د تَندی سپین والی او روښانتیا ته وائی عبربه عن الجسد کله إطلاقا للجزء علی الکل ، وړاندې "عبد أوأمة" ددې بدل واقع کیږی - ([3])

**قوله: ومثل ذلك بطل :** دلته روایت کښ "بطل" دې او په بعضې راویتونو کښې یطل د یاءسره دې د یطل معنی د هدر او د توئیدو ده - ([4])

[۵۴۲۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ [ر: ۲۱۲۲]

د باب دا روایت د حضرت ابو مسعود رضی الله عنه نه روایت دې - فرمائی : چه نهی النبی ﷺ عن ثمن الکلب ومهر البغی وحلوان الکاهن یعنی حضور اکرم ﷺ د سپی د قیمته د زنا کارې ښځې ته د اجرت ورکولو نه او کاهن ته د رقم ورکولو نه منع کړیده -

---

[1]) صحیح مسلم ، کتاب القسامة ، باب دیة الجنین و وجوب الدیة فی قتل الخطأ .... ۱۳\ ۱۳۰۹ ( رقم الحدیث : ۱۶۸۱ ) ) صحیح مسلم ، کتاب القسامة ، باب دیة الجنین و وجوب الدیة فی قتل الخطأ .... ۱۳\ ۱۳۰۹ ( رقم الحدیث : ۱۶۸۱ ) ) صحیح مسلم ، کتاب القسامة ، باب دیة الجنین و وجوب الدیة فی قتل الخطأ .... ۱۳\ ۱۳۰۹ ( رقم الحدیث : ۱۶۸۱ )ررر

[2]) فتح الباری : ۱۰\ ۲۶۸ ) ) فتح الباری : ۱۰\ ۲۶۸ ) ) فتح الباری : ۱۰\ ۲۶۸ )

[3]) عمدة القاری : ۲۱\ ۲۷۵ ، ارشاد الساری : ۱۲\ ۳۷۷ ، فتح الباری : ۱۰\ ۲۶۸)

[4]) عمدة القاری : ۲۱\ ۲۷۵ ، ارشاد الساری : ۱۲\ ۳۷۷ ، فتح الباری : ۱۰\ ۲۶۸)

**قوله: مهر البغي:** بغي په اصل كښې د بَغُوْيٌ په وزن د فعول وو ، واو يې په ياء بدل كړو او ياء ئې په ياء كښې مدغم كړه بَغِيٌّ شو ، دلته ترينه زانيه مراد ده ، د زانيه اجرت ته ئې مجازا مهر اوويلې - (۱)
دا روايت په كتاب البيوع كښې " باب ثمن الكلب " تر لاندې تير شويدې - (۲)

[۵۴۲۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ يَحْيَى بْنِ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسٌ عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ لَيْسَ بِشَيْءٍ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَا أَحْيَانًا بِشَيْءٍ فَيَكُونُ حَقًّا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا مِنَ الْجِنِّيِّ فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ فَيَخْلِطُونَ مَعَهَا مِائَةَ كَذْبَةٍ
قَالَ عَلِيٌّ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ مُرْسَلٌ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ ثُمَّ بَلَغَنِي أَنَّهُ أَسْنَدَهُ بَعْدَهُ [ر: ۵۸۵۹ و ۷۱۲۲ وانظر: ۳۰۳۸]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه څه خلقو درسول الله ﷺ نه د كاهنانو متعلق تپوس اوكړو نو دوى اوفرمائل : دا هيڅ څيز نه دې ، خلقو اوويل : اے د الله رسوله ! دا خلق كله مونږ ته داسې خبره كوى چه هغه بالكل صحيح وى ، نو حضور ﷺ اوفرمائل چه دا خبره د الله تعالى د طرفه وى ، كاهن دا د پيريانو نه واخلى ، پيرې دا ( خبره چه د فرشتو نه ئې اوريدلې وى ) د خپل كاهن دوست په غوږ كښې واچوى ، او بيا دې د دې يوې خبرې سره سل د دروغو خبرې يوځئ كړى او وړاندې ئې بيانوى

**قوله: ليس بشئ:** أى ليس قوله بشئ يعتمد عليه يعنى د كاهن د قول هيڅ اعتبار نشته دې ،

تلك الكلمة من الحق يعنى دا كلمه د حق د طرفه وى ، د حق نه الله تعالى هم مراد كيدې شى ، چه دا كلمه د الله تعالى د طرفه وى ، او حق په معنى د ثابت او د رښتيا هم كيدې شى چه دده دا كلمه درست او صحيح وى ، باقى نورې باطلې وى - (۳)

**قوله: يخطفها من الجنى:** يعنى دا كلمه دې كاهن د پيرى نه اخستې وى او بعضې روايتونو كښې يخطفها الجنى دې يعنى پيرى دا كلمه د اسمان نه حاصل كړيده د خطف يخطف معنى په منډه او په تيزئ سره د اخستو ده (۴)

---

۱) ) قال القسطلانى : " ولا يجوز عندهم أن يكون على فعيل ، لأن فعيلا بمعنى فاعل يكون بالهاء فى المؤنث ككريمة وإنما يكون بغيرهاء، إذاكان بمعنى مفعول كإمرأة جريح و قتيل (إرشاد السارى: ۱۲ \ ۴۷۸)
۲) عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۷۵ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ۳۷۷ ، فتح البارى : ۱۰ \ ۲۶۸)
۳) عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۷۷ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ۴۷۹ ، فتح البارى : ۱۰ \ ۲۶۹ ، شرح صحيح البخارى لابن البطال : ۹ \ ۴۳۹ )
۴) عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۷۷ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ۴۷۹ ، فتح البارى : ۱۰ \ ۲۶۹)

فيقرها: د باب د نصر نه دي قريقر استعماليږي ، ويلې كيږي. قررت على رأسه دلوا: ما دده په سر ډولچه د اوبو واړوله - (١)

علامه قرطبى رحمه الله فرمائى قرالطائر په معنى دې د مارغه مسلسل اواز ويستلو ته وائى ، دلته د يقرها په معنى ده : القاها الى أذنه بصوت - (٢)

**قوله: مائة كذبة:** د كاف فتحې سره ، د ابن جريج په روايت كښې اكثر من مائة كذبة دي ، عدد مراد نه دې بلكه كثرت مراد دې چه كاهن اكثر دې حق سره دروغ ملاوهى. (٣)

امام مسلم رحمه الله د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت نقل كړيدې چه يو شپه رسول الله ﷺ د څو انصارو اصحابو سره تشريف فرما وو ، ديكښې شهاب ثاقب په نظر راغلو ، حضور ﷺ د اصحابو نه تپوس اوكړو " په زمانه د جاهليت كښې به چه دا تاسو اوليدلونو تاسو به څه ويلې ؟ " اصحابو اوويل : مونږ به ويل چه نن شپه څوك لوې سړې پيدا شو يا څوك لوې سړى مړ شو ، حضور ﷺ اوفرمائل :" فإنها لا يرمى بها لموت أحد ولا لحياته ، ولكن ربنا تبارك و تعالى إسمه إذا قضى أمرا ، سبح حملة العرش ، ثم سبح أهل السماء الذين يلونهم حتى يبلغ التسبيح أهل هذا السماء الدنيا ثم قال الذين يلون حملة العرش لحملة العرش : ماذا قال ربكم ؟ فيخبرونهم ما ذا قال ، قال : فيستخبر بعض أهل السموات بعضا حتى يبلغ الخبر هذه السماء الدنيا ، فتخطف الجن السمع ، فيقذفون إلى أوليائهم ، ويرمون به ، فما جاؤوا به على وجهه فهو حق ، ولكنهم يقرفون فيه ويزيدون " (٤)

يعنى ستورې ددې وجه نه رابيليږي چه څوك مړ يا پيدا شى ، بلكه څمونږ رب چه كله د يو امر فيصله اوكړى نو هغه فرشتې چه حاملين د عرش دى " سبحان الله " اووائى ، بيا دوى سره چه كومې نزدې فرشتې د اسمان والا دى هغوى سبحان الله اووائى تر دې چه د دوى تسبيح هغه فرشتو ته رااورسيږي چه په اسمان د دنيا كښې دى ، بيا حاملين د عرش سره چه كومې نزدې فرشتې دى هغوى دوى ته اووائى : د ستاسو رب څه اوفرمائل ؟ نو دوى ته چه الله تعالى څه فرمائلي دى دوى د هغې خبر دوى ته وركړې بيا د اسمانونو نورې فرشتې هم د يو بل نه دا خبر معلوم كړى تر دې چه دا خبر اسمان د دنيا ته رااورسيږي نو پيريان ( شيطانان ) دې اوريدلې خبرې نه څه رااونيسى او دا خپل كاهن دوستانو ته رسوى ، اوس كه كاهن دا خبره هم هغه رنګ بيان كړى چه څنګه دوى اوريدلې وى نو دا رښتيا كيږي خو دوى ديكښې د دروغو اضافه هم كوى

---

١) عمدة القارى : ٢١\٢٧٧ ، فتح البارى : ١٠\٢٧٠ )

٢) عمدة القارى : ٢١\٢٧٧ ، فتح البارى : ١٠\٢٧٠)

٣) فتح البارى: ١٠\٢٧٠، ٢٧١، عمدة القارى : ٢١\٢٧٧-

٤) ) فتح البارى : ١٠\٢٧٠ ، عمدة القارى : ١٢\٢٧٧)

قوله: قال علي: قال عبدالرزاق: مرسل: (الكلمة من الحق) ثم بلغني أنه أسنده بعده: علی بن المدینی فرمائی: چه عبدالرزاق بن همام فرمانی حدیث کښې واقع "الكلمة من الحق" الفاظ مرسل نقل کړي وو ، یعنی حضرت عائشه ﷺ نه ئې د سند سره نه وو بیان کړي خو بیا ما ته دا خبره رااورسیدله چه دوی به روستو دا حصه هم د سند سره نقل کړي ده.

## ۳۶--باب: السِّحرِ

۳۶- بَابُ السِّحْرِ وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَلَكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَا أُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّى يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ وَمَا هُمْ بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ [البقرة:۱۰۲] وَقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَى [طه:۶۹]
وَقَوْلِهِ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ [الأنبياء:۳]
وَقَوْلِهِ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَى [طه:۶۶]
وَقَوْلِهِ وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ [الفلق:۴] وَالنَّفَّاثَاتُ السَّوَاحِرُ
تُسْحَرُونَ تُعَمَّوْنَ [المؤمنون:۸۹]

دلته څو خبرې ذهن کښې کښینول پکار دی

**د سحر تعریف**: ① لغت کښې د لفظ د سحر اطلاق په هر هغه څیز کیږی چه هغه مخفی او پټ وی ، كل ما خفي ولطف ودق مأخذه فهو سحر (۱)

---

(۱) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۷۲ ، وقال ابن الأثير فى النهاية : لاسحر ما يصرف قلوب السامعين و إن كان غير حق ، النهاية : ۲ \ ۳۴۶ مجمع بحار الأنوار : ۳ \ ۴۳ ، وقال الإمام الجصاص : أصل السحر فى اللغة ، ما لطف و خفى سببه ، أحكام القرآن للجصاص : ۱ \ ۶۱ ، و عرفه العلامة الآلوسى : و السحر فى الأصل مصدر سحر يسحر ( بفتح العين فيهما ) إذا أبدى ما يدق و يخفى و هو من المصادر الشاذة ، و يستعمل بما لطف و خفى سببه ، المراد به أمر غريب يشبه الخارق و ليس به ..... ( روح المعانلى : ۱ \ ۳۳۸ ) ، و قال فى تفسير الموردى : فقد إختلف الناس فى معناه ، فقال قوم : يقدر الساحر أن يُقلب الأعيان بسحر فيحول الإنسان حمارا ، و ينشأ أعيانا و أجساما ، و قال آخرون : السحر خدع و معان يفعلها الساحر ، فيخيل إليه أنه بخلاف ما هو ، كالذى يرى السراب من بعيد فيخيل إليه أنه ماء ، و كواكب ( فى زعمى الصحيح أنه رواكب ) السفينة السائرة سيرا جثيثا ، يخيل إليه أن ما عاين من الأشجار و الجبال سائرة معه ، ( تفسير الماوردى : ۱ \ ۱۴۲ ) و قال العلامة ابن عابدين : السحر علم يستفاد منه حصول ملكة نفسانية يقتدر بها على أفعال غريبة لأسباب خفية ، ( مقدمة رد المحتار على الدر المختار ، مطلب فى التنجيم و الرمل : ۱ \ ۴۴ ) ، و عرفه العينى بأن اسحر أمر خارق للعادة عن نفس شريرة لا يتعذر معارضته ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۷۷ )

خو بیا دا لفظ د هر هغه اثر دپاره استعالیدل شروع شو چه د هغې څه سبب ظاهری نه وی ، برابره خبره ده چه دغه سبب معنوی وی لکه چه د بعضې کلماتو اثر کیږی ، یا غیر محسوس اثر وی لکه د جناتو او د شیطانانو اثر یا د قوت خیالیه اثر ، (۱)
دارنګه د سحر څو قسمونه راویستې شی خو عرف عام کښې د سحر اطلاق په هغه اثر کیږی چه دیکښې د جناتو او د شیطانانو عمل دخل وی - (۲)
**د سحر قسمونه** :② سحر بنیادی طور باندې په دوه قسمونو کښې تقسیمیدې شی
یو قسم خو خالص نظربندی ده ، چه سترګو او نظر ته دهوکه ورکولې کیږی او حقیقت سره ددې هیڅ تعلق نه وی، مثلاًسړی ته څه څیز په نظر راځی خو حقیقتا ددې څه وجود نه وی(۳)
دا دهوکه یا نظر بندی کله د قوت خیالیه په ذریعه کیږی چه دیته نن صبا په اصطلاح کښې مسمریزم هم وائی ، یو سړې د قوت خیالیه په ذریعه د بل سړی په خیال دومره اثر انداز شی چه د څه دې سوچ کوی هم هغه ده ته په نظر راځی - (۴)
کله دا کار د شیطان او د جناتو په ذریعه هم کیږی ، چه دې د مسحور په دماغو او په سترګو داسې اثر اوکړی چه دې یو غیر واقعی څیز لره محسوس کوی
په قرآن کریم د حضرت موسی علیه السلام په مقابله کښې د راتلونکو جادوګرانو سحر د رومبی قسم سره متعلق وو ، د قرآن الفاظ دی یخیل الیه من سحرهم انها تسعی د " یخیل " لفظ دا ښائی چه دا چوکې په حقیقت کښې ماران نه وو جوړ شوې بلکه د حضرت موسی علیه السلام قوت متخیله متاثر شوې وه او دا ئې ماران ګڼړل - (۵)
د سحر دویم قسم دا دې چه حقیقت او واقع کښې د یو څیز ماهیت بدل کړې شی ، مثلاً ځناور لره په کانړې بدل کړې شی - (۶)
بعض عالمان مثلاً امام ابو بکر جصاص ، ابن حزم ظاهری او امام راغب اصفهانی د دې قسم نه انکار کړیدې ، دا حضرات فرمائی چه په سحر د څه څیز ماهیت او حقیقت نه شی بدلیدې و سحر صرف نظر او خیال ته دهوکه ورکوی ، حقیقت په خپل ځائې برقرار وی (۷)
خو جمهور عالمانو په نزد شرعا او عقلاً دا دویم قسم ممنوع نه دې ، بلکه ممکن دې ،
امام مالك رحمه الله په موطاء کښې د کعب احبار روایت نقل کړیدې ، دې فرمائی " لولا کلمات أقولهن لجعلتنی الیهود حمارا " یعنی که ما څه کلمات نه ویلې نو یهودو به څه خر جوړ

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۲۷۲ )
۲) فتح الباری : ۱۰\۲۷۳ )
۳) معارف القرآن للمفتی محمد شفیع : ۱۱\۲۷۲ )
۴) معارف القرآن للمفتی شفیع : ۱۱\۲۷۵)
۵) معارف القرآن للمفتی شفیع : ۱۱\۲۷۵ )
۶) معارف القرآن للمفتی شفیع : ۱۱\۲۷۵ )
۷) فتح الباری : ۱۰\۲۷۳ )

کړې ووم ، دوی نه تپوس اوشو چه دا کوم کلمات دی نو دوی اوفرمائل : "أعوذ بوجه الله الذی لیس شئ أعظم منه ، وبکلمات الله التامات التی لا یجاوزهن برّ ولا فاجر ، وبأسماء الله الحسنی کلها ما علمت منها وما لم أعلم من شر ما خلق وبرأ وذرأ" [1] زه د لوی الله پناه نیسم چه د هغه نه څوك هم لوی نشته او زه پناه نیسم د الله تعالی د هغه تامات (پوره) کلماتو چه د هغې نه نه نیك او نه بد انسان اوړیدې شی ، او پناه نیسم د الله تعالی د هغه تمامو ښائسته نومونو سره چه کوم ما ته معلوم دی او کوم ما ته نه دی معلوم د شر د هر هغه څیز نه چه ده پیدا کړیدی چه ده ورته وجود ورکړیدې او ده خواره کړیدی"-

دې روایت کښې " لجعلتنی الیهود حمارا " نه استدلال کوی او وئیلې کیږی چه سحر کښې دا ممکن ده چه د څیز حقیقت او ماهیت بدل کړې شی،[2] باقی په فلسفیانو کښې چه دا مشهوره ده چه په حقائقو اوپه اعیانو کښې انقلاب اوبدلیدل نه شی راتلې نو هلته د حقائقو نه مراد وجوب ، ممکن او محال دې چه ممکن محال او محال ممکن نه شی کیدې - [3]

**د سحر حکم :** ③ د سحر حکم هم واضح دې ، کُه دیکښې کلمات د کفر وی نو ظاهره ده چه داسې سحر کفر دې او ددې مرتکب هم کافر دې ، او کُه کلماتـه د کفر په کښې نه وی خو افعال د فسق او د فجور وی مثلاً شیطانانو او د پیریانو خوشحالولو دپاره نجس اوسیدل ، په پلیدئ کښې اوسیدل ، مونځ نه کول نو داسې سحر فسق او ددې مرتکب فاسق دې او ددې ازده کول او بل ته خودل ناجائز اوحرام دی [4]

خو په قدر د ضرورت بعض فقهاء ددې د ازده کولو اجازت ورکوی ، مثلا په چا جادو شوې وی د دې د ماتولو او د ختمولو دپاره څوك د جادو عمل ازده کوی نو د الضرورات تبیح المحذورات په قاعده سره د دې څه لاره راوځی - [5]

**په نبی د سحر اثر کیدې شی :** ④ د سحر متعلق څلورمه خبره دا ده چه په پیغمبرانو ددې اثر کیدې شی او کُه نه ، امام ابو بکر جصاص وغیره فرمائی چه د جادو اثر په نبی نه شی کیدې ، دوی د حدیث د باب د صحت نه انکار کړیدې - دوی وائی : چه کافرانو به نبی ﷺ ته مسحور ویلې ، دوی به ویلې په نبی ﷺ جادو شویدې دې وجه نه دې داسې خبرې کوی، قرآن کریم د کافرانو تکذیب او تردید اوکړو ، آیت مبارك کښې دی (وقال الظالمون إن تتبعون إلا رجلا مسحورا) دا رنګه قرآن کریم کښې دی ( ولا یفلح الساحر حیث أتی ) ساحر او جادوګر ( د

---

[1] ) الموطأ للإمام مالک : کتاب الشعر ، باب ما یؤمر به من التعوذ : ۲ / ۹۵۰ ( رقم الحدیث : ۱۲ ) "

[2] ) معارف القرآن : ۱ / ۲۷۶ )

[3] ) معارف القرآن : ۱ / ۲۸۶ )

[4] ) معارف القرآن : ۱ / ۲۷۸ ، ۲۷۹ ، الجامع لأحکام القرآن للقرطبی : ۲ / ۴۸ ، روح المعانی : ۱ / ۳۳۹ ، مقدمة رد المحتار علی الدر المختار مطلب السحر أنواع : ۱ / ۲۴ ، ۱ / ۴۵ ، ۵ / ۳۰۴ )

[5] ) الجامع لأحکام القرآن للقرطبی : ۲ / ۴۸ ، روح المعانی : ۱ / ۳۳۹ ، مقدمة رد المحتار علی الدر المختار مطلب السحر أنواع : ، ۱ / ۴۵ ، ۵ / ۳۰۴)

پیغمبر په مقابله کښې ) فلاح او کامیابه کیدې نه شی
دې وجه نه چه کومو روایتونو کښې دا راغلې دی چه په پیغمبر ﷺ باندې د جادو اثر شوې وو دا صحیح نه دی ، آو دا ممکن ده ، چه مدینه منوره کښې کومې یهودی ښځې جادو کولو او ددې خیال وو چه دا په جسم کښې اثر کوی او دې په رسول الله ﷺ د جادو کولو اراده کړې وی ، الله تعالی حضور اکرم ﷺ ته ددې د عمل اطلاع ورکړه او ددې جهل ئې ښکاره کړو ، دا خو کیدې شی خو دا ویل چه د جادو اثر په حضور ﷺ داسې شوې وو چه په دوی ګډوډی او پریشانتیا ( شک ) راغلې وه د څه کار د کولو او د نه کولو باره کښې نو دا صحیح نه ده [1]
خو جمهور عالمانو په نزد په نبی د جادو اثر کیدې شی ، په خپله قرآن کریم کښې د موسی علیه السلام د سحر نه متاثره کیدو ذکر شته او په حدیث د باب کښې په حضور ﷺ باندې ددې د بعضې آثارو ښکاره کیدو ذکر دې
خو دا اثر په طبعی امورو کښې ښکاره کیږی ، لکه چه څنګه د مرضونو او د بیمارو اثر په نبی کیدې شی ، داسې د جادو اثر هم په نبی کیدې شی خو د رسالت او د وحی الهی او د شریعت متعلق امورو کښې الله تعالی پیغمبران د جادو او د سحر د اثر نه محفوظ ساتلې دی ، او د دوی حفاظت ئې کړیدې - [2]
**معجزه ، سحر او کرامت کښې فرق :** ⑤ پنځمه خبره معجزه ، سحر او کرامت کښې د فرق ده ، معجزه د نبی په لاس کیږی او په څه خفی سبب نه کیږی ، سحر د یو خفی سبب اثر وی ، عادت د الله تعالی دا دې چه کوم کس د دروغو د نبوت او د معجزو دعوی کوی دده سحر او جادو نه چلیږی -
کرامت هم خارق د عادت وی خو چه دا د کوم سړی په لاس ښکاره کیږی ، هغه به متقی ، پابند د شریعت او پاك او طاهر وی او ساحر نجس وی او پابند د شریعت نه وی - [3]

---

[1]) قال الإمام أبوبكر الجصاص : " و من صدق هذا ( أى صدق انقلاب الأعيان بالسحر ) فليس يعرف النبوة ، و لا يأمن أن تكون معجزات النبى صلى الله عليه وسلم من هذا النوع ، و أنهم كانو سحرة ، وقال الله تعالى : ( و لا يفلح الساحر حيث أتى ) و قد أجازوا من فعل الساحر ما هو أعظم من هذا و أفظع ، و ذلك أنهم زعموا أن النبى صلى الله عليه وسلم سُحر ، و أن السحر عمل فيه حتى قال فيه : إنه يتخيل لى أنى أقول الشئ و أفعله ، و لم أقله و لم أفعله .... و قد قال الله تعالى ، مكذبا للكفار فيما أدعوه من ذلك للنبى صلى الله عليه وسلم ، فقال ( و قال الظالمون إن تتبعون إلا رجلا مسحورا ) و مثل هذه الأخبار من وضع الملحدين تلعبا بالحشو الطعام .... و جائز أن تكون المرأة اليهودية بجهلها فعلت ذلك ظنا منها بأن ذلك يعمل فى الأجساد ، و قصدت به النبى صلى الله عليه وسلم ، فأطلع الله نبيه على موضع شرها و أظهر جهلها فيما إرتكبت و ظنت ، ليكون ذلك من دلائل نبوته ، لا أن ذلك ضره و خلط عليه أمره ، و لم يقل كل الروّاة أنه إختلط عليه أمره ، و إنما هذا اللفظ زيد فى الحديث و لا أصل له " أحكام القرآن للجصاص : ۱\۱ ۴۹ )
[2]) معارف الرآن للمفتى محمد شفيع : ۱\۱ ۲۷۸ ،احكام القرآن للقرطبى : ۲\۲ ۴۶ ، روح المعانى : ۱\۱ ۳۳۹)
[3]) معارف القرآن للمفتى محمد شفيع : ۱\۱ ۲۷۷ ، و قال القرطبى فى الفرق بين السحر و المعجزة : قال علماؤنا : السحر يوجد من الساحر وغيره ، و قد يكون جماعة يعرفونه و يمكنهم...[بقيه برصفحه آئنده...

باب کښې دننه امام بخاری رحمه الله د سحر متعلق د قرآن کریم پنځه مختلف آیتونه ذکر کړیدی ـ
**قصه د هاروت ماروت** : رومبی آیتونه د سورت بقره دی چه دیکښې د هاروت او د ماروت واقعه ذکر شویده دا دوه فرښتې وې چه د بابل په ښار کښې راکوزې شوې وې او د جادو حقیقت او ددې داصولو او د فروعو نه خلق خبرولو ذمه واری ورته سپارلې شوې وه ، دې زمانه کښې په بابل کښې د جادو ډیر شهرت وو ، او د پیغمبرانو د معجزو او د سحر د اثراتو په مینځ کښې خلقو ته اختلاط او اشتباه شروع شوې وه ، خلقو جادو یو مقدس عمل ګنړلو .الله تعالی ددې اشتباه اوغلطئ لرې کولو دپاره په بابل کښې دوه فرښتې چه نومونه ئې هاروت او ماروت وو دې کار دپاره رااولیږلې چه خلق د سحر په حقیقت او د دې شعبو نه خبر کړی دې دپاره چه د دوی اشتباه ختمه شی او خلق په جادو د عمل کولو نه منع شی
د سحر د اصولو او د فروعو خودلو نه وړاندې به دې فرښتو په التزام ( خامخا ) سره خلقو ته دا ویلې ، چه څمونږ په دې تعلیم ورکولو سره د الله تعالی د خپلو بندګانو امتحان هم مقصود دې چه کوم کس د سحر د حقیقت نه خبر شی او د خپل دین حفاظت او اصلاح اوکړی او په سحر د عمل کولو نه ځان ساتی ، او کوم کس دې چه هغه ددینه خبر شی او په خپله هم دا شر اختیار کړي ، دې وجه نه مونږ تاسو ته نصیحت کوو چه په ښه نیت د سحر د حقیقت نه د خبریدو کوشش اوکړئ ، هسې نه چه مونږ ته خو دا اووائې چه مونږ ددې ازکره دې دپاره کوو چه دینه بچ شو او بیا په خپله ددې شر او بربادی اختیار کړي
نو چه کوم سړی به دوی سره داسې عهدو پیمان اوکړو ، نو فرښتو به د ده وړاندې د جادو اصول او فروع او د دې حقیقت بیان کړو ، ځکه چه هم دوی ته دا ذمه داری ورکړې شوه ..... بعض خلقو به ددې وعدې پاسداری اوکړه او بعضو به دا وعده ماته کړه او دا جادو به ئې د خلقود ایذاء او د تکلیف ذریعه جوړوله ، چه دیکښې بعضې صورتونو کښې فسق او بعضو کښې کفر لازمیږی نو داسې څه خلق فاجر او کافر شو
حضرت تهانوی رحمه الله ددې مثال به ورکولو او فرمائل به ئې چه یو کس چه یو جامع المعقول و المنقول عالم باعمله ته ورشی او ورته اووائی ما ته قدیم یا جدید فلسفه اوښایه دې دپاره چه په خپله ددې د شبهاتو نه بچ شم چه کومه فلسفه کښې د اسلام خلاف بیان شوې دې او مخالفینو ته هم ددې جواب ورکړې شم ، او دې عالم ته شك وی چه هسې نه داسې اونشی چه دې ما ته دهوکه راکړی او دا ازده کړی او بیا په خپله د خلاف شرع باطل عقائدو د تقویت دپاره دا استعمالوی ، ددې شك په بناء باندې ده ته نصیحت اوکړی چه داسې مه کوه او دې وعده اوکړی او دینه پس دا عالم ده ته ددې تعلیم ورکړی خو دا سړې د فلسفې باطل او د اسلام خلاف نظریات صحیح اوګڼړی نو ظاهره ده ، چه دده په دې حرکت سره په خودونکی عالم باندې څوك ملامتیا نه شی ویلې ، نو هم دارنګه دې فرښتو ته هم د

...بقیه ازحاشیه گذشته] الإتيان به فی وقت واحد و المعجزة لا يمكن الله أحدا ان يأتی بمثلها و بمعارضتها ، ثم الساحر لم يدع النبوة ، فالذی يصدر منه متميز عن المعجزة فإن المعجزة شرطها إقتران دعوی النبوة و التحدی بها ، أحكام القرآن للقرطبی : ۲/ ۴۷ ، روح المعانی : ۱/ ۳۳۹ ، فتح الباری : ۱۰/ ۲۷۳ )

بدو نسبت نه شی کیدي چه دوی د سحر په حقیقت خلق خبر کړل او د دې د اصولو او د فروعو تعلیم ئې خلقو ته ورکړو
د آیت کریمه ترجمه دا ده: " دې ( یهودیانو ) د هغه څیزونو اتباع اوکړه چه کوم به شیطانانو لوستلو د ( حضرت ) سلیمان ( علیه السلام ) په زمانه د حکومت کښې ( حضرت ) سلیمان (علیه السلام ) کفر نه دې کړې ، خو شیطانانو کفر کړیدې چه خلقو ته به ئې جادو خودلو او دې ( یهودیانو ) د هغه سحر هم اتباع اوکړه چه کوم بابل ښار کښې په دوه فرشتو هاروت او ماروت باندې نازل شوې وو او دې دواړو به تر هغه وخته چا ته دا نه خودلو چه تر څو به ئې دا نه ویلې چه مونږ خو د آزمائش دپاره یو ، نو تاسو کفر مه اختیاروئ ، بعض خلقو به هغه جادو ازده کولو چه کوم سره د ښځې خاوند په مینځ کښې جُدائی راولی ، او خلق د سحر په ذریعه چا ته ضرر نه شی رسولې خو په حکم د الله تعالی سره ، خلق هغه څیزونه ازده کوی چه کوم دوی ته تاوان ورکوی دوی دپاره فائده مند نه وی ، دا ( یهودی ) خلق ښه پوهیږی چه کوم کس دا ( سحر د کتاب الله په بدل کښې ) اختیار کړی ، د داسې کس په آخرت کښې هیڅ حصه نشته دې -
**النفاثات : السواحر :** سورت فلق کښې ( من شر النفاثات فی العقد ) کښې د نفاثات نه جادوګرې ښځې مراد دی ، دا د حضرت حسن بصری رحمه الله تفسیر دې چه امام طبری په صحیح سند سره نقل کړیدې - ([1])
**تسحرون : تعمون**
د سورت المؤمنون په آیت کریمه کښې دی (سیقولون الله قل فأنی تسحرون) ابو عبیده په مجاز القرآن کښې د"تسحرون " تفسیر په "تعمون" سره کړیدې، أی کیف تعمون عن هذا و تصدون عنه ([2])
[۵۳۳۰] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ سَحَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي زُرَيْقٍ يُقَالُ لَهُ لَبِيدُ بْنُ الْأَعْصَمِ حَتَّى كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ كَانَ يَفْعَلُ الشَّيْءَ وَمَا فَعَلَهُ حَتَّى إِذَا كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ أَوْ ذَاتَ لَيْلَةٍ وَهُوَ عِنْدِي لَكِنَّهُ دَعَا وَدَعَا ثُمَّ قَالَ يَا عَائِشَةُ أَشَعَرْتِ أَنَّ اللَّهَ أَفْتَانِي فِيمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيهِ أَتَانِي رَجُلَانِ فَقَعَدَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِي وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ فَقَالَ مَطْبُوبٌ قَالَ مَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيدُ بْنُ الْأَعْصَمِ قَالَ فِي أَيِّ شَيْءٍ قَالَ فِي مُشْطٍ وَمُشَاطَةٍ وَجُفِّ طَلْعِ نَخْلَةٍ ذَكَرٍ قَالَ وَأَيْنَ هُوَ

[1] فتح الباری : ۱۰\۲۷۷ ، عمدة القاری : ۲۱\ ۲۷۹ ، ارشاد الساری : ۱۲\۴۸۲ )
[2] فتح الباری : ۱۰ \ ۲۷۷ و فی أحکام القرآن للقرطبی : ( فأنی تسحرون ) أی فکیف تخدعون و تصرفون عن طاعته و توحیده أو کیف یخیل إلیکم أن تشرکوا به ما لا یضر و لا ینفع ، و السحر هو التخییل . أحکام القرآن للقرطبی : ۱۲\۱۴۵ )

قَالَ فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ فَأَتَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَجَاءَ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ كَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ أَوْ كَأَنَّ رُءُوسَ نَخْلِهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا اسْتَخْرَجْتَهُ قَالَ قَدْ عَافَانِي اللَّهُ فَكَرِهْتُ أَنْ أُثَوِّرَ عَلَى النَّاسِ فِيهِ شَرًّا فَأَمَرَ بِهَا فَدُفِنَتْ - تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ وَأَبُو ضَمْرَةَ وَابْنُ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ
وَقَالَ اللَّيْثُ وَابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ هِشَامٍ فِي مُشْطٍ وَمُشَاقَةٍ
يُقَالُ الْمُشَاطَةُ مَا يَخْرُجُ مِنَ الشَّعَرِ إِذَا مُشِطَ وَالْمُشَاقَةُ مِنْ مُشَاقَةِ الْكَتَّانِ [ر: ۳۰۰۴]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه بنو زريق كښې يو سړي چه ده ته به لبيد بن اعصم ويلې كېدلو په نبي اكرم ﷺ جادو اوكړو ( چه د هغې اثر سره ) د دوی ﷺ دا حالت شو چه دوی ته به خيال راغلو چه ده يو كار كړيدى او حال دا دې چه ده به دا كار نه وو كړې ، تر دې چه يو شپه دوی ما ته راغلل خو دعا ئې كوله ، دعا كښې مشغول وو ، بيا ئې اوفرمائل :" اے عائشه تا ته معلومه ده چه ما څه معلومول غوښتل هغه الله تعالى ما ته اوخودل ، چه ما ته دوه سړي راغلل يو څما سر سره او بل څما د پښو سره كښيناستو ، دوی كښې يو بل ملګرى ته وائي : چه دې سړي ته څه تكليف دې ، نو دا بل ورته جواب وركوی ، په ده جادو شويدې ، نو هغه رومبي تپوس كوی : چا جادو كړيدې ؟ " ، دا بل جواب وركوی : لبيد بن اعصم " ، رومبي تپوس كوی : په څه څيز كښې جادو كړيدې ، دا دويم ورته وائي : په ګمنز كښې د سر په ويښتواو د نر كهجور په غونچكه كښې " رومبی تپوس اوكړو " دا څيزونه كوم ځائي دی ؟ " نو دا دويم ورته وائي : د ذروان په كوهی كښې... نو رسول الله ﷺ د څو اصحابو سره د غه كوهی ته ورغلو ، او بيا واپس راغلو او وې فرمائل : اے عائشه د دې كوهي اوبه د نكريزو د رنګک په شان سرې شوې وې د دې خوا كښې د اونو سرونه د شيطانانو د سرونو په شان وو " ما اوويل : اے د الله تعالى رسوله تاسو ددې تحقيق ولې اونكړو " دوی اوفرمائل :" ما ته الله تعالى صحت راكړو ،دې وجه نه ما په خلقو كښې د ده بدی مشهورول مناسب اونه ګڼړل " نو دوی ددې ګمنز دفن كولو حكم اوكړو

**قوله: سحر النبي رجلٌ من بني زريق :** بنو زريق د انصارو د مشهورې قبيلې خزرج يو ښاخ دې ، د مسلم روايت كښې دی " سحر النبی ﷺ يهودی من يهود بنی زُريق " (۱) او د ابن عيينه په روايت كښې راځي ، " رجل من بنی زريق حليف اليهود و كان منافقا " د مسلم روايت نه معلوميږی چه دې يهودی وو او د ابن عيينه په روايت كښې دی چه دې يهودو دوست وو او منافق وو

تطبيق داسې وركولې كيدې شی چه اصل كښې خو يهودی نه وو د دوی حليف او دوست وو ، او د حليف كيدو په وجه په بعض روايتونو كښې ورته يهودی ويلې شويدي - (۲)
قاضي عياض نقل كړيدی چه ده په ظاهره اسلام قبول كړې وو - (۳)

(۱) صحيح مسلم ، كتاب السلام ، باب السحر : ٤ \ ۱۷۱۹ ( رقم الحديث : ۲۱۸۹ )
(۲) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۷۷ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ٤۸٦ )
(۳) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۷۷ ، ارشاد السارى : ۱۲ \ ٤۸٦ )

په نبی کریم ﷺ باندې د سحر کولو دا واقعه کله راپیښه شوې وه ؟ واقدی په خپل سند سره یو روایت رانقل کړیدې چه ابن سعد په " طبقات " کښې ذکر کړې دی ، دیکښې دی "

لما رجع رسول الله ﷺ من الحديبية في ذي الحجة و دخل المحرم من سنة سبع جاءت رؤساء اليهود إلى لبيد بن الأعصم و كان حليفا في بني زريق و كان ساحرا فقالوا له : يا أبا الأعصم ، أنت أسحرنا ، و قد سحرنا محمدا ، فلم نصنع شيئا ، و نحن نجعل لك جعلا على أن تسحره لنا سحرا ينكؤه ، فجعلوا له ثلاثة دنانير " (۱)

یعنی رسول الله په میاشت د ذی الحجه کښې غزوه حدیبیه نه واپس شوې وو او محرم د اووم کال د هجرت داخل شوې وو نو د یهودو سرداران لبید بن اعصم ته راغلل ، لبید حلیف وو په بنو زریق کښې او دې جادوګر وو یهودی سردارانو ده ته اوویل : چه " ته په مونږ کښې لوې جادوګر ئې مونږ په محمد جادو اوکړو خو ددې هیڅ اثر په ده اونه شو ، ته په ده داسې جادو اوکړه چه ده لره خیرې کړې مونږ به تاله معاوضه مقرر کړو نو یهودی سردارانو ده لره درې دیناره معاوضه مقرر کړه

( جُعل وظیفه او معاوضه ته وائی ، د نکأ معنی د سوری کولو او د زخمی کولو راځی )

د دې جادو اثر څومره مُدې پورې وو ؟ په بعض روایتونو کښې دی چه تر څلویښت ورځو پورې وو او په بعض روایتونو کښې د شپږو میاشتو ذکر دې ، حافظ ابن حجر د دواړو روایتونو تطبیق کړیدې او لیکی :

" ويمكن الجمع بأن تكون الستة أشهر من ابتداء تغير مزاجه ، و الأربعين يوما من استحكامه " (۲)

یعنی ټوله مُده خو شپږ میاشتې وه ، خو دیکښې څلویښت ورځې د جادو اثر بالکل مستحکم او کلك وو نو چه کومو روایتونو کښې د شپږو میاشتو ذکر دې نو دینه د جادو د ابتدائی اثر نه واخله تر آخره پورې ټوله مُده د سحر مراد ده ، او چه کومو روایتونو کښې د څلویښتو ورځو ذکر دې دینه د جادو د تاثیر د استحکام والا مُده مراد ده -

**قوله: حتى كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يخيل إليه أنه كان يفعل الشيء وما فعله:** د جادو اثر وو چه رسول الله ﷺ به یو کار نه وو کړې خو دوی به ګنړل او خیال به ئې کولو چه دا کار ما کړیدې ، د بیهقی په دلائل النبوة په روایت کښې دی " فكان يدور ، ولا يدري ما وجعه " (۳) یعنی دوی به د پریشانئ او د تکلیف په وجه د بې آرامئ په حالت کښې چکر لګولو او د پریشانې وجه به ورته نه وه معلومه ـ

**قوله: وهو عندي لكنه دعا ودعا:** حضرت عائشه فرمائی چه حضور اکرم ﷺ ما سره به

---

(۱) الطبقات الكبرى لابن سعد ، ذكر من قال : إن اليهود سحرت رسول الله صلى الله عليه وسلم : ۲\۱۹۷ )

(۲) ) فتح الباری : ۱۰\۲۷۸ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۸۰ )

(۳) دلائل النبوی کښې الفاظ داسې دی :" و كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يذوب و لا يدري ما وجعه " دلائل النبوة للبيهقي ، باب الرقية بكتاب الله عزوجل ، و ما جعل الله عز وجل فيه من الشفاء حتى ظهرت آثاره : ۷\۹۲ )

ووخودعا به ئې كوله، علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه"لكنه " كښې احتمال شته دې چه دا د استدراك د " عندى " نه وى يعنى دې خو به ماسره وو خو دعا كښيې به مشغول وو -

او دا استدراك د " يخيل إليه أنه كان يفعل ... " نه هم كيدې شى چه رسول الله ﷺ باندې د جادو اثر په بعض طبعى امورو كښ وو ، چه كار به ئې نه وو كړې او دوى به خيال كولو چه دا كار مې كړيدې خو د دوى فهم او عقل او شرعي امورو كښې ددې څه اثر هم نه وو راغلې - (۱) لكه چه دوى به برابر د صحت دعا غوښتله

**قوله: أفتاني فيما استفتيته:** د حميدى په روايت كښې دى " أفتاني فى أمر استفتيته فيه " أى أجابنى فيما دعوته يعنى الله تعالى ځما د دعا او د سوال جواب راكړو -
مسند احمد كښ د معمرى روايت او په طبرانى كښې د مرجا بن رجاء روايت كښې دى :" أتاني ملكان " دې (۲)
ابن سعد د دواړو نوم ذكر كړيدې چه دا دواړه حضرت جبرائيل او حضرت ميكائيل عليهما السلام وو (۳)

**قوله: فقعد أحدهما عند رأسي والآخر عند رجلي :** يو فرشته سر مبارك او بله پښو مباركو سره كښيناسته سيرت دمياطى كښې دى چه د سر طرف ته ناسته فرشته حضرت جبرائيل او پښو طرف ته ناسته فرشته حضرتميكائيل وو (۴)

**قوله: فقال أحدهما لصاحبه :** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائلې دى چه د تمامو طريقو جمع كولو نه معلوميږى چه سوال كولو والا حضرت ميكاييل او جواب وركوونكې حضرت جبرائيل وو - (۵)
فقال : مطبوب : مطبوب په معنى د مسحور دې ، طب الرجل : سحر كول ، د طب اطلاق په علاج باندې هم كيږى او په بيمارئ باندې هم ، اضدادو كښې دې . (۶) د كتاب الطب په شروع كښې دا بحث تير شويدې

**قوله: في مشط ومشاطة:** مشط ( د ميم د ضمه او د شين د سكون سره ) ګمنز ته وائى او مشاطة هغه ويختو ته وانى چه كوم د ګمنز كولو په وخت د د سر نه اوځى - (۷)

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى ط : ۲۱ \ ۲۸۰ )
(۲) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى ط : ۲۱ \ ۲۸۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳ )
(۳) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳)
(۴) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۰ ، وقال القسطلانى : ( فقال أحدهما وهو جبريل أو ميكائيل ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳)
(۵) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳)
(۶) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳)
(۷) فتح البارى : ۱۰\ ۲۷۸ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۰ ، ارشاد السارى : ۱۲\ ۴۸۳)

**قوله: وجُفّ طلع نخلة ذكر:** دلته د بخارى په روايت كښې جفّ ( د جيم د ضمه او د فاء سره) دې اود مسلم روايت كښې دجُبّ (د باء سره دې ) د كجور په غونچكه چه كوم پوستكې او غلاف وى هغه ترينه مراد دې ، دا مذكر او مؤنث دواړه استعماليږى ، ځكه ئې وړاندې د " ذكر " لفظ راوړيدې ذكر د " جف " صفت دې طلع د كجورو غنچكې ته وائى - ([1])

**قوله: في بئر ذروان:** په بعض روايتونو كښې بئرذى أروان دې ، دا په مدينه منوره كښې بستان بنى زريق كښې د واقع يو كوهى نوم دې - ([2])

**قوله: فأتاها رسول الله صلى الله عليه وسلم في ناس من أصحابه:** د ابن سعد روايت كښې دى چه حضرت على او حضرت عمار ﷺ ته دوى ﷺ په ملگرتيا كښې د تلو دپاره اوويل او يو روايت د جبير بن اياس زرقى نوم راغلې دې ، جبير بن اياس بدرى صحابى دې ، حضور ﷺ ځائې اوخودلو او دوى دغه ويختنه رااوويستل او بعض وائى چه قيس بن محصن زرقى راويستې وو، كيدې شى ، يو امداد كړې وى او بل راويستې وى([3])

**قوله: كان ماءها نقاعة الحناء:** نقاعة ( د نون د ضمه سره ) نقع په معنى د لوندولو راځى ، حنا نكريزو ته وائى يعنى دا اوبه داسې سرې لگيدلې لكه چه چا په كښې نكريزې اچولې وى ، مطلب دا دى چه د خرابيدو د وجه نه د دې كوهى د اوبو رنگ بدل شوې وو ، يا چه څه ديكښې ئې گډ كړې وو د هغې د وجه نه د دې رنگ بدل شوې وو ([4])

**قوله: فكرهت أن أثور على الناس فيه شرا:** حضور اكرم ﷺ اوفرمائل چه ما ته د خلقو په شر باندې رااوچتول مناسب ښكاره نه شو ، الله تعالى ما ته صحت راكړو ، دې وجه نه د زيات تحقيق او تفتيش ضرورت نشته دې چه خبره خوره شى او انتشار پيدا شى ، أثور د باب د تفعيل نه د متكلم صيغه ده ثوّرتثويرا تيزول رااوچتول

**قوله: تابعه أبو أسامة وأبو ضمرة وابن أبي الزناد:** يعنى د عيسى بن يونس متابعت ابو اسامه ( حماد بن اسامه ) او ابوضمره ( د ضاد په فتحه او د ميم په سكون سره ) ( انس بن عياض ) او ابن ابى الزناد ( عبد الرحمن بن عبد الله بن ذكوان ) كړيدې ، د ابو اسامه متابعت امام بخارى دوه بابه وړاندې او د ابوضمره متابعت ئې په دعوات كښې موصولاً نقل كړيدې ، ابن ابى الزناد متابعت متعلق حافظ فرمائى چه ما ته لا تر اوسه نه دې معلوم شوې چه دا چا موصول نقل كړيدې ([5])

---

[1] فتح البارى : ١٠ \ ٢٧٨ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٨٠ ، ارشاد السارى : ١٢ \ ٤٨٣ )
[2] فتح البارى : ١٠ \ ٢٧٨ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٨٠ )
[3] فتح البارى : ١٠ \ ٢٨٢ ، ارشاد السارى : ١٢ \ ٤٨٤ )
[4] فتح البارى : ١٠ \ ٢٨٢ ، عمدة القارى : ٢١ \ ٢٨١ ارشاد السارى : ١٢ \ ٤٨٤)
[5] فتح البارى : ١٠ \ ٢٨٤ وقال العينى : و سيأتى موصولا فى كتاب الدعوات إن شاء الله تعالى ، عمدة القارى : ١٠ \ ٢٨٢ )

**قوله: وقال الليث وإبن عيينة عن هشام: في مشط ومشاقة :** دلته بره روايت كښې مشاطة ( د طاء سره ) دي ، ليث او سفيان بن عيينه په روايت كښې مشاقة ( د قاف سره ) دي ، مشاطة هغه ويختو ته وائى چه كوم د ګمنز كولو په وخت د سر او د ګيرې نه اوغورزيږى ، وړاندې امام بخارى نقل كړيدې المشاطة : مايخرج من الشعر إذا مُشِط و المشاقة : من مشاقة الكتان يعنى مشاطة د ګمنز كولو په وخت وتونكې ويختو ته وائى او مشاقى د كپړو او د تان بنړلو په وخت چه كومې ريشې بيليږى د هغې دپاره استعماليږى (۱)

## ۴۷= بَابُ الشِّرْكُ وَالسِّحْرُ مِنْ الْمُوبِقَاتِ

[۵۴۳۱] حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْتَنِبُوا الْمُوبِقَاتِ الشِّرْكُ بِاللَّهِ وَالسِّحْرُ [ر: ۲۶۱۵]

موبقات د موبقة جمع ده ، د باب افعال اسم فاعل مؤنث صيغه ده ، هلاك كوونكى ، موبقات ، مهلكات ، روايت كښې دى موبقات نه بچ شئ ، ديكښې يو شرك او يو جادو دې " الشرك بالله ، السحر " تركيب كښې مبتدا دې او خبر " منها " ئې محذوف دې أى منها الشرك والسحر " يا دا خبر دې او مبتداء محذوف دې أى الأول : الشرك و الثانى : السحر دا روايت كتاب الوصايا كښې تير شويدې " إجتنبوا السبع الموبقات : الشرك بالله و السحر ، وقتل النفس التى حرم الله إلا بالحق ، و أكل مال اليتيم ، و أكل الربا ، والتولى يوم الزحف و قذف المحصنات " (۲) دلته امام بخارى دا مختصر ذكر كړيدې

## ۴۸= بَابُ هَلْ يَسْتَخْرِجُ السِّحْرَ

وَقَالَ قَتَادَةُ قُلْتُ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ رَجُلٌ بِهِ طِبٌّ أَوْ يُؤَخَّذُ عَنْ امْرَأَتِهِ أَيُحَلُّ عَنْهُ أَوْ يُنَشَّرُ قَالَ لَا بَأْسَ بِهِ إِنَّمَا يُرِيدُونَ بِهِ الْإِصْلَاحَ فَأَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَلَمْ يُنْهَ عَنْهُ

[۵۴۳۲] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُيَيْنَةَ يَقُولُ أَوَّلُ مَنْ حَدَّثَنَا بِهِ ابْنُ جُرَيْجٍ يَقُولُ حَدَّثَنِي آلُ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ فَسَأَلْتُ هِشَامًا عَنْهُ فَحَدَّثَنَا عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُحِرَ حَتَّى كَانَ يَرَى أَنَّهُ يَأْتِي النِّسَاءَ وَلَا يَأْتِيهِنَّ قَالَ سُفْيَانُ وَهَذَا أَشَدُّ مَا يَكُونُ مِنْ السِّحْرِ إِذَا كَانَ كَذَا فَقَالَ يَا عَائِشَةُ أَعَلِمْتِ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَفْتَانِي فِيمَا اسْتَفْتَيْتُهُ فِيهِ أَتَانِي رَجُلَانِ فَقَعَدَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ

---

۱) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۸۴ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۲ )

۲) فتح البارى : ۱۰ \ ۲۸۴ ، عمدة القارى : ۲۱ \ ۲۸۲ )

رَأْسِي وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلَيَّ فَقَالَ الَّذِي عِنْدَ رَأْسِي لِلْآخَرِ مَا بَالُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوبٌ قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيدُ بْنُ أَعْصَمَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي زُرَيْقٍ حَلِيفٌ لِيَهُودَ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ وَفِيمَ قَالَ فِي مُشْطٍ وَمُشَاقَةٍ قَالَ وَأَيْنَ قَالَ فِي جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ تَحْتَ رَاعُوفَةٍ فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ قَالَتْ فَأَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبِئْرَ حَتَّى اسْتَخْرَجَهُ فَقَالَ هَذِهِ الْبِئْرُ الَّتِي أُرِيتُهَا وَكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ وَكَأَنَّ نَخْلَهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ قَالَ فَاسْتُخْرِجَ قَالَتْ فَقُلْتُ أَفَلَا أَيْ تَنَشَّرْتَ فَقَالَ أَمَا اللَّهُ فَقَدْ شَفَانِي وَأَكْرَهُ أَنْ أُثِيرَ عَلَى أَحَدٍ مِنَ النَّاسِ شَرًّا [ر: ۳۰۰۴]

**د سحر او د جادو د علاج کولو حکم** : دَ جادو ختمول او ددې علاج کول جائز دی او کّه نه ؟

امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب کښې " هل " د استفهام کلمه استعمال کړیده ، څکه چه دیکښې اختلاف دې

د حضرت حسن بصری رحمه الله په نزد مکروه دې ، هغه وائی چه د سحر علاج ساحر کولې شی ، نو دې دپاره به ساحر ته تلل وی او ساحر او کاهن ته د تلو نه منع راغلې ده (۱)

امام ابو داود رحمه الله په مراسیل کښې د حضرت حسن بصری رحمه الله نه یو مرفوع حدیث هم نقل کړیدې چه " النشرة من الشیطان" (۲)

عبدالرزاق هم د حضرت جابر رضی الله عنه یو قول نقل کړیدې چه دوی نه د نشرة په باره کښې تپوس اوشو نو دوی اوویل : من عمل الشیطان " - (۳)

نشرة د جادو ختمولو دپاره چه کوم دم او عمل کیږی هغې ته وائی - (۴)

خو د جمهور عالمانو په نزد د جادو علاج کول او د سحر ماتول جائز دی (۵) امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د حضرت سعید بن المسیب قول نقل کولو سره د جمهور عالمانو تائید کړیدې ـ

قتاده وائی چه ما د حضرت سعید بن المسیب نه تپوس اوکړو " رجل به طب او یؤخذ عن إمرأته، أیحل عنه أو ینشر؟ " یعنی چه په یو سړي جادو شوې وی یا دې دښځې نه بند کړې شوې وی (چه دده نه د جماع صلاحیت په ذریعه د جادو ختم کړې شوې وی ) نو آیا دده نه جادو ختم کیدې شی ؟

طب جادو ته وائی ، یؤخذ : تأخیذ دباب تفعیل نه د مضارع مجهول صیغه ده ، أخذة هغه

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۲۸۶ شرح صحیح البخاری لابن البطال : ۹\۴۴۵ )

۲) فتح الباری : ۱۰\۲۸۶ )

۳) شرح صحیح البخاری لا بن البطال : ۹\۴۴۴ ، ۴۴۵ )

۴) فتح الباری : ۱۰\۲۸۶ )

۵) فتح الباری : ۱۰\۲۸۶ )

منتر ته وائى چه هغه اويلې شى د يو سړى د جماع صلاحيت ختم يا متاثر كړې شى (۱)

أيحل عنه : ديكښې همزه د استفهام ده ،حل حلا خلاصول ، ينشر : تنشير د باب تفعيل نه مجهول صيغه ده ددې معنى هم د جادو ختمول دى ، دا د نشرة نه دې نشرة د تعويذ او د دم په شان د جادو د ختمولو يومخصوص طريقه او د عمل نوم دې

يحل او ينشر د دوه لفظونو استعمال ئې كړيدې ديكښې يا "أو" د شك دپاره دې او يا د لف نشر مرتب په طور د دواړو لفظونو استعمال شويدې ، دا رنګه چه د " يحل " تعلق د " رجل به طب " سره او د ينشر " تعلق د "يؤخذ عن إمرأته " سره دې - (۲)

حاصل دا دې چه قتاده د حضرت سعيد بن المسيب نه د سحر د علاج متعلق تپوس اوكړو چه ددې ماتول او ختمول جائز دې او كه نه؟ نو دوى اوفرمائل :" لا بأس به ، إنما يريدونه به الإصلاح ، فأما ماينفع فلم ينه عنه " يعنى علاج كولو كښې څه حرج نشته دې ، خلق خو داسې اصلاح غواړى د نافع او د مفيد كار نو څه ممانعت نشته دې ، د هشام دستوائى په طريق كښې دا الفاظ دى "إنما نهى الله عما يضره ، ولم ينه عنما ينفعه" - (۳)

د قتاده دا تعليق ابو بكر اثرم په " كتاب السنن كښې موصولاً نقل كړيدې - (۴)

د علاج د سحر يو طريقه: ابن بطال د وهب بن منبه په حواله سره نقل كړيدى چه په چا داسې جادو اوشى چه دې ښځې ته د ورتلو نه عاجز وى نو داسې سړى لره د شنې بيرې د اونې نه اووه پاڼې دې راواخستې شي ، په دوه كانړو دې دا اوټكولې شى ، او په اوبو كښې دې ملاو كړې شى ، بيا دې پرې آيت الكرسى او څلور واړه قل اولولى ، بيا دې دينه درې ګوټه اوڅكى او په باقى دې اولامبى نو انشاء الله د جادو اثر به لاړ شى - (۵)

حافظ ابن حجر رحمه الله دلته د جادو د اثر ختمولو نورې طريقې هم ليكلې دى (۶)

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۲۸۶ ، عمدة القارى : ۲۱\۲۸۳ ، ارشاد السارى : ۱۲\۴۸۵ )

۲) عمدة القارى : ۲۱\۲۸۳ ، ارشاد السارى : ۱۲\۴۸۵ )

۳) ارشاد السارى: ۱۲\۴۸۵ )

۴) فتح البارى : ۱۰\۲۸۶ ، ارشاد السارى : ۱۲\۲۸۵ )

۵) فتح البارى : ۱۰\۲۸۶ ، عمدة القارى : ۲۱\۲۸۴ ، ارشاد السارى : ۱۲\۴۸۵ ، و كذا فى رد المحتار على الدر المختار : ۲\۶۴۵ ، كتاب النكاح باب العنّين وغيره ، مطلب فى فك المسحور و المربوط )

۶) لكه چه حافظ ابن حجر فرمائى : قال نصوح : فسألنى حماد بن شاكر : ما الحل و مالنشرة :؟ فلم أعرفها ، فقل : هو الرجل إذا لم يقدر على مجامعة أهله و أذاق ما سواها فإن النبتى بذلک يأخذ حزمة قضبان و فأسا ذا قطارين و يضعه فى وسط تلک الحزمة ثم يؤجج نارا فى تلک الحزمة حتى إذا ما حمى الفأس استخرجه من النار و بال على حره فإنه يبرأ بإذن الله تعالى ، و أما النشرة فإنه يجمع أيام الربيع ما قدر عليه من ورد المفارة وورد البساتين ثم يلقيها فى إناء نظيف و يجعل فيها ماء عذبا ثم يغلى ذلک الورد فى الماء غليًا يسيرا ثم يمهل حتى إذا فتر الماء أفاضه عليه فإنه يبرأ بإذن الله تعالى ، ۲۸۷ )

روایت د باب کښې په حضور اکرم ﷺ د جادو کولو واقعه بیان شویده چه کومه دېنه وړاندې تیره شویده ، خو دې روایت کښې څو جملې نوې دی :

**قوله**: قَالَ سُفیَان :وهذاأشدمایکون من السحرإذاکان کذا: سفیان وائی چه کله دا صورت حال وی ( چه سړی څه کار نه وی کړې او ده ته دا خیال راځی چه ده دا کار کړیدې ) نو دا د جادو سخت اثر وی

**قوله**: تحت رَعوفة: رَعوفة او راعوفة د کوهی هغه لوې کاڼړی ته وائی چه د کوهی په غاړه ئې اړدی دې دپاره چه په دې اودریدل اوشی او اوبه ترینه رااوویستې شی او اوڅکلې شی ابوعبیده وایی : چه دېنه هغه کاڼړې مراد چه کوم د کوهی د کنیستو په وخت دیکښې دننه اولګولې شی دې دپاره چه په دې ناسته کیږی دپاره د کوهی صفا کولو - (۱)

## ۴۹=بَابُ السِّحْرِ

[۵۴۳۳]حَدَّثَنَا عُبَیْدُ بْنُ إِسْمَاعِیلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِیهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ النَّبِیُّ صَلَّی اللَّهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حَتَّی إِنَّهُ لَیُخَیَّلُ إِلَیْهِ أَنَّهُ یَفْعَلُ الشَّیْءَ وَمَا فَعَلَهُ حَتَّی إِذَا کَانَ ذَاتَ یَوْمٍ وَهُوَ عِنْدِی دَعَا اللَّهَ وَدَعَاهُ ثُمَّ قَالَ أَشَعَرْتِ یَا عَائِشَةُ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَفْتَانِی فِیمَا اسْتَفْتَیْتُهُ فِیهِ قُلْتُ وَمَا ذَاکَ یَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ جَاءَنِی رَجُلَانِ فَجَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِی وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلَیَّ ثُمَّ قَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوبٌ قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِیدُ بْنُ الْأَعْصَمِ الْیَهُودِیُّ مِنْ بَنِی زُرَیْقٍ قَالَ فِیمَا ذَا قَالَ فِی مُشْطٍ وَمُشَاطَةٍ وَجُفِّ طَلْعَةٍ ذَکَرٍ قَالَ فَأَیْنَ هُوَ قَالَ فِی بِئْرِ ذِی أَرْوَانَ قَالَ فَذَهَبَ النَّبِیُّ صَلَّی اللَّهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِی أُنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ إِلَی الْبِئْرِ فَنَظَرَ إِلَیْهَا وَعَلَیْهَا نَخْلٌ ثُمَّ رَجَعَ إِلَی عَائِشَةَ فَقَالَ وَاللَّهِ لَکَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ وَلَکَأَنَّ نَخْلَهَا رُءُوسُ الشَّیَاطِینِ قُلْتُ یَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَأَخْرَجْتَهُ قَالَ لَا أَمَّا أَنَا فَقَدْ عَافَانِیَ اللَّهُ وَشَفَانِی وَخَشِیتُ أَنْ أُثَوِّرَ عَلَی النَّاسِ مِنْهُ شَرًّا وَأَمَرَ بِهَا فَدُفِنَتْ[ر:۳۰۰۴]

**تعارض د روایتونو او ددې حل** : دې باب کښې هم امام بخاری رحمه الله په حضور اکرم ﷺ د جادو کیدو واقعه ذکر کړیده ، د دې آخر کښې دی چه د حضرت عائشه د نبی اکرم ﷺ نه تپوس اوکړو چه أفأخرجته آیا تا هغه جادو رااوویستو ؟ نو حضور ﷺ اوفرمائل : نه دېنه معلومه شوه چه حضور اکرم ﷺ د کوهی طرف ته تلې وو خو چه په کومو څیزونو جادو شوې وو هغه دوی رااونه ویستل ، حال دا دې چه دېنه وړاندې باب کښې دا روایت د سفیان بن عیینه په طریق سره روایت دې ، دیکښې دی "فأتی النبی ﷺ البئرحتی استخرجه" چه

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۲۸۷)

دوی دې کوهی ته راغلل او دوی دا جادو د دغه ځائې نه رااوویستلو ، په دې دواړو خبرو کښې تعارض دې - د دې تعارض مختلف جوابونه ورکړې شویدې
① يو دا چه روايت د باب ابو اسامه ( حماد بن اسامه ) نه دې او د دوی په مقابله کښې د سفيان بن عيينه مرتبه اوچته ده ، دې وجه نه د سفيان روايت ته به ترجيح ورکولې کيږي[1]
② دويم دا جواب ورکړې شويدې ، چه روايت د باب کښې د استخراج د نفی نه مراد دا دې چه د کهجورې د غنچکې نه هغه ويخته نه وو راويستې شوې او د سفيان په روايت کښې چه د استخراج کوم ذکر دې دينه " استخراج من البئر " مراد دې يعنی د کوهی نه دغه غنچکه راويستې شوې وه خو د غنچکې نه بيا دغه ويخته را اونه ويستلې شول ، چه په کومو جادو شوې وو ، نو داسې په دواړو روايتونو کښې تطبيق کيږي چه نفی د استخراج من الجف ده او اثبات د استخراج من البئر دې - [2]
خو په دې جواب د بيهقی د دلائل النبوة ددې روايت نه اشکال کيږي چه هغې کښې دی :"
قال : فنزل رجل فاستخرج جف طلعة من تحت الراعوفة ، فإذا فيه مشط رسول الله ﷺ و من مراطه رأسه ، و إذا تمثال من شمع تمثال رسول الله ﷺ ، وإذا فيها إبر مغروزة ، وإذا وتر فيه إحدى عشرة عقدة ، فأتاه جبريل عليه السلام بالمعوذتين ، فقال : يا محمد * قل أعوذ برب الفلق * وحل عقدة * من شر ما خلق * وحل عقدة حتى فرغ منها ، ثم قال : * قل أعوذ برب الناس * وحل عقدة حتى فرغ منها وحل العقد كلها - و جعل لا ينزع إبرة إلا وجد لها ألما ، ثم يجد بعد ذلك راحة " [3]
يعنی يو سړې کوز شو او دکوهی د کاڼړی لاندې نه ئې د کهجورې غنچه راويستله نو په هغې کښې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د سر مبارك هغه ويښته وو کوم چه د ګومنځولو په وخت وتلی وو ، اود شمعې نه د رسول الله ﷺ يو مثل جوړکړې شوې وو ، چه په هغې کښې ستنې ښخې شوې وې ، په هغې کښې د ځرمنې يو تار هم وو چه هغې ته يوولس غوټې ورکړې شوې وې ، حضرت جبرئيل عليه السلام د معوذتينو (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ بربّ الناس) دواړه سورتونه راوړل او وې وئيل اې محمد ! قل اعوذ برب الفلق يو آيت وايه او يوه غوټه پرانيزه ، من شر ما خلق اووايه او بله غوټه پرانيزه تردې چه د قل اعوذ بربّ الفلق پنځه آياتونه لوستلو نه فارغ شو ، بيا حضرت جبرئيل عليه السلام اووئيل چه قل اعوذ بربّ الناس اووايه او غوټه پرانيزه ، تردې چه د سورة الناس شپږ آياتونه لوستلو نه فارغ شو (دغه شان ئې د دواړو سورتونو يوولس آياتونه لوستلو سره يوولس غوټې نبی کريم ﷺ پرانستل) په شکل کښې

---

[1] عمدة القاری : ٢١ \ ٢٨٤ ،فتح الباری : ١٠ \ ٢٨٨ ، ارشاد الساری :١٢ \ ٤٨٧ )
[2] عمدة القاری : ٢١ \ ٢٨٤ ،فتح الباری : ١٠ \ ٢٨٨ ، ارشاد الساری :١٢ \ ٤٨٧ )
[3] ) دلائل النبوة للبيهقی : باب الرقية بکتاب الله عزوجل و ما جعل الله عزو جل فيه من الشفاء حتی ظهرت آثاره : ١٧ \ ٩٤ )

ښځې كړې شوې هر يو ه ستن چه به نبی كريم ﷺ راويستله درد به ئې محسوسولو. هر كله چه تولې غوټې پرانستلې شوې او ستنې ئې راويستلې نو حضور ﷺ بيا آرام او سكون محسوس كړو. د بيهقی دې روايت كښې تفصيل راغلې دې چه رسول الله ﷺ د جادو دغه غنچكه د كوهی نه راراويستله او دينه پس ئې دينه ويخته هم اوويستل او ديكښې لګيدلې غوټې ئې هم پرانستلې -

③ دې وجه نه دې تعارض دفع كولو دپاره يو دريم جواب وركيدې شی چه دې روايت كښې "أفاأخرجته" نه مراد اظهار دې او ددې معنی "أفاأظهرته" دې يعنی اے د الله رسوله تاسو د خلقو وړاندې ددې جادو اظهار اوكړو ؟ نو حضور ﷺ اوفرمائل : نه ، ما د فتنې د يرې نه ددې اظهار اونكړو نو د اخراج نه د جادو شوی څيز راويستل مراد نه دی بلكه د خلقو وړاندې :دې جادو اظهار مراد دې د دې تائيد د مسند احمد د روايت سره هم كيږی چه هغې كښې دی :"أفلاأخرجته للناس" (۱)

دې وجه نه د سفيان د روايت سره ددې هډو تعارض نشته دې ، دا يو داسې جواب او دلفظ د "أخرجته" داسې تشريح ده چه په دې هيڅ قسم اشكال نه واقع كيږی

فائده : روايت د باب كښې د حضرت عائشه ﷞ سوال په دې الفاظو نقل شويدې "يارسول الله أفاأخرجته، قال: لا ...... " د سفيان په روايت كښې دا الفاظ دا دی "فقلتُ : أفلاأى تنشرت: فقال أما والله فقد شفانى ........ " او دينه وړاندې باب السحر كښې د عيسی بن يونس روايت كښې دی "قلت : يارسول الله، أفلا استخرجته، قال: قد عافانى الله ..... " او د مسلم شريف روايت كښې دی "قلت : يا رسول الله أفلا أحرقته ؟ قال : لا ........ " (۲) دا ټول څلور روايتونه شو ، ديكښې په روايت د باب او د مسلم په روايت كښې د نبی كريم ﷺ جواب په "لا" سره ذكر دې - په باقی دوه روايتونو كښې د "لا" ذكر نشته دې په "قد عافانی الله ....." سره ئې جواب ذكر كړيدې ، د سفيان په روايت كښې أفلا تنشرت نشرة دې يعنی تاسو دا د خلقو وړاندې ولې راانه ويستلو ،نشرة هغه عمل ته وائی چه هغې سره جادو ختم كړې شی ، حضرت عائشه ﷞ مقصد دا وو چه تاسو به د خلقو وړاندې د جادو ختمولو دا عمل كړې وې او د مسلم په روايت كښې د "أفلاأحرقته" معنی ده آيا تاسو هغه څيزونه اوسوزول چه هغې كښې سحر شوې وو -

حاصل دا دې چه . بخاری درې واړو روايتونو كښې د اخراج ، استخراج او د تنشير يو معنی ده چه تاسو دغه جادو د خلقو وړاندې ولې ظاهر نه كړو نو حضور ﷺ اوفرمائل الله ما ته شفا راكړه دې وجه نه د خلقو وړاندې ددې د اظهار ضرورت نه وو ، او بيا چه لا د

---

(۱) مسند الإمام أحمد بن حنبل : ۶\۵۷ )

(۲) صحيح مسلم ، كتاب السلام ، باب السحر : ۴\۱۷۱۹ ( رقم الحديث : ۲۱۸۹ )

اظهار کولو سره د شر او د فتنې پیدا کیدو هم یره وی -
**خبرداری** : په بعض نسخو کښې دلته په دې حدیث د " باب السحر " عنوان نه دې قائم شوې، ځکه چه د " باب السحر " ترجمه بعینه دینه دوه بابه وړاندې تیره شوې ده او دلته هم دا مناسب معلومیږی (۱)

خو شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله په " الابواب و التراجم " کښې فرمائلې دی چه ځما په نزد د دواړو ترجمو غرض جُدا جُدا دې ، په رومبۍ ترجمه کښې د سحر حقیقت ثابتول او ددې د منکرینو تردید کول دی او ددې دویمې ترجمې مقصد احکام د سحر ذکر کول دی ، مثلا دعا په ذریعه د جادو د علاج کولو جواز وغیره بیانول مقصود دی ، دا رنګه په دې دویمه ترجمه سره دې خبرې ته اشاره کول مقصود دی ، چه د دعا په ذریعه د سحر ازاله کول د دواء په ذریعه د سحر د ازالې کولو نه بهتر او افضل دی ، وړاندې امام بخاری رحمه الله په کتاب الدعوات کښې د " باب تکریر الدعاء " ذکر کړیدې او ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله د نبی کریم ﷺ د سحر والا حدیث ذکر کړیدې ، دیکښې هم دې خبرې ته اشاره ده چه مسحور لره پکار دی چه دې د تکرار د دعا کولو اهتمام اوکړی ، ځکه چه نبی کریم ﷺ په زمانه د سحر کښې به بیا بیا د دعا ګانو اهتمام کولو ، لکه چه حدیث کښې دی دعا ، فقد دعا ثم دعا ..... لکه چه حضرت لیکی

"قلت : ولا یبعد عند هذا العبد الضعیف أن یقال فی دفع التکرار أن الغرض من الترجمتین مختلف ، فالغرض من الأول إثبات حقیقة السحر ردا علی من أنکره ، کما تقدم ، والغرض ههنا ذکر أحکام السحر من جواز العلاج لإزالته بالدعاء وغیره ، وأشار إلی أن إزالته بالدعا أفضل من العلاج بالدواء وسیأتی فی کتاب الدعوات : باب تکریر الدعاء فذکر فیه حدیث سحره ﷺ ، وأشار بذلك إلی أنه ینبغی للمسحور أن یکرر الدعاء ، فقد کرر النبی صلی الله علیه وسلم الدعاء له فقد دعا ، ثم دعا" (۲)

**د ساحر حکم** : د احنافو په نزد کُه د ساحر سحر په کفر مشتمل وی ، نو داسې سحر کوونکې کافر دې ، دې وجه نه دې به قتل کړې شی ، دیکښې مسلمان ذمی ، ازاد غلام ، ښځه او سړې ټول برابر دی ، دا په هغه صورت کښې دی چه کله دې په دې کفری سحر سره فساد خوروی ، خو کُه دې فساد نه خوروی نوداسې صورت کښې د امام جصاص په نزد باندې سړې خو به قتل کیږی ، ښځه به نه قتل کیږی ، چه څنګه به مرتد سړې قتل کیږی خو مرتده ښځه به نه قتل کیږی ، بلکه دا به په قید کښې ساتلې کیږی او دارنګه ساحره به هم په قید کښې ساتلې کیږی ، او ساحر سړې به قتل کیږی ، د امام مالك او د امام احمد رحمهما الله هم دا مسلك دې - (۳)

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۲۸۹)
(۲) الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۲)
(۳) رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الجهاد ، باب المرتد ، مطلب فی الساحر و الزندیق : ۳\۳۲۳ . أحکام القرآن للجصاص ، باب اختلاف الفقهاء فی حکم الساحر و قول اسلف فیه...[بقیه برصفحه آئنده...

د ساحر سحر كُه په كفر مشتمل نه وى خو دا په مسلمانانو كښې د فساد ذريعه جوړيدله نو داسې ساحر به هم قتل كيږى ځكه چه دې د قطاع الطريق په حكم كښې دې -
د ساحر سحر كُه نه په كفر مشتمل وى او نه په مسلمانانو كښې د فساد او د نقصان ذريعه وى نو بيا هم دې مستلزم د معصيت دې مثلا دائمى نجاست كښې اوسيدل ، حرام استعمالول نو داسې ساحر به نه قتل كيږى ، خو تعزيرا ده ته سزا وركړې كيدې شى
او كُه سحر په كفر او اضرار او معصيت په هيڅ ځيز هم نه وى مشتمل نو دا جائز دې او داسې ساحر قابل تعزير او د سزا هم نه دې (١)
سنن ترمذى كښې روايت دې " حد الساحر ضربة بالسيف " (٢) دا رنګه حضرت فاروق اعظم ﷺ د اهواز حامل ته خط اوليكلو "اقتلوا كل ساحر" (٣)
د امام شافعى رحمه الله دا مسلك رانقل شويدې چه ساحر به نه قتل كيږى ، خو كُه ده په سحر څوك قتل كړې وى او ده د دې اعتراف اوكړو نو قصاصا به ساحر قتل كړې شى
حديث د باب كښې رسول الله ﷺ لبيد بن اعصم قتل نه كړو ، ځكه چه رسول الله ﷺ د خپل ذات دپاره د چا نه انتقام نه اخستلو ، او دويمه وجه په حديث كښې موجود ده ، چه رسول الله ﷺ د مصلحت په بناء ده ته سزا ورنكړه ـ

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] : ١١/ ٧٢ ، و قال أبومحمد عبد الله بن أحمد بن قدامة فى تنقى مذاهب الفقهاء فى حد الساحر فقال : " وحد الساحر القتل ، رُوى ذلک عن عمر و عثمان بن عفان و ابن عمر و حفصة و جندب بن عبدالله و جندب بن كعب و قيس بن سعد و عمر بن عبد العزيز و هو قول أبو حنيفة و مالک ، ولم ير الشافعىُّ عليه القتل بمجرد السحر ، وهو قول ابن المنذر ورواية عند أحمد قد ذكرناها فيما تقدم ، و وجه ذلک أن عائشة رضى الله عنها باعت مدبرة سحرتها و و لو وجب قتلها لما حل بيعها ، لأن النبى صلى الله عليه و سلم قال : " لا يحل أم إمرء مسلم إلا باحدى ثلاث : كفر بعد إيمان أو زنا بعد إحصان أو قتل نفس بغير حق " ، ولم يصدر منه أحد الثلاثة فوجب أن لا يحل دمه - ولنا ( أى لأحمد و أبى حنيفة و مالک رحمهم الله ) ماروى جندب بن عبدالله (رضى الله عنه ) عن النبى صلى الله عليه وسلم أنه قال : " حد الساحر ضربة بالسيف " قال ابن المنذر : رواه اسعيال بن مسلم وهو ضعيف ، و روى سعيد و أبوداود فى كتابيهما عن بجالة قال : كنت كاتبا لجزء بن معاوية عم الأحنف بن قيس ، إذ جاءنا كتاب عمر (رضى الله عنه ) قبل موته بسنة ( فكان مكتوب فيه ) : أقتلوا كل ساحر ، فقتلنا ثلاث سواحر فى يوم ، و هذا اشتهر فلم ينكر فكان إجماعا و قتلت حفصة جارية لها سحرتها ، و قتل جندب بن كعب ساحرا كان يسحر بين يدى الوليد بن عقبة ، و لأنه كافى فيقتل للخبر الذى رووه "
مغنى لابن قدامة كتاب المرتد ، فصل فى السحر : ٩/ ٣٥ ، ٣٦ ( رقم الترجمة : ٧١٢٦ ) ، أحكام القرآن للعثمانى : ١/ ٤٨ ، الجامع لأحكام القرآن للقرطبى : ١/ ٤٨ ، أحكام القرآن لابن العربى : ١/ ٣٢ )
(١) إحكام القرآن للجصاص : ١/ ٧٢ )
(٢) سنن الترمذى ، كتاب الحدود ، باب ما جاء فى حد الساحر : ٤/ ٦٠ ( رقم الحديث : ١٤٦٠ )
(٣) ) المغنى لابن قداة كتاب المرتد ، فصل فى السحر : ٩/ ٣٦ ( رقم الترجمة : ٧١٢٦ )

## ۵۰=بَاب إِنَّ مِنْ الْبَيَانِ سِحْرًا

[۵۴۳۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ قَدِمَ رَجُلَانِ مِنْ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ لِبَيَانِهِمَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ الْبَيَانِ لَسِحْرًا أَوْ إِنَّ بَعْضَ الْبَيَانِ لَسِحْرٌ [ر: ۴۸۵۱]

كلام كښې ډير كرتې د جادو په شان اثر وى ، رسول الله ﷺ ته دوه سړى د مشرق ( د عراق د طرفه ) راغلل او دواړو ډير فصيح او بليغ بيان اوكړو نو حضور ﷺ چه دوى واوريدل نو وې فرمائل بعض خبرو كښې د سحر په شان تاثير وى ، دا ارشاد په مدح او په تعريف هم محموليدې شى ، چه د بعضو خلقو كلام ډير موثر وى او دا په مذمت هم محموليدې شى چه څنګه جادو يو ناجائز امر دې او ديكښې د حقيقت خلاف خيال كښې څوك مبتلاء كيږى دارنګه بعض كلام هم د تصنع او د ظاهرى خوش رنګئ سره سړې متاثر كوى خو حقيقت سره ددې هيڅ تعلق نه وى - ( [1] )

## ۵۱=بَاب الدَّوَاءِ بِالْعَجْوَةِ لِلسِّحْرِ

[۵۴۳۵\۵۴۳۶] حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ أَخْبَرَنَا هَاشِمٌ أَخْبَرَنَا عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اصْطَبَحَ كُلَّ يَوْمٍ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَمْ يَضُرَّهُ سُمٌّ وَلَا سِحْرٌ ذَلِكَ الْيَوْمَ إِلَى اللَّيْلِ وَقَالَ غَيْرُهُ سَبْعَ تَمَرَاتٍ

[۵۴۳۶] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ قَالَ سَمِعْتُ عَامِرَ بْنَ سَعْدٍ سَمِعْتُ سَعْدًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ تَصَبَّحَ سَبْعَ تَمَرَاتٍ عَجْوَةً لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سُمٌّ وَلَا سِحْرٌ [ر: ۵۱۳۰]

عجوه د مدينه منوره مشهوره كهجوره ده او ويلې كيږى چه ددې اونه په خپله رسول الله ﷺ كرلې وه ، ( [2] ) د عجوه كهجوره خوړل د جادو علاج هم دې ، حديث د باب كښې حضور ﷺ ارشاد دې " چه څا د صبا په وخت اووه كجورې اوخوړلې نو ده ته به تر شپې پورې هيڅ يو زهر او سحر نقصان او نه رسوى "

اصطبح د صبا وخت خوراك كول ، سُم ( د سين په ضمه او فتح سره ) زهر ته وائى چه سحر نې اوخوړل نو تر د شپې به ده ته په زهرو او په جادو څه نقصان نه رسيږى، خو سوال دا دې كه څا د شپې اوخوړل نو تر سَحر پورې به هم تهوله شپه د ده د محفوظ كيدو دا حكم دې او كه نه ؟

---

[1] ) فتح البارى : ۱۰\۲۹۱ ، قال صعصعة بن صوحان : صدق نبى الله ( صلى الله عليه وسلم ) ، أما قوله : " إن من البيان لسحرا " فالرجل يكون عليه الحق و هو ألحن بالحجج من صاحب الحق فيسحر القوم ببيانه فيذهب بالحق ، أحكام القرآن للجصاص : ۱\۶۱ )

[2] ) فتح البارى : ۱۰\۲۹۲ وعمدة القارى ! ۲۱\۲۸۷ )

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی په هیڅ یو روایت کښې ددې تصریح نشته دې ، خود ورځ په اوله حصه کښې د دې د خوړلو د خصوصیت ظاهریدو یو وجه دا هم کیدې شی چه خوړونکې دا په نهاره اوخوری ځکه چه دغه وخت خلق اکثر په نهاره وی ، دینه دا قیاس کیدې شي چه که ماښام هم دا څوك په نهاره اوخوری نو تر صبا پورې ده دپاره هم دا حکم دې ، مثلاً چه روژه دار دې سره روژه ماته کړی - (١)

حافظ سخاوی رحمه الله فرمائی چه یو صدیق کښې عامر بن سعد تصریح کړیده چه ځما خیال دې که څوك داماښام اوخوری نو ترصبا پورې به زهر اوجادوده ته نقصان نه ورکوی(٢)

امام احمد د عامر بن سعد دا روایت : افلح په طریق رانقل کړیدې - (٣)

د عجوه کهجورو د خوړلو خصوصیت دپاره د طبی وجوهو تلاش کولو هیڅ ضرورت نشته دې ، دا د حضور اکرم ﷺ د دعا او د دوی دې ونې لره په خپلو لاسونو مبارکو د کرلو د برکت یو اثر دې ، لکه علامه قرطبی فرمائی : " إن الشفاء بالعجوة من باب الخواص التی لاتدرك بقیاس ظنی " (٤) دارنگه د اووو د شمار هم قیاسی نه دې ، د دې خصوصیت او وجه به هم الله تعالی ته معلومه وی

بعضو ویلې دی چه د " اووو " نه مراد خاص دا شمار نه دې مراد ، بلکه زیاتوالی ته اشاره ده (٥) خو راجح قول رومبې دې

دحدیث د الفاظو د عموم د وجه نه جمهور وائی چه د عجوه کهجورو د خوړلو دا خصوصیت اوس هم دې او صرف د مدینې سره خاص نه دې بلکه که څوك دا د مدینې نه بهر یو سی او وې خوری نو هم دا خصوصیت به ئې پاتې وی ځکه چه د حدیث الفاظو کښې د څه زمانې یا د مدینې منورې څه تخصیص نشته دې

د څه خلقو رائی دا ده چه دا خصوصیت د زمانې د نبی ﷺ سره خاص وو ، او د څه خلقو رائی دا ده چه دا خاصیت د مدینې منورې سره خاص دې چه دغلته به مذکوره اثر نه کیږی ، د بل ځائې باره کښې نه دې ، (٦)

خو چه څنگه ویلې شویدی چه د حدیث په الفاظو کښې هیڅ قسم تخصیص نشته دې ، خو دا خبره دې په خیال کښې وی چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد د عموم او د غالب احوالو باره کښې دې ، دې وجه نه که یو سړی تجربه کړې وی او د عجوه کجور مذکوره اثر نه وی ظاهر شوې نو ددې په وجه دې حدیث خلاف واقع نه گنړی ، په دې داسې پوهه شه چه څنگه د مختلف مرضونو دپاره مختلف دواء گانې مقرر وی او عموما ددې په استعمال سره

---

١) فتح الباری : ١٠\٢٩٣ ، عمدة القاری :٢١\٢٨٧ )

٢) ارشاد الساری : ١٢\٤٩٣ )

٣) مسند امام احمد بن حنبل : ١١\١٦٨ )

٤) ارشاد الساری : ١٢\٤٩٣ )

٥) فتح الباری : ١٠\٢٩٤ )

٦) فتح الباری : ١٠\٢٩٤ . عمدة القاری : ٢١\٢٨٦ )

مرضونه صحیح کیږی هم خو ډیر کرته یو انسان د یو بیمارئ دپاره دواء خوری خو دې سره دې نه صحیح کیږی بلکه بیماری ئې برقرار وی ، ظاهره ده چه داسې صورت کښې څوك دا اشکال نه شی کولې چه دا دواء ددې مرض دپاره مفید نه ده ، ځکه چه د دواء د مرض دپاره مفید کیدل په اعتبار د غالب احوالو سره وی ، دارنګه د رسول الله ﷺ دا ارشاد مبارك هم د غالب احوالو او د عموم په اعتبار سره دې - (۱)

**قوله: حدّثنا علي ........:** د باب په ړومبی روایت کښې دامام بخاری رحمه الله شیخ علی دې ، د پلار نوم ئې نه دې ذکر شوې ، دینه علي بن عبد الله مدینی مراد دې ، علامه کرمانی فرمائی چه بعضې نسخو کښې علی بن سَلمه لَبقی (د لام او د باء په فتحه سره) دې - (۲)

حافظ بن حجر په " تقریب التهذیب " کښې د علی بن سلمه لبقی په باره کښې صیغه دتمریض سره داسې لیکلي دی " **یقال إن البخاری روی عنه** " (۳)

علامه ذهبی په " تهذیب التهذیب " کښې د فقیه ابو الولید په حواله سره د ابو الحسن زهری نه نقل کړیدې چه دې د امام بخاری سره وو چه چا د علی بن سلمه په باره کښې تپوس اوکړو نو امام بخاری اوفرمائل : " **ثقة وقد مضیت معه سمعنا منه** " (۴) دینه معلومه شوه چه د امام بخاری رحمه الله په نزد دې ثقه وو

**فائده** : باب د الکهانة او د سحر په کتاب الطب کښې د ذکر کولو وجه او مناسبت حافظ ابن حجر رحمه الله ذکر کوی او فرمائی :

**إیراد باب الکهانة فی کتاب الطب لمناسبة لباب السحر لما یجمع بینهما من مرجع کل منهما للشیاطین ، وإیراد باب السحر فی کتاب الطب لمناسبة ذکر الرقی وغیره من الأوية المعنوية فناسبه ذکر الأدواء التی تحتاج إلی ذلك ، و اشتمل کتاب الطب علی الإشارة للأدوية الحسية کالحیة السوداء ، ثم علی للأدوية المعنوية کالرقی بالدعا والقرآن ثم ذکرت الأدواء التی تنفع الأدوية المعنوية فی دفعها کالسحر ، کما ذکرت الأدواء التی تنفع الأدوية الحسية فی دفعها کالجذام "**

ددې حاصل دا دې چه امام بخاری رحمه الله په کتاب الطب کښې د کهانت ذکر اوکړو و ځکه د کهانت او د جادو د دواړو اصل او مرجع یو ده چه هغه شیطانان دی او سحر ئې په

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۲۹۵ )

(۲) شرح صحیح البخاری للکرمانی:۱۲ \ ۴۳ وقاله أیضا العینی نقلا عن الکرمانی ،عمدة القاری :۲۱ \ ۲۸۶)

(۳) تقریب التهذیب : ۴۰۱ ( رقم الترجمة : ۴۷۳۹ )

(۴) قال الحاکم : سمعت أبا الولید الفقیه یقول : سمعتُ أبا الحسن الزهیری یقول : حضرتُ محمد بن إسماعیل ( البخاری ) و سأله محمد بنْ حمزة عن علی بن سلمة اللبقی ، فلقال : ثقة ، قال ابن زهیر : أنا حملت أصول علی بن سلمة إلی محمد بن إسماعیل ( البخاری ) فانتخبت منها و أنا ذهبت معه ختی سمعنا منه ، تهذیب التهذیب : ۷\۳۲۷ (رقم الترجمة : ۵۵۰ )

کتاب الطب کښې ځکه ذکر کړو چه امام بخاری په کتاب الطب کښې د جسمانی او د روحانی د دواړو قسمونو مرضونو علاج بیان کړیدې ، شهد ، توره دانه وغیره علاج د جسمانی قبیلې نه دې ، او دم او دعا وغیره د روحانی علاج د قبیلې نه دې ، ځکه چه امراض په دوه قسمه ئې بیان کړې دی چه څه مرضونو کښې حسی دوایانې فائده ورکوی ، او څه بیمارو کښې روحانی علاج زیات موثر وی ، د سحر وغیره په دفع کولو کښې روحانی علاج زیات موثر وی ، دې مناسبت سره ئې سحر په کتاب الطب کښې راوړو - (۱)

## ۵۲=بَاب لَا هَامَةَ

[۵۴۳۷] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوَى وَلَا صَفَرَ وَلَا هَامَةَ فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَمَا بَالُ الْإِبِلِ تَكُونُ فِي الرَّمْلِ كَأَنَّهَا الظِّبَاءُ فَيُخَالِطُهَا الْبَعِيرُ الْأَجْرَبُ فَيُجْرِبُهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ أَعْدَى الْأَوَّلَ وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ بَعْدُ يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُورِدَنَّ مُمْرِضٌ عَلَى مُصِحٍّ وَأَنْكَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ حَدِيثَ الْأَوَّلِ قُلْنَا أَلَمْ تُحَدِّثْ أَنَّهُ لَا عَدْوَى فَرَطَنَ بِالْحَبَشِيَّةِ قَالَ أَبُو سَلَمَةَ فَمَا رَأَيْتُهُ نَسِيَ حَدِيثًا غَيْرَهُ [ر:۵۳۸۰]

**د مکرر ترجمة الباب توجیه** : اووه بابونه وړاندې هم دا ترجمه او د اختصار سره دا حدیث تیر شویدې ، لکه چه حافظ ابن حجر فرمائی چه داسې ډیر نادر او کم کیږی چه امام بخاری رحمه الله هم داسې بعینه یو ترجمة الباب او حدیث مکرر ذکر کړې وی - (۲)

خو شیخ الحدیث مولانا محمد ذکریا رحمه الله فرمائی او حافظ بن حجر هم دې طرف ته اشاره کړیده چه امام بخاری رحمه الله چه ترجمه مکرر ذکر کړه نو د "**هامة**" دوه تفسیرونو ته ئې اشاره اوکړه ، د "**هامة**" (د میم په تشدید او تخفیف سره) دوه تفسیرونه مشهور دی:

① دینه یو مارغه مراد دې چه دیته په پښتو کښې ګونګې ویلې کیږی عربو کښې مشهوره وه چه ګونګې په کوم کور کښې راشی او کښینی نو دیکښې مرګ واقع کیږی

**قوله: قَالَ أَبُو سَلَمَةَ: فَمَا رَأَيْتُهُ نَسِيَ حَدِيثًا غَيْرَهُ:** یعنی ړومبې حدیث "لا عدوی ...." دوی بیان کړې وو او اوس ددې انکار کوی او ده نه ړومبې حدیث هیر شو ، نو فرمائی چه دا یو حدیث دې چه ده هیر کړیدې ، دینه علاوه بل حدیث ده نه دې هیر کړې -

د یونس په روایت کښې دی "**قال أبو سلمة : لقد كان يحدثنا به ، فما أدر أنسي أبو هريرة أم نسخ أحد القولين الآخر**" (۳)

---

۱) فتح الباری : ۱۰ \ ۲۷۱)

۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۲۶۵)

۳) فتح الباری : ۱۰ \ ۲۹۷ ، عمدة القاری : ۲۱ \ ۲۸۸ ، ارشاد الساری : ۱۲ \ ۴۹۴)

يعنې حضرت ابوهريره رضي الله عنه " لا عدوى .... " د عدم تعديه والا روايت بيانولو ، اوس معلومه نه ده چه ده نه دا روايت هير شو يا د تعديه والا روايت د عدم تعديه والا روايت ئې منسوخ كړو ( او د منسوخ كيدو د وجه نه ئې دا روايت اوس نه بيانوى - )

## ۵۳=بَاب لَاعَدْوَى

[۵۴۳۸] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَحَمْزَةُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ إِنَّمَا الشُّؤْمُ فِي ثَلَاثٍ فِي الْفَرَسِ وَالْمَرْأَةِ وَالدَّارِ [ر: ۱۹۹۳]

[۵۴۳۹] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا عَدْوَى قَالَ أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُورِدُوا الْمُمْرِضَ عَلَى الْمُصِحِّ وَعَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سِنَانُ بْنُ أَبِي سِنَانٍ الدُّؤَلِيُّ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوَى فَقَامَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ أَرَأَيْتَ الْإِبِلَ تَكُونُ فِي الرِّمَالِ أَمْثَالَ الظِّبَاءِ فَيَأْتِيهَا الْبَعِيرُ الْأَجْرَبُ فَتَجْرَبُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ أَعْدَى الْأَوَّلَ [ر: ۵۳۸۰]

[۵۴۴۰] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَيُعْجِبُنِي الْفَأْلُ قَالُوا وَمَا الْفَأْلُ قَالَ كَلِمَةٌ طَيِّبَةٌ [ر: ۵۴۲۴]

د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه په يو بيمارئ كښې بالذات دا صلاحيت نشته دې چه دا بل كس ته منتقل شي ، لكه چه حديث د باب كښې دى لا عدوى و عدوى د إعداء اسم دې يعنى د مرضونو متعدى كيدل بالذات هيڅ حقيقت نه لرى

د. باب رومبې روايت كښې دى چه سپيره والې په درې څيزونو كښې دى ، آس كښې ، ښځه كښې ، كور كښې ، ددې تفصيلى كلام په كتاب النكاح كښ په **باب مايتقى من شؤم المرأة** كښې تير شو ( اوګورئ كشف البارى :، كتاب النكاح : ۱۸۰ - ۱۸۱ )

دويم روايت د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه دې ، چه حضور اكرم ﷺ فرمائلې دى لا عدوى ( د مرض يو نه بل ته لګيدل هيڅ څه څيز نه دې ) نو يو اعرابى پاڅيدو او تپوس ئې اوكړو ، دا راته اووائې چه اوښان په شګه ( د صحرا ) كښې د اوسئ په شان ( صاف ستهرا او ښائسته او صحت مند ) وى ، چه ديكښې دوى ته يو پمن خارښتى اوښ راشى ، او ټول اوښان په خارښ مبتلاء شي ( كه تعديه د مرضونو څه څيز نه وې ، نو بيا دې نورو اوښانو ته دا خارښ ولې اولګى ) نو ددې جواب كښې رسول الله ﷺ اوفرمائل : بيا په دې رومبى باندې

خاربښ د کوم ځائې نه راغلو او ده ته خاربښ چا اولګولو ؟ ( په دې جواب سره ئې دغه اعرابی سوال کوونکې پوهه کړو چه اصل او حقیقی سبب خو د الله تعالی حکم او اذن دې ، دینه بغیر هیڅ بیماری بل چا ته نه شی منتقل کیدی )

په تعدی مرضونو باندې تفصیلی کلام په کتاب الطب کښې باب الجذام کښې تیر شویدې ( اوګورئ کشف الباری ، کتاب الطب صفحه : ۵۸۱ - ۵۸۴ )

## ۵۴=بَاب مَا يُذْكَرُ فِي سَمِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رَوَاهُ عُرْوَةُ عَنْ عَائِشَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۴۱۶۵]

[۵۴۴۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيهَا سَمٌّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْمَعُوا إِلَيَّ مَنْ كَانَ هَا هُنَا مِنْ الْيَهُودِ فَجُمِعُوا لَهُ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْهُ فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَبُوكُمْ قَالُوا أَبُونَا فُلَانٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبْتُمْ بَلْ أَبُوكُمْ فُلَانٌ فَقَالُوا صَدَقْتَ وَبَرِرْتَ فَقَالَ هَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ وَإِنْ كَذَبْنَاكَ عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا قَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَهْلُ النَّارِ فَقَالُوا نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَنَا فِيهَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْسَئُوا فِيهَا وَاللَّهِ لَا نَخْلُفُكُمْ فِيهَا أَبَدًا ثُمَّ قَالَ لَهُمْ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ قَالُوا نَعَمْ فَقَالَ هَلْ جَعَلْتُمْ فِي هَذِهِ الشَّاةِ سَمًّا فَقَالُوا نَعَمْ فَقَالَ مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ فَقَالُوا أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَذَّابًا نَسْتَرِيحُ مِنْكَ وَإِنْ كُنْتَ نَبِيًّا لَمْ يَضُرَّكَ [ر:۲۹۹۸]

دې باب کښې امام بخاری رحمه الله رسول الله ﷺ ته د زهر ورکولو واقعه ذکر کړیده ، د غزوه خیبر په موقعه رسول الله ﷺ ته یو یهودی ښځې زینب بنت الحارث په بکرئ کښې زهر ګډ کړې وو ، ددې تفصیل کتاب المغازی کښې تیر شویدې - (۱)

**قوله: رواه عورة عن عائشة عن النبی صلی الله علیه وسلم:** د عروه دا روایت امام بخاری رحمه الله په کتاب المغازی کښې تعلیقا په دې الفاظو سره نقل کړیدې " **قال یونس عن بن شهاب ، قال عروة ، قالت عائشة : کان النبی صلی الله علیه و سلم یقول فی مرضه الذی مات فیه : یا عائشة : ما أزال أجد ألم الطعام الذی أکلت بخیبر ، فهذا أوان إنقطاع أبهری من ذلك السم** " بزار دا تعلیق موصول نقل کړیدې - (۲)

---

(۱) کشف الباری ، کتاب المغازی ، باب الشاة التی سُمّت للنبی صلی الله علیه وسلم : ۴۶۸ )

(۲) فتح الباری : ۱۰\۳۰۰ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۰ ، ارشاد الساری : ۱۲\۱۰\۴۹۸ )

قوله: كذبتم أبوكم فلان : فلان يعني يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام ، يهوديانو رسول الله ﷺ ته په جواب كښې غلط بياني اوكړه نو دوى ﷺ تصحيح اوكړه ، نو دوى اوويل : بررت د ړومبئ راء فتحه او كسره دواړه صحيح دى خو د راء كسره ډيره مشهوره ده - (١)

قوله: من أهل النار؟: رسول الله ﷺ ته ددې په جواب كښې يهوديانو اوويل چه مونږ به څو ورځې په جهنم كښې اوسو بيا به ترينه مونږ راووځو او تاسو مسلمانان به خمونږ خليفه ګان شئ ( مونږ نه به روستو پاتې شئ ) ، رسول الله ﷺ اوفرمائل :" والله لانخلفكم فيها أبدا " مونږ به بالكل د ستاسو نه روستو په جهنم كښې نه پاتې كيږو " چه كوم ګناهګار مسلمان جهنم ته لاړ هم شى هغه به د سزا تيرولو نه پس راووځى.

طبرى او طبرانى د عكرمه نه روايت نقل كوى چه حضور اكرم ﷺ دوى ته اوفرمائل :" وبل أنتم خالدون مخلدون لايخلفكم فيها أحد " نو الله تعالى د سورت بقره دا آيت كريمه نازل كړو (و قالوا لن تمسنا النار إلا أياما معدودة) (٢) -

## ٥٥- بَاب شُرْبِ السُّمِّ وَالدَّوَاءِ بِهِ وَبِمَا يُخَافُ مِنْهُ وَالْخَبِيثِ

[٥٤٤٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَرَدَّى مِنْ جَبَلٍ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَهُوَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ يَتَرَدَّى فِيهِ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا وَمَنْ تَحَسَّى سُمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِحَدِيدَةٍ فَحَدِيدَتُهُ فِي يَدِهِ يَجَأُ بِهَا فِي بَطْنِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا [ر:١٢٩٩]

[٥٤٤٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ بَشِيرٍ أَبُو بَكْرٍ أَخْبَرَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَامِرُ بْنُ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنِ اصْطَبَحَ بِسَبْعِ تَمَرَاتٍ عَجْوَةٍ لَمْ يَضُرَّهُ ذَلِكَ الْيَوْمَ سُمٌّ وَلَا سِحْرٌ [ر:٥١٣٠]

د امام بخارى رحمه الله دا ترجمة الباب په څلورو حصو مشتمل دې

① ړومبئ حصه شرب السم دې يعني زهر څكل ، ددې حكم واضح دې او باب كښې چه كوم حديث ذكر كړيدې د هغه ددې حرمت صفا ښكاره كيږى

زهر څكل چه خودكشى ده او دې سره انسان عموما مرى او دده مرګ واقع كيږى دې وجه نه دا حرام دى او ناجائز دى ، د ترجمة الباب دا حصه د حديث د باب نه ثابتيږى -

---

(١) فتح البارى : ١٠\٣٠١ ، عمدة القارى : ٢١\٢٩٠ ، ارشاد السارى : ١٢\٤٩٩ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٣٠٢ ، عمدة القارى : ٢١\٢٩٠ ، ارشاد السارى : ١٢\٤٩٩ )

خو د زهر لږ غوندې مقدار چه هغې کښې څه جسماني فائده وی او د دفع د ضرر دپاره دیکښې د دواء نور اجزاء هم شامل کړې شی نو ددې استعمال جائز دې - [1]

④ د ترجمة الباب دويمه حصه " الدواء به " يعنى د زهر په ذريعه علاج کول ، د زهر څه قسمونه په مختلف دوایانو کښې استعمالیږی ، د دې د استعمال جواز ته امام بخاری رحمه الله اشاره کړیده ، او هغه داسې چه امام بخاری رحمه الله په باب کښې د عجوه والا حدیث ذکر کړیدې چه دا په زهر کښې فائده ورکوی ، نو چه څنګه تداوی بالمباحات جائز دې دارنګه تداوی بالسم هم جائز دی په شرط د دې چه دا مضر نه وی ، لکه شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله لیکی :

" أما الجزء الثانى وهو التداوى بالسم فيستفاد من الحديث أنه الجزء ، لأن مدار النهى على القتل و الإهلاك و الضرر ، فإذا لم يضر و لم يقتل ، بل يشرب دواء فلا بأس به كما يتداو بالمباحات مثل العجوة وغيرها ، و لذا ذكر الإمام البخارى حديث العجوة ثانى حديثى الباب إشارة إلى أن التداوى كما هو جائز بالمباحات فكذا بالسم ، إذا كان يشربه بحد لايضر ، فالتداوى به حينئذ كالتداوى بالمباحات " [2]

حافظ ابن حجر او نورو شارحینو د " الدواء به " يو بله معنى هم ذکر کړیده او هغه دا چه دیکښې " به " د " منه " په معنى دې أى الدواء منه " يعنى د زهر څکلو نه پس علاج کول او ددې د ضرر ختمولو بیان ، که دا مطلب واخستې شی نو باب کښې د ذکر شوې عجوه والا حدیث مناسبت د دې جزء سره پوره واضح دې ، ځکه چه دیکښې علاج د سم بیان شویدې [3]

③ د ترجمة الباب دريم جزء " و ما يخاف منه " ددې عطف " الدواء به " کښې " به " باندې دې : أى الدواء بما يخاف منه يعنى خوفناك او د خطرناك څيز علاج كولو ذكر [4]

بعضې شراحو لیکلې دی چه په " ما یخاف منه " کښې د " منه " ضمیر مجرور "موت " یا استمرار مرض ته راجع دې [5] خو صحیح خبره دا ده چه چه دا ضمیر " مایخاف " کښې " ما " ته راجع دې - [6]

په خطرناك څیز علاج هم هغه حکم دې چه کوم حکم د تداوی بالسم دې چه کُه دا مضر نه وی ، فائده مند وی نو دا په طور د دواء استعمالولې شی [7]

④ ترجمة الباب څلورم جزء دې " والخبيث " دا مجرور هم وِیلې شی أى الدواء بالخبيث او د

---

[1] ) فتح البارى : ١٠\٣٠٣ ، ٣٠٤ )

[2] )فتح البارى : ١٠\٣٠٣ )

[3] ) فتح البارى : ١٠\٣٠٣ ، الابواب و التراجم لشيخ زكريا : ٢\١٠٣

[4] ) فتح البارى : ١٠\٣٠٣ ، الابواب و التراجم لشيخ زكريا : ٢\١٠٣ )

[5] ) فتح البارى : ١٠\٣٠٣ ، الابواب و التراجم لشيخ زكريا : ٢\١٠٣ )

[6] ) الابواب و التراجم للشيخ زكريا : ٢\١٠٣ )

[7] ) فتح البارى : ١٠\٣٠٤ ، الابواب و التراجم : ٢\١٠٣ )

مبتداء کیدو د وجه نه مرفوع هم ویلې شی ، دې صورت کښې ددې خبر محذوف وی أی الخبیث ماحکمه ، وهل یجوز التداوی به (۱) د خبیث نه مراد نجس او حرام څیز دې لکه خنزیر ، د حرام څناور غوښه ، امام ابوداود ، امام ترمذی رحمهما الله د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت نقل کړیدې " نهی النبی ﷺ عن الدواء الخبیث " (۲)

ترجمة الباب کښې ئې " والخبیث " اوویل امام دې روایت ته اشاره اوکړه ، دا روایت چه د امام په شرط برابر نه وو نو دې وجه نه ئې په ترجمه کښې دا لفظ راوړو او دیته ئې اشاره اوکړه لکه چه دا د امام عادت دې - (۳)

او باب کښې ذکر شوې " حدیث السم " نه هم دا حکم مستفاد کیدې شی څکه چه سم باندې هم د خبیث اطلاق کیدې شی - (۴)

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله یو دریمه توجیه ذکر کوی او لیکی :

ویحتمل أن یقال : إن هذا الجزء ثابت بالحدیث الآتی فی الترجمة الآتیة ، فإن لبن الأتن خبیث لا محالة ، فالترجمة الآتیة جزء من هذه الترجمة فهو من الأصل الستین وهو أصل مطرد من أصول التراجم " (۵)

حضرت شیخ الحدیث رحمه الله فرمائی چه د ترجمة الباب څلورمه حصه " الخبیث " لره د راتلونکې باب کښې د ذکر شوې حدیث نه هم ثابتیدې شی ، وړاندې ترجمة الباب دې "باب ألبان الأتن" ددې لاندې چه کوم حدیث امام بخاری ذکر کړیدې ، دیکښې ئې د خرې د پیو ذکر کړیدې او دا یقینا خبیث او حرام دې ، وړاندې ترجمة الباب ددې ترجمة الباب یو جزء دې او ددې لاندې ذکر شوې حدیث نه دواړه ترجمة الباب ثابتیږی

حضرت شیخ الحدیث فرمائی چه د تراجم د بخاری چه کوم اصول ده په مقدمه کښې ذکر کړیدی ، د ترجمة الباب د ثبوت دا طریقه شپیتم اصل دی

**قوله: حدثنا عبدالله بن عبدالوهاب......:** د باب رومبې روایت د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې ، رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړی خپل ځان د غر نه اوغورزوی او خپل ځان قتل کړی نو دې به د جهنم په اور کښې وی ، او دیکښې به همیشه غورزولې کیږی او چه چا زهر اوڅکل او ځان ئې قتل کړو نو د ده زهر به دده په لاس کښې وی او د جهنم په اور کښې به دې دا څکی ، همیشه به هم دې حالت کښې وی او چه کوم سړی خپل ځان په

---

(۱) الابواب و التراجم للشیخ زکریا : ۲\۱۰۳ )

(۲) الجامع الصحیح للترمذی ، کتاب الطب ، باب ما جاء فیمن قتل نفسه بسم أو غیره : ۴\۳۸۷ ( رقم الحدیث : ۲۰۴۵) ، سنن ابی داود ، کتاب الطب باب فی الادویة المکروهة : ۴\۶ ( رقم الحدیث : ۳۸۷۰)

(۳) فتح الباری : ۱۰\۳۰۴ )

(۴) الابواب والتراجم للشیخ زکریا : ۲\۱۰۳ ، فتح الباری : ۱۰\۳۰۴ )

(۵) الابواب و التراجم : ۲\۱۰۳ )

اوسپنه قتل کړو نو د ده اوسپنه به دده لاس کښې وی جهنم کښې به دننه دې دا په خپله
ګېډه کښې وهی راوهی او همیشه به هم د ده دا حالت وی

**قوله:** تردي من جبل : ای أسقط نفسه من جبل : خپل ځان ئې د غر نه اوغورزولو یعنی
خودکشی یې اوکړه ، تحسی : ګوټ ګوټ څکل ، یجأبه في بطنه ، وجأیجأوَجْئًا ، باب د فتح نه
دې ، وجأه بالسکین: څوك په چاړه وهل

**احمد بن بشیر** : دباب دویم روایت کښې د امام بخاری رحمه الله شیخ الشیخ احمد بن بشیر
دې ، د ده کنیت ابوبکر دې او دې کوفی دې ، د دوی متعلق آئمه د جرح او د تعدیل رائې
مختلف ده ـ

امام نسائی فرمایلې دی : لیس بذاك القوی [1]

دارقطنی فرمائی ضعیف، یعتبر حدیثه [2]

یو بل ځائې فرمائی لابأس به [3]

امام ابوزرعه فرمائی : صدوق [4]

ابو حاتم فرمائی : محله الصدق [5]

ابو بکر بن ابی داود فرمائی :کان ثقة [6]

او یحیی بن معین فرمائی : لیس بحدیثه بأس [7]

عثمان دارمی د یحي بن معین نه نقل کړی دی چه دوی احمد بن بشیر ته متروك ویلي دی
، خو خطیب بغدادی رحمه الله د دوی تردید کړیدې او فرمائی چه عثمان ته خلط شویدې ،
متروك بل احمد بن بشیر دې ، د ده کنیت ابوجعفر دې ، او د صحیح بخاری د احمد بن
بشیر کنیت ابوبکر دې - [8]

حافظ بن حجر فرمائی چه امام بخاری د دوی ذ نوم سره کنیت کیدې شې چه هم د دې
نکتې د وجه ذکر کړې وی چه دې د خپل معاصر ضعیف احمد بن بشیر نه جدا شی - [9]

---

[1] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵ ( رقم الترجمه : ۱٤) و میزان الاعتدال : ۱۱\۸۵ ( رقم الترجمه : ۳۰۸)
[2] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵)
[3] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۵۷ )
[4] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵)
[5] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵)
[6] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵ )
[7] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۵)
[8] تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۶ )
[9] فتح الباری : ۱۰\۳۰۵)

د احمد بن بشیر روایتونه امام بخاری ، امام ترمذی او امام ابن ماجه رحمهم الله نقل کړيدی -(۱)
د ده وفات په محرم ۱۹۷ هجری کښې شویدې - (۲)
په صحیح بخاری کښې د دوی صرف هم دا یو حدیث دې - (۳)

## ۵۶=بَاب أَلْبَانِ الأُتُنِ

[۵۴۴۴]حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنْ السَّبُعِ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَلَمْ أَسْمَعْهُ حَتَّى أَتَيْتُ الشَّأْمَ وَزَادَ اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَسَأَلْتُهُ هَلْ نَتَوَضَّأُ أَوْ نَشْرَبُ أَلْبَانَ الْأُتُنِ أَوْ مَرَارَةَ السَّبُعِ أَوْ أَبْوَالَ الْإِبِلِ قَالَ قَدْ كَانَ الْمُسْلِمُونَ يَتَدَاوَوْنَ بِهَا فَلَا يَرَوْنَ بِذَلِكَ بَأْسًا فَأَمَّا أَلْبَانُ الْأُتُنِ فَقَدْ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُحُومِهَا وَلَمْ يَبْلُغْنَا عَنْ أَلْبَانِهَا أَمْرٌ وَلَا نَهْيٌ وَأَمَّا مَرَارَةُ السَّبُعِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ أَنَّ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنْ السَّبُعِ [ر:۵۲۰۶]

**د خرې د پیو حکم :** أتن( د همزې او د تاء په ضمه سره ) د أتان جمع ده ، خرې ته وئی - د خرې پئې د جمهور عالمانو په نزد حرام دی (۴)
د امام مالك رحمه الله یو قول ددې د حلت هم شته ، (۵) احنافو کښې صاحب د بحرالرائق او علامه شامی دیته مکروه تحریمی ویلې دی ، ځکه چه ددې غوښه خوړل جائز او حلال نه دی ، دې وجه نه د دې پئې هم جائز نه دی (۶)
دا خو د خرې د پیو د عام استعمال حکم دې ، خو دلته عام حکم نه دې مراد بلکه د خرې پئې په طور د دواء د استعمالولو حکم بیانول مقصد دی ، چه هم دې مقصد دپاره امام دا په کتاب الطب کښې ذکر کړیدې (۷)

---

۱) تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۶ )
۲) میزان الاعتدال : ۱\۸۶ ، تهذیب الکمال : ۱۱\۲۷۶ )
۳) فتح الباری : ۱۰\۳۰۵ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۲ )
۴) الدر المختار مع رد المحتار ، کتاب الحظر و الإباحة : ۵\۲۳۹ ، البحر الرائق ، کتاب الذبائح و فصل فیما یحل و ما لا یحل : ۸\۱۷۲ ، المغنی لابن قدامة ، کتاب الصید و الذبائح ، مسائل و فصول فیما یحرم أکله و ما یحل و یکره : ۹\۳۵۲ ( رقم الترجمة : ۷۷۸۴ ) فتح الباری : ۱۰\۳۰۶ )
۵) الدر المختار مع رد المحتار ، کتاب الحظر و الإباحة : ۵\۲۳۹ ، فتح الباری : ۱۰\۳۰۶ )
۶) الدر المختار مع رد المحتار ، کتاب الحظر و الإباحة : ۵\۲۳۹ البحر الرائق ، کتاب الذبائح و فصل فیما یحل و ما لا یحل : ۸\۱۷۲ )
۷) فتح الباری : ۱۰\۳۰۶ )

امام بخاری رحمه الله په باب کښې چه کوم روايت ذکر کړيدې ، دينه معلوميږی چه د ده په نزد د دواء په طور هم ددې استعمال جائز نه دې -

په احنافو کښې د صاحبينو په نزد تداوی بالابوال جائزده ، [1] دې وجه نه د دوی په نزد د ضرورت په وخت په طور د علاج د خرې پئي استعماليدې شی-

د تداوی بالمحرمات مسئله دينه وړاندې په تفصيل سره تيره شويده - [2]

**قوله: حدثني عبد الله بن محمد.........:** حضرت ابوثعلبه خشنی ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ د هر داړو والا درنده د خوراك نه منع کړيده ، امام زهری فرمائی چه دا حديث ما نه وو اوريدلې تر دې چه څه شام ته راغلم -

د ليث روايت کښې څه اضافه ده ، ابن شهاب زهری فرمائی چه ما د خپل شيخ ابو ادريس (عائذ الله) خولانی نه تپوس اوکړو چه مونږ د خرې پئې څکلې شو يا دې سره اودس کولې شو ؟ دارنګه د درنده ګانو تريخې يا د اوښانو متيازې استعمالولې شو ؟ نو دوی جواب ورکړو چه وړاندې به مسلمانانو دې سره علاج کولو او ديکښې به ئې څه باك نه ګنړلو تر کومې چه د خرې د پيو تعلق دې نو رسول الله ﷺ نه دا حديث خو مونږ ته را رسيدلې دې چه دوی د دې د غوښې د خوړلو نه منع کړيده خو ددې د پيو باره کښې څه حکم يا په ممانعت باندې مشتمل څه حديث مونږه ته نه دې رارسيدلې -

دا روايت په کتاب الذبائح کښې تير شويدې چه ليث دې روايت کښې کومه اضافه نقل کړيده ، دا ذهلی په " زهرياتو " کښې موصولا رانقل کړيده- [3]

**قوله: مرارة السبع:** مرارة تريخوالئ ته هم وائی او تريخی ته هم وائی ، تريخی د اينې سره پيوسته د صفرا پوکنړئ ته وايی چه کوم په نشاسته څيزونو هضم کولو کښې مدد ورکوی ، د دې جمع مرائر راځی [4] دلته دغه دويمه معنی مراد ده

## ۵۷=بَاب إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي الْإِنَاءِ

[۵۴۴۵] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عُتْبَةَ بْنِ مُسْلِمٍ مَوْلَى بَنِي تَيْمٍ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ حُنَيْنٍ مَوْلَى بَنِي زُرَيْقٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ كُلَّهُ ثُمَّ لِيَطْرَحْهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ شِفَاءً وَفِي الْآخَرِ دَاءً [ر:۳۱۴۲]

ذباب مچئ ته وائی مسند ابی يعلی کښې د حضرت انس مرفوع حديث دې رسول الله ﷺ فرمائلې دی چه د مچئ عمر څلويښت ورځې وی او د دې ټول قسمونه به جهنم ته ځی

---

[1] ) رد المحتار على الدر المختار ، کتاب الطهارة ، مطلب فی التداوی بالمحرم : ۲۱۰۱۱ ، ۳۸۹\۶ )

[2] ) کشف الباری ، کتاب الطب ، باب الدواء بابوال الابل : ۵۵۲ )

[3] ) فتح الباری : ۳۰۵\۱۰ ، عمدة القاری : ۲۹۳\۲۱ ، ارشاد الساری : ۵۰۲\۱۲ )

[4] ) فتح الباری : ۳۰۵\۱۰ ، عمدة القاری : ۲۹۳\۲۱ ، ارشاد الساری : ۵۰۲\۱۲ )

ماسوا د شهدو د مچۍ نه - (۱)
علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی : چه جهنم ته د مچو تلل به په طور د عذاب د دوی نه وی بلکه د دوی تلل به د جهنمیانو د عذاب دپاره وی - (۲)
مچي ته " اجهل الخلق " اوویلې شو ځکه چه دا خپل ځان په هلاکت کښې اچوی ، ددې بانړه (د سترګو) نه وی ، د دوارو لاسونو نه دا د بانړو کار اخلی ، هم دا وجه ده چه ته مچۍ اوګوره نو دا به اکثر په لاسونو سره سترګې صفا کوی - (۳)
ددې پیدا کولو کښې یو حکمت دا هم دې چه دیکښې د جابرانو او د متکبرینو د ذلت سامان دې ، د لوې نه لوې متکبر به تنګ کړی او ده لره به خپل اصلیت او د انساني ضعف او کمزورۍ او بې وسۍ ته متوجه کړی - (۴)
دباب لاندې امام بخاری رحمه الله دا مشهور حدیث ذکر کړیدې چه کُه مچۍ د څه ځکلو په څیز کښې پریوځی نو دا پوره ډبول پکار دی ځکه چه ددې په یو وزر کښې بیمارې ده او دا هم دا وزر ډوبوی ، او په بل کښې شفاء ده ، چه دا بچ ساتی ، دې وجه نه پوره مچۍ ډوبول پکار دی ، دې دپاره چه ددې بیماری هم ددې د شفا والا په اړخ دفع کړې شی -

.....................

# کتاب اللباس

(الاحادیث : ۵۴۴۶ - ۵۶۲۴)

کتاب اللباس کښې درې دپاسه سل بابونه دي ، دوه سوه دوویشت مرفوع احادیث دی ، چه دیکښې څلویښت احادیث معلق او باقی موصول دی ، دیکښې دوه څلویښت دپاسه سل احادیث مکرر دی ، او څلویښت احادیثونه په کښې په رومبی ځل راغلې دی ، دیکښې د نهو احادیثو نه علاوه باقی نور ټول احادیث امام مسلم هم ذکر کړیدي - په کتاب اللباس کښې امام بخاری د اصحابو او د تابعینو حضراتو ﷺ نورلس آثار ذکر کړیدي -

..............

(۱) فتح الباری : ۱۰\۳۰۷ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۳ ، ارشاد الساری : ۱۲\۵۰۳)
(۲) فتح الباری : ۱۰\۳۰۷ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۳ ، ارشاد الساری : ۱۲\۵۰۳)
(۳) فتح الباری : ۱۰\۳۰۷ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۳ ، ارشاد الساری : ۱۲\۵۰۳)
(۴) فتح الباری : ۱۰\۳۰۷ ، عمدة القاری : ۲۱\۲۹۳ ، ارشاد الساری : ۱۲\۵۰۳)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# كِتَابُ اللِّبَاسِ

## بَابُ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِي أَخْرَجَ لِعِبَادِهِ

[الأعراف: ٣٢]

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَالْبَسُوْا وَتَصَدَّقُوْا فِي غَيْرِ إِسْرَافٍ وَلَا مَخِيْلَةٍ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كُلْ مَا شِئْتَ وَالْبَسْ مَا شِئْتَ مَا أَخْطَأَتْكَ اثْنَتَانِ سَرَفٌ أَوْ مَخِيْلَةٌ

[٥٤٤٦] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ وَعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ وَزَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ يُخْبِرُوْنَهُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ إِلَى مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ [ر: ٣٤٦٥]

د كتاب اللباس مناسبت د كتاب الطب سره ظاهر دې ، د طب تعلق هم د انسانى جسم سره دې او د لباس تعلق هم د انسانى جسم سره دې
چه كوم څيز اغوستې كيږى ديته لباس ويلې كيږى - (١)

امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب كښې د قرآن كريم د سورت اعراف آيت د خپل معمول مطابق ذكر كړو ( قل من حرم زينة الله التى أخرج لعباده و الطيبات من الرزق ) دې آيت كښې د زينة الله نه يا خو مراد هر هغه مباح څيز دې چه كوم د زينت دپاره استعماليږى ، برابره خبره ده كه لباس وى او كه بل څه څيز او يا دينه مراد لباس دې ، مشركينو د عربو به د بيت الله شريف په بربنډه طواف كولو ، دا آيت د هغې متعلق نازل شو چه د طواف په وخت لباس اغوستل چا حرام كړيدې ، چه دا خلق بغير د لباسه طواف كوى - (٢)

او د ( الطيبات من الرزق) نه مزيدار يا حلال رزق مراد دې - (٣)

**قوله: وقال النبى صلى اله عليه وسلم: كلوا و الشربوا و البسوا و تصدقوا فى غير إسراف ولا مخيلة:** رسول الله ﷺ فرمائى چه خورئ ، څكئ ، اغوندئ او صدقه كوئ خو د اسراف او د تكبرنه ځان ساتئ !

اسراف د حد نه تجاوز او بغير د ضرورت نه خرچ كولو ته وائى او مخيله تكبر ته وائى (٤) خوراك څښاك ، اغوستلو او صدقه كولو كښې اسراف ممنوع دې ، صدقه كښې د اسراف معنى دا ده چه غير مستحق ته صدقه وركړې شى ، يا دومره صدقه اوكړې شى چه د خپل

---

١) عمدة القارى : ٢١\٢٩٤ )
٢) عمدة القارى : ٢١\٢٩٤ ، فتح البارى : ١٠\٣١٠ )
٣) عمدة القارى : ٢١\٢٩٤ )
٤) فتح البارى : ١٠\٣١١ ، عمدة القارى : ٢١\٢٩٤ )

اهل وعیال واجب نفقه دپاره څه بچ پاتې نه شي ، دارنګه صدقه کول إسراف فی الصدقة په حکم کښې راځي ، دینه د زیات صدقو کولو ممانعت نه دې مقصود ، زیات صدقات خو خالص خیر دې ، مشهوره خبره ده " لاخیر فی السرف ولاسرف فی الخیر " (١) یعنی اسراف کولو کښې څه خیر نشته دې او په خیر کښې اسراف نشته دې ، یعنی خیر کښې چه څومره هم زیاتوالې وی نو دا مذموم اسراف نه دې بلکه ممدوح خیر دې ، خو دا هغه وخت دې چه کله په زیاتوالی او د مبالغې په وجه دینی او دنیوی واجباتو فرائضو کښې څه فرق او کمې نه راځی ، لکه یو سړې مقروض دې قرض غوښتونکو ته خو خپل واجب حق نه ورکوی او فقیرانو ته صدقه ورکوی ، دیته اسراف فی الصدقة به وائی ـ

امام بخاری رحمه الله د رسول الله ﷺ دا حدیث دلته تعلیقا ذکر کړیدې ، ابن ابی شیبه دا موصولاً نقل کړیدې - (٢)

**قوله**: وقال ابن عباس: كل ما شئت، والبس واشرب ما شئت، ما أخطأتك اثنتان: سرف أو مخيلة: دې تعلیق کښې هم د دغه دوه څیزونو نه ممانعت دې چه خورئ ، څکئ ، دوه څیزونه تاسو دیکښې په غلطئ کښې مبتلاء نه کړی یو اسراف او دویم تکبر ، ماأخطاتك کښې " ما " نافیه هم کیدې شی ، رومبئ د مانافیه ترجمه شویده او د " ما دام " په معنی هم کیدې شی د " ما دام " صورت کښې ترجمه به وی " چه ترڅو تاسو دوه څیزونه تاسو په غلطئ کښې وانچوی - (٣)

حدیث د باب کښې هم د تکبر په وجه چه جامې خان پسې راکاږی د ده په باره کښې وعید ذکر شوې دې ـ

دحضرت ابن عباس دا تعلیق ابن ابی شیبه موصول نقل کړیدې (٤)

**فائده** : امام بخاری رحمه الله چه کوم آیت کریمه ذکر کړیدې ، دیکښې د لباس تصریح نشته دې ، د دې په مقابله کښې یو بل آیت کریمه دې ﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ قَدۡ أَنزَلۡنَا عَلَيۡكُمۡ لِبَاسٗا يُوَٰرِي سَوۡءَٰتِكُمۡ وَرِيشٗاۖ﴾ (٥) دیکښې دلباس صراحتا ذکر شته دې، خو امام بخاری دغه آیت ذکرنه کړو شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا رحمه الله خو د دې وجه خو یو دا لیکلې ده چه امام بخاری رحمه الله اخفی ته په اجلی ترجیح ورکوی ، او دې آیت کښې د زینت ذکر د لباس په مقابله کښې اخفی دې ، او دویمه وجه دا ده چه کتاب اللباس کښې امام بخاری

---

١) تفسیر الکشاف للزمخشری : ٢\٦٦١)

٢) عمدة القاری : ٢١ \ ٢٩٤ ، وروی ابن ماجة من روایة عمرو بن شعیب عن أبیه عن جده قال : قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ، کلوا و اشربوا و تصدقوا و البسوا ، مالم یخالطه إسراف أو مخیلة " کتاب اللباس باب البس ما شئت ....... ٢\١١٩٢ ( رقم الحدیث : ٣٦٠٥ )

٣) فتح الباری : ١٠\٣١١ ، عمدة القاری : ٢١ \ ٢٩٤ )

٤) فتح الباری : ١٠\٣١١ ، عمدة القاری : ٢١ \ ٢٩٤ )

٥) الاعراف : ٢٦ )

رحمه الله د لباس نه علاوه د زينت وغيره احكام هم ذكر كړيدى ، زينت عام دې ، دې وجه نه دا آيت كريمه ئې ذكر كړو چه ديكښې د زينت ذكر دې - (١)

## ١=بَابُ مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ مِنْ غَيْرِ خُيَلَاءَ

[٥٤٤٧] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أَحَدَ شِقَّيْ إِزَارِي يَسْتَرْخِي إِلَّا أَنْ أَتَعَاهَدَ ذَلِكَ مِنْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَسْتَ مِمَّنْ يَصْنَعُهُ خُيَلَاءَ [ر:٣٤٦٥]

[٥٤٤٨] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى عَنْ يُونُسَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ وَنَحْنُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ يَجُرُّ ثَوْبَهُ مُسْتَعْجِلًا حَتَّى أَتَى الْمَسْجِدَ وَثَابَ النَّاسُ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فَجُلِّيَ عَنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا وَقَالَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ فَإِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهَا شَيْئًا فَصَلُّوا وَادْعُوا اللَّهَ حَتَّى يَكْشِفَهَا [ر:٩٩٣]

امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې - چه بغير د تكبره كه د چا لنګ راښكلې كيږى نو دې صورت كښې هيڅ څه حرج نشته دې ، لكه چه روايت د باب كښې حضور اكرم ﷺ چه كله اوفرمائل "من جر ثوبه خيلاء لم ينظر الله إليه يوم القيامة" نو حضرت صديق اكبر اوويل " اے د الله رسوله خما لنګ خو يو طرف ته خوييږى ، مګر هله چه څه دده خيال او نګرانى كوم ، نو بيا دا بره وى ګنى د غفلت په حالت كښې خو خوئيږى ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائل : ته په هغه خلقو كښې نه ئې چه كوم دا عمل د تكبر د وجه نه كوى -

د دې حديث نه معلومه شوه چه د تكبر په وجه لنګ خكته كول باعث د وعيد او د ګناه دې ، ګنى نه دې - (٢)

**لنګ لاندې ساتل او پائنسې د ګيټو نه د لاندې ساتلو حكم:** دې مسئله كښې تفصيل دې :

① كه يو سړې د تكبر په وجه لنګ لاندې ساتى يا پائنسو لره د ګيټو نه خكته كوى نو دا بالاتفاق مكروه تحريمى دى - (٣)

② كه يو سړې د تكبر په وجه لنګ زوړند او لاندې نه ساتى بلكه د غفلت او د عدم اهتمام د وجه نه داسې كيږى نو دا مكروه تنزيهى دې ، علامه عينى ، ملا على قارى او امام نووى رحمهم الله هم دا اختيار كړيدې (٤) فتاوى عالمګيرى كښې دى "إسبال الرجل إزاره أسفل من الكعبين إن لم يكن للخيلاء ، ففيه كراهة تنزيه " - (٥)

---

١) الابواب و التراجم : ٢\١٠٤)

٢) فتح البارى : ١٠\٣١٣ ، عمدة القارى : ٢١\٢٩٥ )

٣) عمدة القارى : ٢١\٢٩٥ ، و شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب تحريم جر الثوب : ٢\١٩٤ )

٤) عمدة القارى : ٢١\٢٩٥ ، مرقاة المفاتيح ، كتاب اللباس ، الفصل الاول ، ٨\٢٣٨ )

٥) الفتاوى هندية كتاب الكراهية ، الباب التاسع فى اللبس ما يكره من ذلك و ما لا يكره : ٥\٣٣٣ )

① بغير د ارادې او د اختياره كُه څه وخت لنګ لاندې خكته شي نو دا بالاتفاق جائز او په دې كښې رخصت دې -(۱)
لكه چه حديث د باب كښې دى -
په كومو احاديثو كښې چه مطلق ممانعت راغلې دې ، لكه چه وړاندې په بخارى كښې احاديث راغى ، نو دا " احاديث مقيدة بالخيلاء " باندې به حمل كيږى ، يعنى اګر چه دې احاديثو كښې د تكبر په وجه د خكته كولو قيد نشته دې ، مطلق ممانعت دې ، خو دا قيد به د نورو احاديثو د وجه په لحاظ كښې ساتلې كيږى ، نو دارنګه به د جواز او د ممانعت په روايتو كښې تطبيق اوشى ، چه كومو روايتونو كښې چه د ممانعت او د تحريم حكم راغلې دې نو هلته د تكبر په وجه باندې د خكته كولو صورت مراد دې ، او چه كومو روايتونو كښې اجازت وركړې شويدى ، هلته د عدم تكبر والا صورتونه مراد دى دې دپاره چه دواړو صورتونو كښې تطبيق اوكړې شي ، امام نووى رحمه الله ليكى :

**ظواهر الأحاديث فى تقييدها بالجر خيلاء تدل على أن التحريم مخصوص بالخيلاء ، وهكذا نص الشافعى رحمه الله على الفرق ، فإن كان للخيلاء ، فهو ممنوع منع تحريم ، وإلا فمنع تنزيه ، و الأحاديث المطلقة يجب حملها على المقيدة بالخيلاء "**(۲)

يعنى چه كومو احاديثو كښې د " خيلاء " يعنى د تكبر قيد شته دې ، نو دا په ظاهره په دې دلالت كوى چه د حرمت حكم د تكبر سره خاص دې ، امام شافعى رحمه الله د تكبر په وجه خكته كولو او د غير تكبر په وجه خكته كولو دواړو صورتونو كښې فرق بيان كړيدې ، د تكبر صورت كښې زوړندول خو حرام دې ، او بل صورت كښې مكروه تنزيهى دې ، چه كومو احاديثو كښې د " خيلاء قيد نشته دې او د حرمت حكم شته هلته د قيد والا احاديثو باندې به دا حمل كيږى -
د اسبال او د جر د ازار ( لنګ لاندې ساتلو ) د ممانعت اصل سبب خو هم تكبر دې ، خو چه تكبر يو پټ امر دې ، دې وجه نه جر د ازار او اسبال ددې قائم مقام اوګرځولې شو ، لكه چه څنګه سفر د مشقت او نوم د حدث قائم مقام اوګرځولې شو -(۳) دې وجه نه جر ازار ممنوع

---

(۱) عمدة القارى : ۲۱\۲۹۵ )
(۲) شرح مسلم للنووى ،كتاب اللباس ، باب تحريم جر الثوب خيلاء : ۲\۱۹۵ )
(۳) قال الشيخ محمد بد علم الميرتهى رحمه الله : قتل و يخط ببالى أن الشرع جعل نفس الجر مخيلة ، فإن الذين يجرون ثيابهم لا يجرون إلا تكبرا و فخرا ، و كذلک جربنا فى زماننا أيضا ، و إن لم يكن فى زماننا كذلک ، فإن قد كان فى العرب ، وقد كان و إذن هو ما باب إقامة السبب مقام المسبب ، كالنوم ، فإنه ليس بحدث ، لكنه مسبب لاسترخاء المفاصل ، و أنه لا يخلو من خروج شئ منه غالبا ، فأقيم النوم الذى هو سبب مقام المسبب ؤ كالسفر ، فإنه أيضا أنيب مناب المشقة ، و كالمباشرة الفاحشة ، فإنها سبب لخروج شيئ عادة ، فأير الحكم على المباشرة ، فهكذا جرّ الثوب ، إن مسببه المخيلة ، هى أمر خفى ينعسر إدراكها كالمشقة فى باب السفر ، و الحدث فى النوم ، و خروج شئ فى المباشرة الفاحشة فأير الحكم على جرّ الثوب ، على أنا قد جرّبنا أن للظاهر تأثيرا فىى الباطن و من هذا الباب تحسين الأسماء ...[بقيه برصفحه آئنده....

او مکروه دي ، د تکبر په صورت، کښې مکروه تحريمى دي او د غفلت په صورت کښې مکروه تنزيهى دي خو چه بې د قصده او بې د ارادي وى نو دې صورت کښې رخصت دي ځکه چه د غير اختيارى په حالت کښې انسان مکلف نه دي -

د باب په بل حديث کښې دى " فقام يجرّ ثوبه مستعجلاً " رسول الله ﷺ په تُندئ کښې جامې راکښونکې اودريدو ، معلومه شوه چه د تندئ او تلوار په حالت کښې که لنګ ځکته زوړند شو نو دا به قابل د مواخذه نه وى ، ممانعت دې صورت سره خاص دې چه کله دا ځکته کول په وجه د تکبر وى ، او هم دا صورت مذموم دې لکه علامه قسطلانى رحمه الله ليکى : "فإن فيه أن الجر إذا كان بسبب الإسراع لايدخل في النهى، فيشعر بأن النهى يختص بما كان للخيلاء، فلا ذم إلا ممن قصد الخيلاء (١)

## ٢=باب التَّشْمِيرِ فِي الثِّيَابِ

[٥٣٤٩] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا ابْنُ شُمَيْلٍ أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ أَخْبَرَنَا عَوْنُ بْنُ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيهِ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ فَرَأَيْتُ بِلَالًا جَاءَ بِعَنَزَةٍ فَرَكَزَهَا ثُمَّ أَقَامَ الصَّلَاةَ فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ فِي حُلَّةٍ مُشَمِّرًا فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ إِلَى الْعَنَزَةِ وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ يَمُرُّونَ بَيْنَ يَدَيْهِ مِنْ وَرَاءِ الْعَنَزَةِ [ر:١٨٥]

تشمير باب د تفعيل دې ، شمّرثوبه : پاينسې اوچتول ، لستونړى اوچتول

روايت د باب کښې دى چه حضرت بلال رضی الله عنه ستره راوړله ، دا ئې اولګوله ، بيا ئې تکبير اوويلې ، دوى حله اغوستې وه او تشريف ئې راوړو ، دوى لنګ اوچت کړې وو ، د غنزه په طرف ئې مخ کړو او دوى دوه رکعته مونځ اوکړو ، او ما خلق او ځناورو لره ليدل چه د عنزه په شا تيريدل...... عنزة (د عين، نون او د زاء د فتحه سره ) ډنډې ته وائى ، چه هغې ته لاندې د اوسپنې څوکه لګيدلې وى ، شارحين ليکى : هوأطول من العصا وأقصر من الرمح، وفيه زج (٢) يعنى دا کوتك د همسا نه اوږد او د نيزې نه وړوکې وى او ديکښې اوسپنه لګيدلې وى -

...

...بقيه ازحاشيه گذشته] فمن جر ثوبه لا يأمن أن يسرى الكبر إلى باطنه ، ألا ترى أن النبى صلى الله عليه و سلم قال : اجعلو أزركم على أنصاف سيقانكم ، فإن أبيتم فلا حق لكم فى الكعبين - بالمعنى - فدل على أن الحديث من أحكام اللباس ، و أنه لاحق لنا فى ما دون الكعبين ، و هذا التعبير يشعر بنفى التخصيص بالمخيلة وغيرها ، و أوضع منه أنه لم يرخص للنساء فى إرخاء ذيولهن فوق شبر ، مع شأة احتياجهن إليه ، و سؤالهن عنه و لم يفضل لهن بالمخيلة ، أو غيرها - ( البدر السارى إلى فيض البارى : ١٤\٣٧٤ )

١) إرشاد السارى : ١٢\٥٠٧، ٥٠٨)

٢) ارشاد السارى : ١٢\٥٠٨، و عمدة القارى : ٢١\٢٩٤ )

## ٤- بَاب مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ فَهُوَ فِي النَّارِ

[۵۴۵۰] (۱) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْإِزَارِ فَفِي النَّارِ

امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب كښې د "من الكعبين" نه پس د "من الإزار" الفاظ نه دي ذكر كړي حال دا دې چه حديث شريف كښې دا الفاظ شته دې، د امام بخاری مقصد عموم ته اشاره كول دی، چه برابره خبره ده چه ازار وی او كه څڼه وغيره وی، ددې لاندې خكته زوړند ساتل جائز نه دي - (۲)

**د اسبال حكم عام دې:** امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب عام اوساتلو غالبا د حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه دې روايت ته ئې اشاره اوكړه چه امام ابوداود رانقل كړيدې، چه ديكښې دی - "قال رسول الله صلى الله عليه و سلم: إزرة المسلم إلى نصف الساق، ولا حرج ولا جناح فيما بينه وبين الكعبين، وما كان أسفل من الكعبين فهو في النار، من جرّ إزاره بطرا لم ينظر الله" (۳)

يعنی د مسلمان لنګ پكار دې چه د پنډو نيمې پورې وی، خو كه د پنډلو د نيمې او د ګيټو مينځ كښې هم وی نو هم څه باك نشته دې، خو كه د لنګ څه حصه د ګيټو نه خكته وی نو دا به په جهنم كښې وی، چه كوم سړې لنګ د تكبر په وجه ځان پسې راكاږی نو ده ته به الله تعالى د رحمت په نظر نه ګوری -

دې حديث كښې هم د "و ما كان دسفل من الكعبين" نه پس د "الازار" اضافه نشته دې، دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د يو حديث نه هم دا عموم ثابتيږی چه دا امام نسائی، ابن ماجه او ابوداود نقل كړيدې، ديكښې دی: "الإسبال في الإزار و القميص و العمامة، من جر منها شيئا خيلاء لم ينظر الله إليه يوم القيامة" (۴)

دارنګه امام ابوداود د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما قول نقل كړيدې "ما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم في الإزار فهو في القميص" يعنی د لنګ لاندې ساتلو متعلق چه رسول الله صلى الله عليه وسلم كوم وعيد فرمائلې دې د قميص باره كښې هم هغه حكم دې - (۵)

---

(۱) الحديث أخرجه النسائی فی كتاب الزينة، باب إسبال الإزار و ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين لخيبر أشعث بن أبی الشعثاء فی ذالک: ۵\۴۸۹ (رقم الحديث: ۹۷۰۵)

(۲) فتح البارى: ۱۰\۳۱۵، عمدة القارى: ۲۱\۲۹۷)

(۳) سنن أبی داود، كتاب اللباس، باب فی قدر موضع الإزار: ۴\۵۹ (رقم الحديث: ۴۰۹۳)

(۴) سنن ابی داود، كتاب ا للباس، باب فی قدر موضح الإزار: ۴\۶۰ (قم الحديث: ۴۰۹۴ و السنن الكبر للنسائی، كتاب الزينة، باب إسبال الإزار و ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين لخير أشعث بن ابی الشعثاء فی ذلک: ۵\۴۸۹ (رقم الحديث: ۹۷۰۶\۱۰)

(۵) سنن أبی داود، كتاب اللباس، باب فی قدر موضع الإزار: ۵\۶۰ (رقم الحديث: ۴۰۹۵)

## ٤ = باب من جر ثوبه من الخيلاء

[٥٣٥١] (١) حدثنا عبد الله بن يوسف أخبرنا مالك عن أبي الزناد عن الأعرج عن أبي هريرة أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لا ينظر الله يوم القيامة إلى من جر إزاره بطرا

[٥٣٥٢] (٢) حدثنا آدم حدثنا شعبة حدثنا محمد بن زياد قال سمعت أبا هريرة يقول قال النبي صلى الله عليه وسلم أو قال أبو القاسم صلى الله عليه وسلم بينما رجل يمشي في حلة تعجبه نفسه مرجل جمته إذ خسف الله به فهو يتجلجل إلى يوم القيامة

[٥٣٥٤\٥٣٥٣] حدثنا سعيد بن عفير قال حدثني الليث قال حدثني عبد الرحمن بن خالد عن ابن شهاب عن سالم بن عبد الله أن أباه حدثه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال بينا رجل يجر إزاره إذ خسف به فهو يتجلل في الأرض إلى يوم القيامة تابعه يونس عن الزهري ولم يرفعه شعيب عن الزهري حدثني عبد الله بن محمد حدثنا وهب بن جرير أخبرنا أبي عن عمه جرير بن زيد قال كنت مع سالم بن عبد الله بن عمر على باب داره فقال سمعت أبا هريرة سمع النبي صلى الله عليه وسلم نحوه [ر: ٣٢٩٧]

[٥٣٥٥] حدثنا مطر بن الفضل حدثنا شبابة حدثنا شعبة قال لقيت محارب بن دثار على فرس وهو يأتي مكانه الذي يقضي فيه فسألته عن هذا الحديث فحدثني فقال سمعت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما يقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من جر ثوبه مخيلة لم ينظر الله إليه يوم القيامة فقلت لمحارب أذكر إزاره قال ما خص إزارا ولا قميصا تابعه جبلة بن سحيم وزيد بن أسلم وزيد بن عبد الله عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم وقال الليث عن نافع عن ابن عمر مثله

وتابعه موسى بن عقبة وعمر بن محمد وقدامة بن موسى عن سالم عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم من جر ثوبه خيلاء [ر: ٣٤٦٥]

د جرازار دا حکم د سړو دپاره دی ، د ښځو دپاره نه دی ، ازار کښې بهتر دا ده چه دا پنډلو د نیمۍ پورې وی او د ګیټو پورې ساتل ئې جائز دی ، خو چه ګیټئ ښکاره وی ، امام نسائی رحمه الله روایت نقل کړیدې او امام حاکم ددې تصحیح کړیده ، ددې الفاظ دی :

موضع الإزار إلى أنصاف الساقين و العضلة ، فإن أبيت فأسفل ، فإن أبيت فمن وراء الساق و لا حق للكعبين في

---

[١] ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم جر الثوب خيلاء : ٣ \ ١٦٥٣ ( رقم الحديث : ٢٠٨٨ )

[٢] ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم التبختر فى المشى مع إعجابه بثيابه : ٣ \ ١٦٥٣ ( رقم الحديث : ٢٠٨٨ )

الإزار"(۱) يعنی د لنګ د زوړند ساتلو ځائې د پنډلو نيمه ده ګُه هغه ځائې پورې نه وی نو لږ دې لاندې کړی که په دې هم عمل نه شی کولې نو د پنډلئ تر آخره پورې دې اوساتی او دګیټو په لنګ کښې هیڅ حصه نشته دې " -
د باب بل روايت کښې دې ، رسول الله ﷺ فرمائلي دی چه يو سړی حله ( جوړا ) اغوستې وه او روان وو او په عجب ( ځان ته خوښيئ ) کښې وو ، د سر په ويختو کښې ئې ګمنز وهلې چه الله تعالى ده لره په زمکه کښې ډوب کړو او دې به د قيامت ورځي پورې په زمکه کښې روان وی

**قوله: تعجبه نفسه:** ده به خپل ځان ښه ګنړلو ، عُجب او إعجاب معنى دا ده چه انسان خپل ځان ته د کمال په سترګه ګوری ، خپل ځان ښه ګنړی او دا حقیقت ئې هیر وی چه دا ټول هر څه د الله تعالى ورکړې نعمت دې - (۲)

**قوله: يتجلجل:** د تجلجل معنى حرکت کول دی دلته دينه مراد په زمکه کښې د مسلسل خخيدو حرکت کول دی -

**قوله: مُرَجِّل جمّتَه:** مرجّل د باب تفعيل د اسم فاعل صيغه ده : ګُمنز کولو والا ، جمة : د سر هغه ويخته چه د اوږو پورې وی - (۳)
دې حديث کښې چه د کوم سړی د قيامته پورې په زمکه کښې د خخيدو ذکر دې ، کلاباذی وائی دينه مراد قارون دې (۴) د حضرت ابن عباس او د حضرت ابوهريره ﷺ په يو ضعيف حديث کښې هم د قارون نوم راغلې دې - (۵)
تابعه يونس عن الزهرى ، ولم يرفعه شعيب عن الزهرى
يونس بن يزيد متابعت امام بخارى دينه وړاندې موصولاً نقل کړې دې (۶) د تابعه ضمير منصوب عبد الرحمن بن خالد ته راجع دې

**قوله: ولم يرفعه شعيب عن الزهري:** يعنى شعيب بن ابى حمزه دا روايت د امام محمد بن شهاب زهرى نه نقل کړيدې خو مرفوع ئې نه دې نقل کړې ، اسماعيلى هم دې غير مرفوع طريق لره موصول نقل کړيدې - (۷)

**قوله: حدثني عبدالله بن محمد.......جرير بن زيد:** دجرير بن زيد په صحيح بخارى

---

(۱) السنن الكبرى للنسائى ، كتاب الزنة ، الاختلاف عى أبى إسحاق فيه : ۵\ ۴۸۵ ( رقم الحديث : ۱۹۶۸۸\ ۴ ) و ابن ماجه ، كتاب اللباس ، باب موضع الإزار أين هو ؟ ۲\ ۱۱۸۲ (رقم الحديث : ۳۵۷۲)
(۲) فتح البارى : ۱۰\ ۳۲۰ ، و ارشاد السارى : ۱۲\ ۵۱۰ )
(۳) فتح البارى : ۱۰\ ۳۲۰ ، عمدة القارى : ۲۱\ ۲۹۸ و ارشاد السارى : ۱۲\ ۵۱۰)
(۴) فتح البارى : ۱۰\ ۳۲۰ ، عمدة القارى : ۲۱\ ۲۹۸ )
(۵) فتح البارى : ۱۰\ ۳۲۰ ، و ارشاد السارى : ۱۲\ ۵۱۰)
(۶) كتاب أحاديث الأنبياء ، باب بلاترجمة ( رقم الحديث : ۳۴۸۵ )
(۷) عمدة القارى : ۲۱\ ۲۹۸ ، فتح البارى : ۱۰\ ۳۲۱)

كښې هم دا يو حديث دې (١) دا روايت سالم بن عبدالله نه جرير بن زيد هم نقل كړيدې او امام زهرى هم ، خو وړاندې د دواړو طريق مختلف دې ، زهرى " عن سالم عن ابيه عبد الله بن عمر " په طريق سره نقل كړيدې او جرير " عن سالم عن ابى هريره " په طريق سره نقل كړيدې ، دارنګه د جرير بن زيد روايت د امام زهرى نه مختلف دې ، علامه مزى په " اطراف الحديث " كښې د امام زهرې روايت محفوظ ګرځولې دې ځكه چه امام زهرى د جرير په مقابله كښې زيات ثقه دې - (٢)

د دې تقاضا ده چه د جرير دې روايت ته شاذ اوويلې شى ، امام بخارى رحمه الله دا دلته ذكر كړو كيدې شى چه دې خبرې ته ئې اشاره كړې وى چه سالم سره دا حديث د دواړو اصحابو نه وو ، حضرت ابوهريره نه هم او د حضرت عبد الله بن عمر نه هم -

بې شك د جرير په مقابله كښې د امام زهرى مرتبه اوچته ده خو د جرير روايت كښې تفصيل دې ، او قصه هم په كښې ذكر ده ، دې فرمائى چه حضرت سالم بن عبد الله بن عمر په دروازه باندې دوى سره ولاړ وو ، د زهرى په روايت كښې دا قصه او تفصيل نشته دې ، او محدثين وائى چه "إن الخبر إذا كانت فيه لرواية قصة دل ذلك على أنه ضبط" (٣)

جرير بن زيد روايتونه امام مسلم او امام نسائى رحمه الله نقل كړيدى ، - (٤)

علامه مزي رحمه الله په تهذيب الكمال كښې د دوى متعلق فرمائى " روى له البخارى مقرونا بغيره " (٥)

خو حافظ بن حجر رحمه الله فرمائى چه دارنګه روايت ذكر كولو ته " مقرون بالغير " نه شى ويلې .بلكه د امام په نزد دواړه طريق صحيح دى او دواړو د امام نه مستقل نقل كړيدې-(٦)

ابو حاتم ، علامه ذهبى او حافظ ابن حجر رحمهم الله د جرير بن زيد توثيق كړيدې - (٧)

**قوله: حدثنا مطر بن الفضل** .......شعبه فرمائى چه څه د محارب بن دثار سره ملاو شوم ، دې په خپل آس سور هغه ځائې ته راتلو چه كوم ځائې ده فيصلې كولې (ځكه چه دې د كوفې قاضى وو) ما ده نه ددې حديث متعلق تپوس اوكړو نو دوى دا حديث د حضرت عبدالله بن عمر په طريق سره واورولو ، ما محارب ته اوويل: چه عبدالله بن عمر خپل حديث كښې د ازار ذكر كړيدې ، دوى اوويل چه د قميص او د ازار تخصيص ئې نه دې كړې

---

(١) عمدة القارى : ٢١\٢٩٨ ، فتح البارى : ١٠\٣٢١)

(٢) تحفة الأشراف بمعرفة الأطراف للحافظ المزى : ٩\٤٥٦ ، ٤٥٧ ( رقم الحديث : ١٢٩١٣ ) و قال الحافظ ابن حجر فى النكت الظراف على الأطراف : فالقرينة المرجحة لروايته عن أبيه ، أن الزهرى أحفظ و أعرف لحديث سالم من جرير بن زيد ( النكت الظراف على الأطراف مع تحفة الأشراف : ٩\٤٥٦ ، ٤٥٧ )

(٣) ارشاد السارى : ١٢\٥١١ )

(٤) تهذيب الكمال : ٤\٥٣٢ ( رقم الترجمة : ٩١٥ )

(٥) تهذيب الكمال : ٤\٥٣٢ ( رقم الترجمة : ٩١٥ )

(٦) تهذيب التهذيب : ٢\٧٣ ( رقم الترجمة : ١١٣ )

(٧) تهذيب التهذيب : ٢\٧٣ ( رقم الترجمة : ١١٣ )

(بلکه د مطلق "ثوب" لفظ ئې استعمال کړې) -

**قوله: تابعه جبلة بن سحيم، وزيد بن اسلم، وزيد بن عبدالله ........:** محارب بن ثابت متابعت دې درې واړو حضراتو کړيدې ، د جبله متابعت امام نسائى ، د زيد بن اسلم متابعت امام مسلم موصولاً نقل کړيدې (١) او د زيد بن عبد الله متابعت موصولاً کيدو متعلق حافظ ابن حجر رحمه الله لا علمى ښکاره کړيده - (٢)

**قوله: وقال الليث عن نافع، عن ابن عمر مثله:** د ليث بن سعد تعليق امام موصولاً نقل کړيدې - (٣)

**قوله: و تابعه موسى بن عقبه و عمر بن محمد، و قدامه بن موسى عن سالم .......:** د نافع متابعت دې درې واړو راويانو کړيدې ، د موسى بن عقبه متابعت امام بخارى د کتاب اللباس په شروع کښې موصولا ذکر کړيدې ، د عمر بن محمد متابعت امام مسلم او قدامه بن موسى متابعت ابو عوانه موصولا نقل کړيدې - (٤)

## ٥= بَابُ الْإِزَارِ الْمُهَدَّبِ

وَيُذْكَرُ عَنْ الزُّهْرِيِّ وَأَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَحَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ وَمُعَاوِيَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ أَنَّهُمْ لَبِسُوا ثِيَابًا مُهَدَّبَةً

[٥٤٥٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ جَاءَتْ امْرَأَةُ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيِّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا جَالِسَةٌ وَعِنْدَهُ أَبُو بَكْرٍ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ تَحْتَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي فَتَزَوَّجْتُ بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَإِنَّهُ وَاللَّهِ مَا مَعَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِلَّا مِثْلُ هَذِهِ الْهُدْبَةِ وَأَخَذَتْ هُدْبَةً مِنْ جِلْبَابِهَا فَسَمِعَ خَالِدُ بْنُ سَعِيدٍ قَوْلَهَا وَهُوَ بِالْبَابِ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ قَالَتْ فَقَالَ خَالِدٌ يَا أَبَا بَكْرٍ أَلَا تَنْهَى هَذِهِ عَمَّا تَجْهَرُ بِهِ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا وَاللَّهِ مَا يَزِيدُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى التَّبَسُّمِ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّكِ تُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ لَا حَتَّى يَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ وَتَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ فَصَارَ سُنَّةً بَعْدُ [ر: ٢٤٩٦]

**قوله: مُهدّب:** د باب تفعيل اسم مفعول صيغه ده ...... ثوبٌ مُهَدّب هغه جامه چه د هغې غاړې وى ، ازار مُهدّب ، غاړه دار لنګ ، د جامو په غاړو باندې ډير کرتې تاروته وغيره

---

(١) ارشاد السارى : ١٢\٥١٢)
(٢) فتح البارى : ١٠\٣٢٢ ، و ارشاد السارى : ١٢\٥١٢)
(٣) فتح البارى : ١٠\٣٢٣ ، عمدة القارى : ١٢\٢٩٩)
(٤) فتح البارى : ١٠\٣٢٣ ، عمدة القارى : ٢١\٣٠٠)

پریخودې شي او بخۍ پرې اوشي او زونډې ترې زوړند کړې شي (١) امام بخاری رحمه الله ددې جواز ته اشاره کوی و ابو بکر بن محمد ، حمزه بن ابی سعید او معاویه بن عبد الله په باره کښې ویلې کیږی چه دوی د زونډو او د غاړو والا جامې اغوستې وې ، دوې کښې د حمزه بن ابی سعید أثر ابن سعد موصولا نقل کړیدې او د باقی موصول کیدو متعلق حافظ ابن حجر رحمه الله د لا علمۍ اظهار کړیدې - (٢)

امام ابوداود رحمه الله په دې سلسله کښې یو مرفوع حدیث نقل کړیدې چه دیکښې د هدب ذکر شته ، جابر بن سلیم فرمائی "أتیت النبی ﷺ وهو محتب بشملة ، وقد وقع هدبها علی قدمیه" یعنی څه نبی کریم ﷺ ته راغلم دوی په یو څادر کښې خان راغونډ کړې وو او ناست وو او ددې غاړې (زونډې) د دوی په قدمونو مبارکو وو - (٣)

د باب لاندې امام د "إمرأة رفاعة" والا حدیث نقل کړیدې ، چه دیکښې د هدبة لفظ راغلې دی ، په دې مناسبت امام دا حدیث دلته ذکر کړیدې -

## ٦=بَابُ الْأَرْدِيَةِ

وَقَالَ أَنَسٌ جَبَذَ أَعْرَابِيٌّ رِدَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٥٤٧٢]

[٥٤٥٧] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ أَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَائِهِ ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِي وَاتَّبَعْتُهُ أَنَا وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتَّى جَاءَ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ حَمْزَةُ فَاسْتَأْذَنَ فَأَذِنُوا لَهُمْ

**قوله:** أردية: د رداء جمع ده ، څادر ته وائی ، ترجمة الباب کښې ذکر شوې حدیث د حضرت انس تعلیق وړاندې په باب البرود والحبرة کښې راروان دې ـ

## ٧=بَابُ لُبْسِ الْقَمِيصِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى حِكَايَةً عَنْ يُوسُفَ اذْهَبُوا بِقَمِيصِي هَذَا فَأَلْقُوهُ عَلَى وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا [ر: ٩٣]

[٥٤٥٨] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ الْقَمِيصَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا الْخُفَّيْنِ إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ مَا هُوَ

---

(١) عمدة القاری: ٣٠٠/٢١ ، و ارشاد الساری: ٥١٣/١٢

(٢) ارشاد الساری: ٥١٣/١٢

(٣) سنن أبی دواد ، کتاب اللباس ، باب فی الهدب: ٥٤/٤ (رقم الحدیث: ٤٠٧٥)

أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ [ر:۱۳۴]

[۵۳۵۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أُبَيٍّ بَعْدَ مَا أُدْخِلَ قَبْرَهُ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ وَوُضِعَ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَنَفَثَ عَلَيْهِ مِنْ رِيقِهِ وَأَلْبَسَهُ قَمِيصَهُ فَاللّٰهُ أَعْلَمُ [ر:۱۲۱۱]

[۵۳۶۰] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ جَاءَ ابْنُهُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَعْطِنِي قَمِيصَكَ أُكَفِّنْهُ فِيهِ وَصَلِّ عَلَيْهِ وَاسْتَغْفِرْ لَهُ فَأَعْطَاهُ قَمِيصَهُ وَقَالَ إِذَا فَرَغْتَ مِنْهُ فَآذِنَّا فَلَمَّا فَرَغَ آذَنَهُ بِهِ فَجَاءَ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَجَذَبَهُ عُمَرُ فَقَالَ أَلَيْسَ قَدْ نَهَاكَ اللّٰهُ أَنْ تُصَلِّيَ عَلَى الْمُنَافِقِينَ فَقَالَ اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ فَنَزَلَتْ وَلَا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ فَتَرَكَ الصَّلَاةَ عَلَيْهِمْ [ر:۱۲۱۰]

امام بخاری رحمه الله غالباً دې باب سره دې خبرې ته اشاره کول غواړی چه د قمیص استعمال څه نوې ایجاد نه دې بلکه قدیم دې ، د پخوا نه ددې معمول راروان دې ، امام ترمذی رحمه الله دحضرت ام سلمه روایت نقل کړیدې " كان أحب الثياب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم القميص " (۱) په حدیث د باب کښې د بُرْنُس لفظ راغلې دې ، برنس ( د باء په ضمه او د راءپه سکون او د نون په ضمه سره)هغه قباء ته وائی چه هغې سره ټوپۍ ګنډلې شوې وی

## ۸= بَاب جَيْبِ الْقَمِيصِ مِنْ عِنْدِ الصَّدْرِ وَغَيْرِهِ

[۵۳۶۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ طَاوُسٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ ضَرَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلَ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ قَدِ اضْطُرَّتْ أَيْدِيهِمَا إِلَى ثُدِيِّهِمَا وَتَرَاقِيهِمَا فَجَعَلَ الْمُتَصَدِّقُ كُلَّمَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ انْبَسَطَتْ عَنْهُ حَتَّى تَغْشَى أَنَامِلَهُ وَتَعْفُوَ أَثَرَهُ وَجَعَلَ الْبَخِيلُ كُلَّمَا هَمَّ بِصَدَقَةٍ قَلَصَتْ وَأَخَذَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ بِمَكَانِهَا قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بِإِصْبَعِهِ هَكَذَا فِي جَيْبِهِ فَلَوْ رَأَيْتَهُ يُوَسِّعُهَا وَلَا تَتَوَسَّعُ تَابَعَهُ ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ أَبِيهِ وَأَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ فِي الْجُبَّتَيْنِ وَقَالَ حَنْظَلَةُ سَمِعْتُ طَاوُسًا سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ جُبَّتَانِ وَقَالَ جَعْفَرُ بْنُ حَيَّانَ عَنِ الْأَعْرَجِ جُبَّتَانِ [ر:۱۳۷۵]

د جیب معنی د ګریبان هم راځی او د پښتو والا جیب دپاره هم استعمالیږی یعنی د جامې هغه حصه چه هلته رقم وغیره ایخودې کیږی ، دلته رومبۍ معنی مراد ده ، سینې سره قمیص کښې سر راویستو دپاره چه کوم ګریبان جوړیږی هغه مراد دې ، څکه چه حدیث

(۱) سنن الترمذی ، کتاب اللباس ، باب ما جاء فی القمیص : ۴ \ ۲۳۷ ( رقم الحدیث : ۱۷۶۲ )

كښې د دغه جيب ذكر دې - (۱) شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائي چه دويمه معنى هم مراد اخستې شي ، (۲)

**د حديث د باب ترجمه او تشريح :** حديث دباب كښې حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چه رسول الله ﷺ د بخيل او د صدقه وركوونكې مثال بيان اوفرمائلو ، دوه سړې دى ، په دوى د اوسپنې زغره ده ( چه د هغې په وجه ) د دوى لاس د سينې او د اړخونو سره لګيدلې وى ( يعنى د زرې د تنګسيا په وجه د دوى لاسونه د سينې سره بند شويدى ) نو صدقه وركوونكې چه كله صدقه كوى نو دا زره فراخه شى او د ده د ( پښو د ګوتو ) بندونه پټ كړې ، او د ده د قدم نخې ( د فراخه كيدو په وجه ) وران كړى ( يعنى د صدقې په بركت سره دا تنګه زره چه ديكښې دده لاسونه هم بند وو دومره فراخه او خوره شى چه دده پښې هم پټې كړې او چه كله دې ځى نو د ده د قدمونو نخې دا زره ورانوى لكه چه څنګه يو سړې اوږده جامه راكاږى او روان وى نو د قدمونو نخې دې سره ورانيږى ) او بخيل چه كله د صدقې اراده كوى نودا زره د ده بدن پورې انخلى او هره كړئ په خپل ځائې پورې نوره هم مضبوطه شى ، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان دې چه ما رسول الله ﷺ لره اوليدلو چه ده خپلې ګوتې په خپل جيب كښې واچولې چه دا ئې فراخه كول غوښتل خودا نه فراخه كيدلو.

**قوله:** اضطُرَّت أيديهما إلى ثُديهما وتراقيهما: ثُدِيٌ ثَدْي جمع ده سينى ته وائى ، تراقى د تَرْقُوَة جمع ده لیندكئ ته وائى. ، د مرئ او د سينې سره چه كوم پيوسته وړوكې غوندې كنده ده دا ترينه مراد ده ، أنامله: رؤوس أصابع رجليه: يعنى د پښو د ګوتو سرونه _ تعفوأثره: هغه زره چه د ده د قدمونو نخې وارنوى - تَقَلَّصَتْ: انضمَّتْ ، راغونديدل ، پيوسته كيدل

**قوله:** تابعه ابن طاوس عن ابيه.......دلته باب كښې چه كوم روايت دې هغه د حسن عن طاوس په طريق سره دې ، ديكښې " عليهما جبتان من حديد " دې ، د حسن بن مسلم متابعت عبد الله بن طاوس او ابو الزناد ( عبد الله بن ذكوان ) دواړو كړيدې ، د ابو الزناد شيخ اعرج ( عبدالرحمن ) دې ، دې دواړو هم د " جبتان " لفظ نقل كړيدې ، د حنظله بن ابى سفيان په روايت كښې هم " جبتان " شته دې ، خو جعفر بن ربيعه چه د اعرج نه كوم روايت نقل كړيدې ، ديكښې د " جُنتان " لفظ دې ، دا د جُنَّة تثنيه ده ، ډهال ته وائى -

شارح د مشكوة علامه طيبى رحمه الله فرمائي چه " جنّة د نون سره زيات مناسب دې ، ځكه چه زره ته جنّة نه ويلې كيږى ، جُنّة ورته ويلې شى ځكه چه دا د انسان دپاره د ډهال او د بچاو كار وركوى - (۳) علامه قسطلانى رحمه الله ليكى :

" وخص المشبه بهما بلبس الجبتين من الحديد إعلاما ، بأن القبض و الشح من جبلة الإنسان ، و خلقته ، د

---

۱) ارشاد السارى : ۱۲\۵۱۸ ، فتح البارى : ۱۰\۳۲۸ ، عمدة القارى ذ: ۲۱\۳۰۲)
۲) الابواب و التراجم : ۱۲\۱۰٤ )
۳) ارشاد السارى : ۱۲\۵۱۹)

أن السخاء من عطاء الله و توفيقه ، يمنحه من يشاء من عباده المفلحين ، و خص اليد بالذكر ، لأن اسخي و البخيل يوصفان ببسط اليد و قبضها ، فإذا أريد المبالغة في البخل ، قيل : مغلولة يده إلى عنقه ، و ثديه ، و تراقيه ، وإنما عدل من الغل إلى الدرع لتصور معنى الإنبساط و التقلص ، و الأسلوب من التشبيه المفرق ، شبه السخي الموفق ، إذا قصد التصدق يسهل عليه ، ويطاوعه قلبه بمن عليه الدرع ، ويده تحت الدرع ، فإذا أراد أن يخرجها منها ، وينزعها يسهل عليه و البخيل على عكسه " (١)

يعنى حديث شريف كښې د اوسپنې د جبې سره تشبيه ئې ورکړه دې سره ئې دې خبرې ته اشاره کول مقصود دی چه بخل د انسان خلقت او جبلت ( طبيعت ) کښې دې ، او وصف د سخاوت د الله تعالى عطاء ده کومه چه نيکانو خلقو ته ورکولې کيږي ، د لاس ذکر ئې په خصوصيت سره ځکه اوکړو چه د سخي دپاره ويلې کيږي " د ده لاس فراخه دې " ...... او د بخيل باره کښې ويلې کيږي چه دده لاس بند دې - چه کله په بخل کښې مبالغه کول مقصود وی نو ويلې کيږي د ده لاس د څټ سره تړلې شويدې ، د بيږئ په ځائې ئې د زرې ذکر اوکړو ځکه چه زره فراخه کيږي او تنګيږي ، د سخي او د بخيل په شان .....د عبارت اسلوب د " تشبيه مفرق " د قسم نه دې ، هغه سخي چه هغه ته الله تعالى داسې توفيق ورکړې دې چه کله دې د صدقې اراده اوکړي نو صدقه کول ده ته اسان وی او دده زړه ده سره موافقت کوی ، د داسې سخي تشبيه د هغه سړی سره ئې ورکړيده چه په ده باندې زره وی او دده لاسونه په زره کښې دننه وی ، چه کله دې ددينه د لاسونو راويستلو اراده کوی نو د لاس راويستل ده ته اسان وی او بخيل ددې په عکس وی "-

حديث د باب په كتاب الزكاة کښې تير شويدې - (٢)

## ٩=بَابُ مَنْ لَبِسَ جُبَّةً ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ فِي السَّفَرِ

[٥٤٦٣]حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو الضُّحَى قَالَ حَدَّثَنِي مَسْرُوقٌ قَالَ حَدَّثَنِي الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهِ ثُمَّ أَقْبَلَ فَتَلَقَّيْتُهُ بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ شَامِيَّةٌ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ فَذَهَبَ يُخْرِجُ يَدَيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ فَكَانَا ضَيِّقَيْنِ فَأَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ فَغَسَلَهُمَا وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَعَلَى خُفَّيْهِ[ر:١٨٠]

د تنګو لستونړو والا جبه ( چُغه ) په سفر کښې رسول الله ﷺ اغوستې ده ، لکه چه حديث دباب کښې دی، سفرکښې مسافرته د داسې لباس ضرورت راځی چه په حضر کښې ئې دې نه استعمالوی او امام بخاری رحمه الله شايد په ترجمة الباب کښې ددې جواز ته اشاره کوی چه که سفر کښې د غير معتاد لباس ضرورت راپيښ شی نو سنت کښې ددې اصل شته ـ

---

(١) ارشاد السارى : ١٢\٥١٩)

(٢) كتاب الزكاة ، باب مثل المتصدق و البخيل ( رقم الحديث : ١٤٤٣ )

حديث د باب په كتاب الصلاة كښې تير شويدې ، هلته امام بخارى رحمه الله په دې ترجمه قائم كړې وه " الصلاة فى الجبة الشامية " (١)

## ١٠- بَاب لُبْسِ جُبَّةِ الصُّوفِ فِي الْغَزْوِ

[٥٣٦٣] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيرَةِ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِي سَفَرٍ فَقَالَ أَمَعَكَ مَاءٌ قُلْتُ نَعَمْ فَنَزَلَ عَنْ رَاحِلَتِهِ فَمَشَى حَتَّى تَوَارَى عَنِّي فِي سَوَادِ اللَّيْلِ ثُمَّ جَاءَ فَأَفْرَغْتُ عَلَيْهِ الْإِدَاوَةَ فَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ مِنْ صُوفٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يُخْرِجَ ذِرَاعَيْهِ مِنْهَا حَتَّى أَخْرَجَهُمَا مِنْ أَسْفَلِ الْجُبَّةِ فَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ مَسَحَ بِرَأْسِهِ ثُمَّ أَهْوَيْتُ لِأَنْزِعَ خُفَّيْهِ فَقَالَ دَعْهُمَا فَإِنِّي أَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ فَمَسَحَ عَلَيْهِمَا [ر:١٨٠]

**د ترجمة الباب مقصد** : ابن بطال فرمائى چه د امام مالك رحمه الله په نزد د صوف يعنى د وړئ جامه استعمالول مكروه دى ، په دې شرط چه نورې جامې وى خكه چه ديكښې دا يره شته چه سړې به زاهد مشهور شى او د شهرت د نقصاناتو نه بچ كيدل ډير كرته سخت وى دې وجه نه خفا ( گمنامى ) بهتر ده (٢) امام بخارى شايد ددې قول رد كوى چه رسول الله ﷺ په سفر د جهاد كښې د صوف جبه اغوستې وه لكه چه په حديث د باب كښې ددې تصريح موجود ده -

## ١١- بَاب الْقَبَاءِ وَفَرُّوجِ حَرِيرٍ وَهُوَ الْقَبَاءُ وَيُقَالُ هُوَ الَّذِي لَهُ شَقٌّ مِنْ خَلْفِهِ

[٥٣٦٤] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْبِيَةً وَلَمْ يُعْطِ مَخْرَمَةَ شَيْئًا فَقَالَ مَخْرَمَةُ يَا بُنَيَّ انْطَلِقْ بِنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ فَقَالَ ادْخُلْ فَادْعُهُ لِي قَالَ فَدَعَوْتُهُ لَهُ فَخَرَجَ إِلَيْهِ وَعَلَيْهِ قَبَاءٌ مِنْهَا فَقَالَ خَبَأْتُ هَذَا لَكَ قَالَ فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ رَضِيَ مَخْرَمَةُ [ر:٢٤٥٩]

[٥٣٦٥] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ أُهْدِيَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُّوجُ حَرِيرٍ فَلَبِسَهُ ثُمَّ صَلَّى فِيهِ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَزَعَهُ نَزْعًا شَدِيدًا كَالْكَارِهِ لَهُ ثُمَّ قَالَ لَا يَنْبَغِي هَذَا لِلْمُتَّقِينَ تَابَعَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ عَنِ اللَّيْثِ وَقَالَ غَيْرُهُ فَرُّوجٌ حَرِيرٌ [ر:٣٦٨]

قباء ( د قاف د فتحه سره ) جبه ( چغې ) ته وائى ، بعضې وائى چه قباء د شاه نه پريكړې شوې وى ، **فروج الحرير** : د ريښمو قباء : فروج ( د فاء د فتحه ، او د راء د تشديد سره ) هو

---

(١) كتاب الصلاة فى الجبة الشامية ( رقم الحديث : ٣٦٣)

(٢) فتح البارى : ١٠/ ٣٣٠)

**الذی له شق من خلفه : شَقٌ** ( د شین د فتحه او د قاف د تنوین سره ) یعنی هغه ریښمی قباء چه هغې کښې د شاه نه څیرې والې وی
ابن فارس فرمائی چه دا د ماشومانو قمیص ته وائی (۱)
علامه قرطبی فرمائی چه قباء او فروج د تنګو لستونړو والا جامې ته وائی او چه د شا نه پریکړې شوې وی ، په جنګ او سفر کښې به عموما ددې استعمال کیدلو ځکه چه دیکښې حرکت کول اسان وی - (۲)
حدیث د باب کښې د مخرمه بن نوفل واقعه بیان شویده ، مخرمه د فتح مکه په موقعه اسلام قبول کړې وو او غزوه حنین کښې شریك وو (۳) رسول الله ﷺ قباء تقسیم کړې ، مخرمه ته ئې د عام تقسیم په وخت ورنکړې ، مخرمه خپل ځوی مِسْوَر ته اوویل چه ما رسول الله ﷺ ته بوځه ( کیدې شی ما ته هم څه راکړی ) هغه بوتلو ، دوی ځوی ته اوویل ته دننه لاړ شه او رسول الله ﷺ رااوغواړه ، مسور فرمائی :ما رسول الله ﷺ رااوبللو ، دوی رااووتلو او دوی سره په دغه قباء ګانو کښې یو قباء وه او مخرمه ته ئې اوفرمائل " ما دا قباء د ستا دپاره ساتلې وه "..... مسور وائی چه څما پلارمخرمه دا اولیدل **فقال: رضی مخرمة** پس وې فرمائل : مخرمه راضی شو ، د قال فاعل رسول الله ﷺ هم کیدې شی ، داودی هم دا اخستې دې خو د حافظ ابن حجر دا خیال دې چه ددې فاعل مخرمه دې ، یعنی مخرمه خپل نوم واخستو او وې ویل مخرمه راضی شو (۴)
د باب دویم روایت کښې دی چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې چا ریښیمی قباء په طور د تحفه رااولیږله ، دوی دا واغوستله ، دیکښې ئې مونځ اوکړو ، چه کله د مانځه نه فارغه شو نو دا ئې داسې په سختئ اوویستله او وې غورزوله چه ګویا دا ده ته سخته ناخوښه ده بیا ئې اوفرمائل دا د متقیانو دپاره مناسب نه ده
تر دغه وخته د ریښمی جامو د سړو دپاره د استعمال د حرمت حکم نه وو نازل شوې دې وجه نه دوی دا واغوسته خو دمانځه نه پس ددې د حرمت حکم د سړو دپاره نازل شو ، دې وجه نه دوی دا اوویستله او وې غورزوله - (۵) یا د حرمت د نزول نه وړاندې دوی ته په خپله دا ناخوښه شوه او د حرمت حکم روستو راغلو ـ

**قوله: تابعه عبدالله بن یوسف.....:** یعنی د قتیبه بن سعید متابعت عبد الله بن یوسف کړیدې، دا متابعت امام بخاری رحمه الله په کتاب الصلاة کښې موصولا نقل کړیدې-(۶)

---

(۱) فتح الباری: ۱۰\۳۳۱ وفی معجم مقاییس اللغة: ۴\۴۹۹: الفروج: القباء،و سمی بذلک للفرجة التی فیه)
(۲) فتح الباری : ۱۰\۳۳۱)
(۳) الإصابة فی تمییز الصحابة : ۳\۳۹۰ ، ۳۹۱ ( رقم الترجمة : ۷۸۴)
(۴) فتح الباری : ۱۰\۳۳۲ ، و ارشاد الساری: ۱۲\۵۲۱)
(۵) فتح الباری: ۱۰\۳۳۲ ، و ارشاد الساری: ۱۲\۵۲۲)
(۶) کتاب الصلاة ، باب من صلی فی فروج حریر ثم نزعه ( رقم الحدیث : ۳۷۵)

**قوله:** وقال غيره: فَرّوج حرير: روايت د باب کښې "فَرّوج حرير" مرکب اضافي دې، فروج مضاف او حرير مضاف اليه دې او دې تعليق کښې "فروج حرير" مرکب توصيفي دې يعنې فروج او حرير دواړه د تنوين سره دی -
دا تعليق امام احمد موصولاً نقل کړيدې - (1)

## ۱۲=بَاب الْبَرَانِس

وَقَالَ لِي مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ رَأَيْتُ عَلَى أَنَسٍ بُرْنُسًا أَصْفَرَ مِنْ خَزٍّ
[۵۴۶۶] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْبَسُوا الْقُمُصَ وَلَا الْعَمَائِمَ وَلَا السَّرَاوِيلَاتِ وَلَا الْبَرَانِسَ وَلَا الْخِفَافَ إِلَّا أَحَدٌ لَا يَجِدُ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوا مِنَ الثِّيَابِ شَيْئًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا الْوَرْسُ _[ر: ۱۳۴]

برنس د يو خاص قسم قباء وی چه ديکښې ټوپۍ ورسره ګنډلې شوې وی، خز: غټو ريښمو ته وائی، د مسدد تعليق ابن ابی شيبه موصولاً نقل کړيدې - (2)
بعضې خلقو برنس اغوستو ته مکروه ويلې دی او فرمائی چه دا د راهبانو لباس دې (3) د امام مالك رحمه الله نه ددې متعلق تپوس اوشو نو دوی اوويل: لابأس به نو چا اعتراض اوکړو چه دا د نصاری لباس دې، نو وې فرمائل: دلته هم دا خلق استعمالوی (4) طبرانی د ابو قرصافه نه يو روايت رانقل کړيدې - دې فرمائی "کسانی رسول الله صلی الله عليه وسلم برنسا، فقال: البسه" (5) خو ددې په سند کښې يو راوی مجهول دې - (6)

## ۱۳=بَاب السَّرَاوِيلِ

[۵۴۶۷] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَمْ يَجِدْ إِزَارًا فَلْيَلْبَسْ سَرَاوِيلَ وَمَنْ لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ [ر: ۱۶۵۳]

---

1) فتح الباری: ۱۰\۳۳۳، و ارشاد الساری: ۱۲\۵۲۲)
2) فتح الباری: ۱۰\۳۳٤)
3) فتح الباری: ۱۰\۳۳٤، و ارشاد الساری: ۱۲\۵۲۳)
4) فتح الباری: ۱۰\۳۳٤)
5) مجمع الزوائد، کتاب اللباس، باب البرانس: ۵\۱۲۷)
6) فتح الباری: ۱۰\۳۳٤، و مجمع الزوائد، کتاب اللباس باب البرانس: ۵\۱۲۷)

[۵۴۶۸] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا تَأْمُرُنَا أَنْ نَلْبَسَ إِذَا أَحْرَمْنَا قَالَ لَا تَلْبَسُوا الْقَمِيصَ وَالسَّرَاوِيلَ وَالْعَمَائِمَ وَالْبَرَانِسَ وَالْخِفَافَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ لَيْسَ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ وَلَا تَلْبَسُوا شَيْئًا مِنَ الثِّيَابِ مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ [ر: ۱۳۴]

سراویل پرتوګ ته وائی ، د عهد نبوی په زمانه کښې د ازار ( لنګ ) اغوستو رواج وو ، خو د رسول الله ﷺ نه د سراویل اخستل ثابت دی (۱)

علامه ابن قیم رحمه الله فرمائی چه ظاهرهم دا ده چه دوی دا د اغوستو دپاره اخستې وو(۲) طبرانی په" معجم اوسط " کښې د حضرت ابوهریره نه یو روایت رانقل کړیدې ، دې فرمائی " دخلت یوما السوق مع رسول الله صلی الله علیه و سلم فجلس إلى البزاز ، فاشترى سراويل بأربعة دراهم " یعنی زه د رسول الله ﷺ سره بازار ته لاړم ، نو دوی د یو بنجاری سره کښیناستل او د څلورو درهمو په بدل نې یو پرتوګ واخستو ، هم دې روایت کښې دی " یا رسول الله ! وإنك لتلبس السراويل ؟ قال : أجل ، في السفر و الحضر ، و الليل و النهار ، فإني أمرت بالتستر" یعنی اے د الله رسوله تاسو به پرتوګ اغوندئ ؟ حضور ﷺ اوفرمائل : آو په سفر کښې هم او په حضر کښې هم د شپې هم او د ورځې هم ځکه چه ما ته د بدن د پټولو حکم شویدې " خو دې روایت کښې یونس بن زیاد یو ضعیف راوی دې - (۳)

## ۱۴= بَابُ الْعَمَائِمِ

[۵۴۶۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمٌ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ الْقَمِيصَ وَلَا الْعِمَامَةَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ زَعْفَرَانٌ وَلَا وَرْسٌ وَلَا الْخُفَّيْنِ إِلَّا لِمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَإِنْ لَمْ يَجِدْهُمَا فَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ [ر: ۱۳۴]

عمائم د عمامة جمع ده ، عمامه ( د عین په کسره ) پټکی ته وائی ، د شمائل ترمذی بعضې شارحانو د عین په فتح سره د دې ضبط کړیدې ، خو دا غلط دې - (۴)

د رسول الله ﷺ نه او د اصحابو کرامو نه د عمامې استعمال نقل دې -

صحیح بخاری ، کتاب الوضوء کښې د جعفر بن عمرو په طریق سره روایت تیر شویدې " رأیت النبی ﷺ یمسح علی عمامته و خفیه " (۵)

---

۱) فتح الباري : ۱۰\۳۳۵ )

۲) فتح الباري : ۱۰\۳۳۵ ، و زاد المعاد ، فصل فی ذکر سراویله : ۱\۱۳۹ )

۳) مجمع الزوائد ، کتاب اللباس ، باب فی السراویل : ۵\۱۲۲ )

۴) القاموس المحیط : ٤\١٥٤ ، تاج العروس : ۸\٤١٠ )

۵) ) أخرجه البخاری فی کتاب الوضوء ، باب المسح علی الخفین ( رقم الحدیث : ۲۰۵ )

دا رنګه په صحیح مسلم کښې د مغیره بن شعبه روایت دې " توضأ النبی ﷺ و مسح علی الخفین والعمامة" (۱)

**د پټکي فضیلت** : طبراني په معجم کبیر کښې او امام بیهقی په شعب الایمان کښې یو مرفوع روایت رانقل کړیدې چه رسول الله ﷺ فرمائلي دی " اعتمّوا تزدادوا حلماً " یعنی پټکی وهئ نود ستاسو وقار کښې به زیاتی راځی (۲) اګر چه امام حاکم ددې حدیث تصحیح کړیده (۳) خو امام بخاری وغیره دا ضعیف ګرځولې دې (۴) خو چه ددې نور شواهد هم شته ، دې وجه نه دا حدیث حسن لغیره په درجه کښې راځی - (۵)

څه خلق وائی چه پټکې سنت نه دې ، بلکه دا د عربو عادت وو ، خو دا صحیح نه ده ، حضرت عبد الله بن عمر ﷺ یو روایت کښې ددې د سنت کیدو تصریح ده ، یو سړې راغلو او دوی نه ئې تپوس اوکړو :" یا أبا عبد الرحمان : العمامة سنة ؟ فقال : نعم " (۶)

او که پټکی د عربو عادت هم شی نو بیا هم چه کوم عادت رسول الله ﷺ خپل کړې وی ، هغه سنت جوړیږی ، خو دیته به سنت عادیه وائی نه دا چه سنت عبادیه

**د پټکی مقدار** : ملاعلی قاری رحمه الله د امام نووی په حواله سره لیکلې دی چه د رسول الله ﷺ دوه پټکی وو ، یو وړوکې او بل غټ وو ، د وړوکې مقدار اووه ذراع او د لوې مقدار دولس ذراع وو (۷)

علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه د رسول الله ﷺ د پټکی مقدار عموما درې شرعی ګزه وو ، په مونځونو کښې به ئې اووه ذراع او په جمعه او په اخترونو کښې به ئې درلس ذراع وو - (۸)

خو دې سلسله کښې څه صحیح حدیث ثابت نه دې ، دې وجه نه علامه سیوطی رحمه الله فرمائلې دی "وأما مقدار العِمامة الشریفة، فلم یثبت فی حدیث " (۹)

---

(۱) أخرجه مسلم فی کتاب الطهارة ، باب المسح علی الناصیة و العمامة ( رقم الحدیث : ۲۷۳ )
(۲) أخرجه الطبرانی فی الکبیر ، باب ما جاء فی لبس العمائم و غیر ذلک : ۱۱\۱۹٤ ( رقم الحدیث : ٥١٦) و البیهقی فی شعب الایمان ، باب الملابس و الأوانی ، فضل فی العمائم : ٥\١٧٣ ( رقم الحدیث ک ٦٣٦٠ )
(۳) فتح الباری : ۱۰\۳۳٥ )
(٤) فتح الباری : ۱۰\۳۳٥ )
(٥) اخرجه ابوداود فی کتاب اللباس ، باب فی العمائم ، ( رقم الحدیث : ٤٠٧٨ ) و اخرجه الترمذی فی کتاب اللباس ، باب العمائم علی القلانس : ٤\٢٤٧ ( رقم الحدیث : ١٧٨٤ )
(٦) عمدة القاری : ۲۱\۳۰۷ )
(۷) مرقاة المفاتیح ، کتاب اللباس ، الفصل الثانی : ۸ ذ ۲٥۰ )
(۸) العرف الشذی علی جامع الترمی للعلامة السید محمد أنور شاه الکشمیری ، کتاب اللباس ، باب فی العمائم : ۱\۳۰٤ )
(۹) الحاوی للفتاوی : ۱\۷۳ )

دي وجه نه دې سلسله کښې د خلقو د عرف او د عادت اعتبار کول پکار دی ، د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ په فرمائل :" ما رآه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن "[1]

**د شملې تعداد او مقدار** : په روایتونو کښې د پټکی د يوې شملې هم ذکر شته او د دوو هم ، د عمرو بن حريث په روايت کښې دی "كأني أنظر إلى رسول الله صلى الله عليه و سلم على المنبر، وعليه عِمامة سوداء ، وقد أرخى طرفيها بين كتفيه ، وفي رواية قد أرخى طرفها بين كتفيه "[2] يعنى هغه منظر خما د سترګو وړاندې دې چه رسول الله ﷺ په منبر تشريف فرما وو او تور پټکې ئې اغوستې وو و د دې دواړه شملې د اوږو په مينځ کښې زوړندې وې او په يو روايت کښې دی " چه د دې يو شمله د اوږو په مينځ کښې حضور ﷺ زوړنده کړې وه " -

اکثرو روایتونو کښې د شملې د زوړندیدو متعلق د " بين كتفيه " الفاظ راغلې دی ، په بعضې روایتونو کښې د يو شملې وړاندې طرف ته او د دويمې شا ته د زوړندیدو ذکر دې ، او يو ضعيف روايت کښې ښى طرف ته هم د زوړندیدو ذکر شته[3]

خو د عمرو بن حريث روايت دې باره کښې زيات صحيح دې ، څکه چه د اوږو مينځ کښې زوړندول نسبتاً افضل دي -

**د شملې مقدار څومره پکار دې؟** : د دې باره کښې د يو ذراع او د يو ليشتې او د څلورو ګوتو ( سپق ) په قدر سره مختلف اقوال دی[4] خو راجح يوويشت والا قول دې ، او د ليشت والا روايت تخريج ابن سعد د محمد بن الحنفيه د ترجمه لاندې کړيدې ، الطبقات لابن سعد : ۵ \ ۱۱۴ دارنګه د څلورو ګوتو والا روايت تخريج بيهقى په شعب الايمان کښې کړيدې شعب الايمان باب في الملابس والاواني فصل في العمائم : ۵ \ ۱۷۴ ، (رقم الحديث : ۶۲۵۴ )

خو راجح د يو ذراع والا اقوال دی څکه چه امام بيهقى په شعب الايمان کښې د اسماعيل بن عياش په طريق سره د واثله بن الاسقع په باره کښې نقل کړيدی "...... قد أرخى عمامته من خلفه ذراعا "[5]

---

[1]) المستدرک للحاکم ، کتاب معرفة الصحابة ، باب يتجلى الله لعباده عامة و لأبى بكر خاصة : ۳ \ ۷۸ )

[2]) شعب الايمان للبيهقى ، باب فى الملابس و لأوانى ، فصل فى العمائم ( رقم الحديث : ۶۲۴۸ ) ۵ \ ۱۷۳ )

[3]) أخرجه أبوداود فى كتاب اللباس ، باب فى العمائم : ۴ \ ۵۵ ( رقم الحديث : ۴۰۷۹ ) ولفظه : عممنى رسول الله صلى الله عليه و سلم فسدلها بين يد يو من خلفى ، و أخرجه ابن أبى شيبة فى المصنف ، كتاب اللباس و الزينة ، باب فى العمائم السود : ۵ \ ۱۷۸ ، ( رقم الحديث : ۲۴۹۴۹ ) و أخرجه أيضا فى كتاب اللباس و الزينة ، باب فى إرخاء العمامة بين كتفين : ۵ \ ۱۸۰ ( رقم الحديث : ۲۴۹۶۷ ) و ذكر الهيثمى المجمع : كان رسول الله صلى الله عليه و سلم لايولى واليًا حتى يعمّمه و يرخى لها من جانب الأيمن نحو الأذن " وقال : " رواه الطبرانى وفيه جميع بن ثقت و هو متروك " ۵ \ ۱۲۰ )

[4]) د ذراع د روايت تخريج ابن ابى شيبه کړې دې اوګورئ مصنف بن ابى شيبه و كتاب اللباس و الزينة ، باب فى العمائم السود : ۵ \ ۱۷۸ ، ( رقم الحديث : ۲۴۹۴۶ )

[5]) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان ، باب فى الملابس و الاوانى ، فصل فى العمائم : ۵ \ ۱۷۴ ( رقم الحديث : ۶۲۵۵ )

خو شمله دومره اوږدول نه دي پكاره چه دا د نيمې ملا نه هم واوړي (١) دملا د نيمې نه چه شمله واوړي نو دا به د اسبال په حكم كښې وي ، اسبال چه څنګه په لنګ او په قميص كښې ممنوع دې ، دارنګه عمامه كښې هم ممنوع دې ، مرفوع حديث دې " الإسبالُ في الإزار و القميص و العمامة ، من جرّ منها شيئا خيلاء لم ينظر الله إليه يوم القيامة " (٢) حضرت شيخ عبد الحق محدث دهلوي فرمائي چه عمامه كښې اسبال دا دې چه دا د عادته زياته زوړنده كړې شي او د عادت آخري حد د ملا نيمه ده ، په دې زياتې كول په بدعت او په ممنوع اسبال كښې داخل دي - (٣)

**دپټكى رنګ** : د رسول الله ﷺ نه د تور ، سپين ، زيړ او د سور رنګ د پټكو ثبوت په روايتونو كښې ملاويږي (٤)

العمامة الصفراء : أخرجه ابوداود في كتاب اللباس ، باب في المصبوغ بالصفرة (رقم الحديث : ٤٠٦٤) وأخرجه الحاكم في المستدرك في كتاب اللباس ، باب غسل يوم الجمعة و مس الطيب فيه : ٤\١٨٩ -

العمامة البيضاء : أخرجه الحاكم في المستدرك في كتاب الفتن ، باب تعميم النبي ﷺ لعبد الرحمان بن عوف : ٤\٥٤٠ _

العمامة الحمراء : أخرجه أبوداود في كتاب الطهارة ، باب المسح على العمامة (رقم الحديث : ١٤٧) ١\٣٤)

په تور او سپين رنګ كښې خو هيڅ اختلاف نشته دې ، خو د سرو دپاره د زيړ رنګ او د سور رنګ د لباس استعمال چه په بعض روايتونو كښې ممانعت راغلې دې ، نو دې وجه نه ديكښې اختلاف دې ، خو د اكثرو عالمانو قول د جواز دې او چه په كومو روايتونو كښې نهي راغلې ده ، دغه راويتونو لره دا حضرات په اصفر فاقع (په ډير زيړ) او په احمر حاقاني (په ډير سور) محمولوي - (٥)

تر كومې چه د شين رنګ د پټكى د استعمالولو تعلق دې نو په څه صحيح روايت سره دا رنګ ثابت نه دې -

علامه كتاني رحمه الله فرمائي د شين رنګ پټكى متعلق خلق عموما تپوس كوي خو

---

١) أشعة اللمعات شرح مشكاة ، كتاب اللباس ، الفصل الثاني : ٣\٥٤٤ - ٥٤٥)

٢) سنن ابي داود ، كتاب اللباس ، باب في قدر موضع الازار ، ( رقم الحديث : ٤٠٩٤ ) ٤\٦٠)

٣) أشعة اللمعات ، كتاب اللباس ، الفصل الثاني : ٣\٥٤٤ - ٥٤٥)

٤) عمامته سوداء : أخرجه مسلم في كتاب الحج ، باب جواز دخول مكة بغير إحرام ، ( رقم الحديث : ١٣٥٨ ) و أبوداود في كتاب اللباس ، باب في العمائم ( رقم الحديث : ٤٠٧٦ ) و أخرجه الترمذي في كتاب اللباس ، باب ما جاء في العمامة السوداء ( رقم الحديث : ١٧٣٥ ) و النسايي في لامجتبى : ٢\٢٩٩ كتاب الزينة ، باب ليس العمائم السود ، و أخرجه ابن ماجه في الجهاد ، باب لبس العمائم في الحرب ( رقم الحديث : ٢٨٢٢ )

٥) ددې تفصيل وړاندې باب الثياب الاحمر لاندې را روان دې )

علامه خفاجی په شرح د شفاء کښې چه کوم تفصيل نقل کړيدې ، دينه معلوميږي چه رسول الله ﷺ د شين رنګ پټکې نه دې په سر کړې - (۱)
علامه سيوطی رحمه الله په الحاوی للفتاوی کښې د ساداتو په تذکره کښې ليکی :

هم يلبسون العمامة الخضراء ، و الجواب أن هذه العمامة ليس لها أصل فى الشرع ، ولا فى السنة ، و لا كانت فى الزمن القديم ، وإنما حدثت فى سنة ثلاث وسبعين و سبعمائة بأمر الملك الأشرف يعنى شعبان بن حسين (۲)
يعنی سيدان شين رنګ پټکی په طور د علامت او د امتياز استعمالوی خو په شريعت کښې او په سنت کښې ددې څه اصل نشته دې ، دا رنګ په سن ۷۷۳ هجرئ کښې شعبان بن حسين نومې باچا په حکم سره رائج شو -

دارنګه ابن حجر هيثمی هم په خپله فتاوی کښې ليکلې دی : وأما العمامة الخضراء ، فلا أصل لها ، وإنما حدثت سنة ثلاث و سبعين و سبعمائة بأمر الملك شعبان بن حسين (۳)
خو حضراتو اصحابو ﷺ د مختلف رنګونو پټکی استعمال کړيدی ، د مصنف ابن ابی شيبه په يو روايت کښې په دې رنګونو کښې د شين رنګ هم ذکر شته - (۴)

شارح د بخاری ابن بطال رحمه الله فرمائی : شنې جامې د جنتيانو لباس دې " الثياب الخضر من لباس أهل الجنة ، قال تعالى : (ويلبسون ثيابا خضرا من سندس و استبرق ) (۵)

دارنګه طبرانی او بيهقی د حضرت انس ﷺ نه روايت نقل کړيدې " أن النبى ﷺ كان يحبّ أو قال كان أحبُّ الألوان إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم الخضرة " (۶)
دې وجه نه که څوک شين رنګ استعمال بغير د دينه چه په نورو رنګونو ورته ترجيح ورکوی نو دا جائز دې -
خو که څوک دا خپل امتيازی علامت او شعار جوړوی او په نورو رنګونو ورته ترجيح او فوقيت ورکوی ، نو داسې صورت کښې ددې استعمال ته به بدعت ويلې کيږی څکه چه د يو مباح او د مستحب څيز التزام بدعت او قابل د پريخودو دې - (۷)

---

(۱) الدعامة ص : ۹۵ ، شرح الشفاء للخفاجی : ۲\۳۷۱ )
(۲) الحاوی للفتاوی : ۱\۳۳ )
(۳) ) الفتاوی الحديثية : ۲۲۵ )
(۴) أخرجه ابن ابی شيبة فی مصنفه ، كتاب اللباس و الزينة ، باب فی العمائم السود : ۵\۱۷۹)
(۵) شرح صحيح البخاری لابن البطال : ۹\۱۰۲)
(۶) رواه البيهقی فی شعب الايمان ، باب فی الملابس و الاوانی و فصل فی الوان الثياب ( رقم الحديث : ۶۳۲۸ ) ۵\۱۹۳ ، ذكر الهيثمی فی المجمع و قال : رواه الطبرانی فی الاوسط ، مجمع الزوائد : ۵\۱۲۹ ) ( رسول الله صلى الله عليه و سلم ته شين رنګ په ټولو کښې زيات خوښ وو - )
(۷) الإصرار على المندوب يبلغه إلى حد الكراهية السعاية ، كتاب الصلوة ، باب صفة الصلاة ، فصل فی القراءة : ۲\۲۲۵ )

امام بخاری رحمه الله په باب کښې چه کوم حدیث ذکر کړیدې ، دیکښې دې چه محرم به عمامه نه په سروی ..... د عمامه په سرولو متعلق امام څه حدیث نه دې ذکر کړې شاید دې باره کښې دوی ته د خپل شرط مطابق څه روایت نه دې ملاو شوې ، علامه قسطلانی رحمه الله لیکی : ولم يذكر البخاري في العمامة شيئا، ولعله لم يثبت عنده شيء على شرطه فيها (۱)
بهر حال عمامه توره یا سپینه پکار ده ، او دا دې د ټوپۍ دپاسه اووهی ، د ټوپۍ په ارخونو دې نه وهی بلکه چه په مینځ کښې هم یو ول وی ، او چه ددې شمله د اوږو په مینځ کښې وی یا ښی طرف یا ګس طرف ته وی او چه شمله د یو ذراع نه زیاته نه وی ، او چه دا مسنون اوګنړی او په سر ئې کړی نو انشاء الله د سنتو ثواب به ورته حاصل شی -

## ۱۵=بَابُ التَّقَنُّعِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ عِصَابَةٌ دَسْمَاءُ [ر:۳۵۸۹]
وَقَالَ أَنَسٌ عَصَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَأْسِهِ حَاشِيَةَ بُرْدٍ [ر:۳۵۸۸]
[۵۴۷۰] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ هَاجَرَ نَاسٌ إِلَى الْحَبَشَةِ مِنْ الْمُسْلِمِينَ وَتَجَهَّزَ أَبُو بَكْرٍ مُهَاجِرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رِسْلِكَ فَإِنِّي أَرْجُو أَنْ يُؤْذَنَ لِي فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَوَ تَرْجُوهُ بِأَبِي أَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَحَبَسَ أَبُو بَكْرٍ نَفْسَهُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصُحْبَتِهِ وَعَلَفَ رَاحِلَتَيْنِ كَانَتَا عِنْدَهُ وَرَقَ السَّمُرِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَبَيْنَا نَحْنُ يَوْمًا جُلُوسٌ فِي بَيْتِنَا فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ فَقَالَ قَائِلٌ لِأَبِي بَكْرٍ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُقْبِلًا مُتَقَنِّعًا فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا قَالَ أَبُو بَكْرٍ فِدًا لَكَ أَبِي وَأُمِّي وَاللَّهِ إِنْ جَاءَ بِهِ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ إِلَّا لِأَمْرٍ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَ فَأَذِنَ لَهُ فَدَخَلَ فَقَالَ حِينَ دَخَلَ لِأَبِي بَكْرٍ أَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ قَالَ إِنَّمَا هُمْ أَهْلُكَ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ فَإِنِّي قَدْ أُذِنَ لِي فِي الْخُرُوجِ قَالَ فَالصُّحْبَةُ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَخُذْ بِأَبِي أَنْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِحْدَى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالثَّمَنِ قَالَتْ فَجَهَّزْنَاهُمَا أَحَثَّ الْجِهَازِ وَضَعْنَا لَهُمَا سُفْرَةً فِي جِرَابٍ فَقَطَعَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ أَبِي بَكْرٍ قِطْعَةً مِنْ نِطَاقِهَا فَأَوْكَأَتْ بِهِ الْجِرَابَ وَلِذَلِكَ كَانَتْ تُسَمَّى ذَاتَ النِّطَاقِ ثُمَّ لَحِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بَكْرٍ بِغَارٍ فِي جَبَلٍ يُقَالُ لَهُ ثَوْرٌ فَمَكُثَ فِيهِ ثَلَاثَ لَيَالٍ يَبِيتُ عِنْدَهُمَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ وَهُوَ غُلَامٌ شَابٌّ لَقِنٌ ثَقِفٌ فَيَرْحَلُ مِنْ عِنْدِهِمَا سَحَرًا فَيُصْبِحُ مَعَ قُرَيْشٍ بِمَكَّةَ كَبَائِتٍ فَلَا يَسْمَعُ أَمْرًا يُكَادَانِ بِهِ إِلَّا وَعَاهُ حَتَّى يَأْتِيَهُمَا بِخَبَرِ ذَلِكَ حِينَ يَخْتَلِطُ الظَّلَامُ وَيَرْعَى عَلَيْهِمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ مِنْحَةً مِنْ غَنَمٍ فَيُرِيحُهَا عَلَيْهِمَا حِينَ

۱) فتح الباری : ۱۰\۳۳۵ درانګه اوګورئ عمدة القاری : ۲۱\۳۰۷)

تَذْهَبُ سَاعَةٌ مِنَ الْعِشَاءِ فَيَبِيتَانِ فِي رِسْلِهِمَا حَتَّى يَنْعِقَ بِهَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ بِغَلَسٍ يَفْعَلُ ذَلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ مِنْ تِلْكَ اللَّيَالِي الثَّلَاثِ [ر:٤٦٤]

د تَقَنُّع معنی سر او مخ پټول دی ، امام بخاری رحمه الله دې باب کښې په څه جامه یا په څادر وغیره سره د سر د پټولو جواز بیانول غواړی :

**قوله: وقال ابن عباس : خرج النبي صلى الله عليه وسلم عصابة دَسْماء:**
رسول الله ﷺ د کور نه راووتلو او د دوی په سر باندې توره ټکړه د جامو وه د دسماء معنی توره ده ، دا تعلیق باب مناقب الانصار کښې موصولا تیر شویدې - (١)

**قوله: وقال أنس : عصب النبي صلى الله عليه وسلم على رأسه حاشية بُرد :**
حضرت انس فرمائی چه رسول الله ﷺ په خپل سر مبارك باندې د څادر یو طرف تړلې وو - بهرحال یو خو پټکې وی چه کوم په سر تړلې کیږی خو ډیر کرتې څه ټکړا یا څه څادر په سر او د مخ په څه حصه باندې د ګرمئ یا د یخنئ نه د بچ کیدو یا د څه بل مقصد دپاره اچولې کیږی یا پرې تړلې کیږی ، د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه سنت کښې ددې اصل شته او داسې کول جائز دی -

**قوله: حدثنا ابراهيم بن موسى .......:** دا حدیث په تفصیل سره " کتاب مناقب الأنصار ، باب هجرة النبي ﷺ کښې تیر شویدې - د حدیث مناسبت ترجمة الباب سره واضح دې ، حدیث کښې دی :" هذا رسول الله صلى الله عليه و سلم مقبلاً ، متقنعاً ، في ساعة لم يكن يأتينا فيها " یعنی رسول الله ﷺ تشریف راوړلو داسې حال کښې چه د دوی سر پټ وو په داسې وخت کښې چه دیکښې د دوی د راتلو عادت مبارك نه وو -

**دلته ددې حدیث څو جملې ملاحظه کړئ :** على رِسلِك : اودریږه ، ایسار شئ ، وَعَلَفَ راحلتين كانتا عنده وَرَق السَّمُر أربعة أشهر : حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه خپلو دوه سورلو ( څناورو ) ته څلورو میاشتو پورې خوراك ورکولو د سفر دپاره ئې تیارول ده دغه دوه اوښې څربول غوښتل-

**قوله: قال أبوبكر : فِدًا له بأبي وأمي ، والله إن جاء به في هذه الساعة لأمرٌ :**
حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه اوفرمائل چه ځما مور پلار دې په تا قربان وی والله تاسو دې وخت کښې د څه لوې کار په وجه تشریف راوړو - فدا له : دا د مفعول مطلق کیدو په وجه منصوب دې أى أفديه فدا له ځه خپل مورپلار په دوی قربان کړم ، ځما مور پلار دې په دوی قربان وی

**قوله: قالت : فجهَّزناهما أحث الجهاز ، وصنعنا لهما سُفرةً في جراب:** حضرت عائشه- رضی الله عنها فرمائی چه مونږ د دواړو دپاره په تُندئ تُندئ سامان د سفر تیار کړو او د صبا ناری

---

(١) اخرجه البخاری فی مناقب الانصار ، باب قول النبی صلی الله علیه وسلم : اقبلوا من محسنهم و تجاوزوا عن مُسيئهم ( رقم الحديث : ٣٨٠٠ )

خوراك مو ورته تيار کړو او د څرمنې په يو تيلۍ کښې مو ورته کېخوده - الجهاز ( د جيم په فتحه سره ) : أسرع الجهاز : يعنى په تُندۍ سره مو تيارۍ اوکړو

سُفرة : دسترخوان ته وائى ، جراب : د څرمنې ګوټۍ ته وائى ، أوکت به الجراب : حضرت اسماء رضي الله عنها د خپل نطاق ( کمر بند چه دې سره خلق ملا هم تړى او ګيډې وغيره هم ) څه ټکړه اوشلوله او دا ګوټۍ ئې پرې اوتړله ، د أوکی معنى د تړلو ده

**قوله: وهو غلام شاب لقن ثقف:** لقن : ذهين ، ذکى - ثقف : ذهين او ماهر مهذب . يعنى عبد الله بن ابى بکر يو ذهين زلموټې هلك وو ، دې به غار ثور ته تلو د حضور اکرم ﷺ او د حضرت ابو بکر سره به ئې شپه تيروله ، او سحر کيدو سره به د دغه ځائې نه روانيدلو ، او د سحر په وخت به قريشو کښې به داسې موجود وو چه ګويا دا هم دوى سره شپه تيره کړله -

**قوله: فلا يسمع أمرا يكادان به إلا وعاه:** چه دا به هلته داسې څه خبره اوريدله چه د هغې په ذريعه د حضور اکرم ﷺ او د ابو بکر رضي الله عنه سره به پرې دهوکه کيدله نو دا به دا ياد ساتله ، يُكادانِ : کاد يکيد کيدا نه د مضارع مجهول تثنيه صيغه ده چه د دې معنى د کيد کولو اود دهوکه کولو ده، ترکيب کښې "يكادان به " د " امرا " صفت دې يعنى داسې معامله چه د هغې په ذريعه دې دواړو سره دهوکه او فريب کيدې شى - يكادان به أى يمكران به -

**قوله: حتى يأتيهما بخبر ذلك حين يختلط الظلام:** يعنى عبد الله بن ابى بکر به دا خبر رسول الله ﷺ او حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ته رارسولو چه کله به تياره خوره شوه يعنى د شپې په وخت - مِنحة ( د ميم په کسره او نون په سکون سره ) د پيو والا بکرۍ ته ويلې کيږى چه کومه عارية ورکړې کيږى او د پيو ختميدو نه پس واپس کړې کيږى : فيُريحُها عليهما : عامر بن فهيره به د شپې په وخت دغه بکرۍ دواړو ته حاضرولې -يُريح راحة : د ماښام په وخت څاروى راوستل ، فيبيتان فى رسلها : دواړو ( حضور ﷺ او حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ) به پئې اوڅکل او شپه به ئې تيره کړه ، رِسل : پئې ، رِسلها أى لبن المنحة : رِسلها کښې ضمير مجرور منحة ته راجع دې : حتى ينعِقَ بها عامر بنُ فهيرة بغلَس : نعق د باب د فتح نه دې نعق بالغنم : بکرۍ شړل ، غلس : سَحر وختى ته وائى هغه وخت چه د شپې تياره لا برقرار وى يعنى عامر بن فهيره به سحر وختى دغه بکرۍ ته اواز اوکړو او دا به ئې بوتلې

## ۱۶= باب المِغفَر

[۵۴۷۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ [ر: ۱۷۴۹]

يو بله دعا امام احمد او امام ابوداود رحمهما الله نقل كړيده " الحمد لله الذی كسانی هذا الثوب، ورزقنيه من غير حول منی ولا قوة " [1] (د الله تعالى شكر دې چه ده په ما دا جامه واغوسته او ځما د څه طاقت او د قوت نه بغير ئې ما ته دا راكړه -)
دا دعاګانې چه د امام بخارى په شرط نه وې ، دې وجه نه امام د دې ذكر اونكړو [2]

## ٣٢=بَابُ التَّزَعْفُرِ لِلرِّجَالِ

[٥٥٠٨] [3] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَزَعْفَرَ الرَّجُلُ

## ٣٣=بَابُ الثَّوْبِ الْمُزَعْفَرِ

[٥٥٠٩] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِوَرْسٍ أَوْ بِزَعْفَرَانٍ [ر: ١٣٤]

**په زعفران كښې د رنګ شوو جامو حكم** : په زعفران كښ د رنګ شوو جامو استعمال د سړو دپاره جائز دې او كه ناجائز ؟ ديكښې اختلاف دې -
د امام مالك رحمه الله په نزد ددې استعمال د سړو دپاره جائز دې ، خو په جامو كښې ئې استعمالولې شى ، په بدن كښې ئې نه شى استعمالولې - [4]
د احنافو او شوافعو او د حنابله په نزد ددې استعمال مطلقا ممنوع دې ، په بدن كښې هم او په جامو كښې هم په دواړو كښې ددې استعمال مكروه تحريمى دې [5] د تَزعفُر معنى ده په زعفران كښې رنګ شوې
مالكيه حضرات د موطا امام مالك د روايت نه استدلال كوى چه هغې كښې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما باره كښې دى " كان يلبس الثوب المصبوغ بالزعفران " [6]

---

[1] ) أخرجه ابوداود فى كتاب اللباس : ٤\٤٢ ( رقم الحديث : ٤٠٢٣ )
[2] ) عمدة القارى : ٢٢\٢١)
[3] ) الحديث أخرجه مسلم فى اللباس ، باب نهى الرجل عن التزعفر : ٣\١٦٦٢ ( رقم الحديث : ٢١٠١ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة باب التزعفر و الخلوق : ٥\٤٢٩ ( رقم الحديث : ٩٤١٤ )
[4] ) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ٩\١١٩ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٢١ ، شرح زرقانى ، كتاب اللباس ، باب فى لبس الثياب ، باب فى لبس الثياب المصبغة و الذهب : ٤\٢٦٩ )
[5] ) أوجز المسالک فى كتاب اللباس ، باب ما جاء فى لبس الثياب المصبغة و الذهب : ١٤\١٧٧ ، و المغنى لابن قدامة ، كتاب الصلوة ، باب لباس المصلى ، الفصل الثالث فيما يكره : ١\٣٤١ ) ځكه چه حديث د باب كښې مطلقا ممانعت دې " نهى النبىُّ صلى الله عليه و سلم أن يتَزَعفر الرجلُ " ( رسول الله صلى الله عليه و سلم په زعفران كښې رنګ شوې جامو اغوستو نه منع كړيده )
[6] ) الموطا للإمام مالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى لبس الثياب المصبغة و الذهب : ٢\٩١١ )

(يعنى حضرت عبد الله بن عمر ﷺ په زعفران كښې رنګ شوې جامې اغوستې وې )
شارح د هدايه علامه ابن الهمام فرمائى چه جمهورو محرم لره په مبيح باندې ترجيح وركړېده او په نهي ئې عمل اوكړو ، اګر چه د اباحت راوايتونه هم شته - (۱)
" ثوب مزعفر " په شان يو بله جامه ده چه ورته " ثوب معصفر " وائى ، امام بخارى رحمه الله د دې ذكر نه دې كړې ، خو شارحينو د دې حكم بيان كړيدې -

**د ثوب معصفر حكم : عُصْفُر** ( د عين په ضمه او د صاد په سكون او د فاء په ضمه سره ) يو خاص قسم د زير رنګ بوټې دې چه دا په اوبو كښې واچولې شى او جامې پرې رنګ كيږى ، عربو كښې ددې رواج وو (۲)
امام مسلم رحمه الله په كتاب اللباس كښې د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ نه روايت نقل كړيدې چه رسول الله ﷺ په دوى باندې ثوب معصفر اوليدلو نو وې فرمايل "إن هذه من ثياب الكفار، فلا تلبسها" (۳)
احناف حضرات ددې حديث نه استدلال كوى او وائى چه د سړو دپاره ددې استعمال مكروه تحريمى دې - (۴) اګر چه امام نووى رحمه الله د امام ابو حنيفه رحمه الله نه د جواز قول هم نقل كړيدې (۵) خو د احنافو مختار مسلك د كراهت دې ، ابن قدامه د حنابله په نزد هم د كراهت قول نقل كړيدې - (۶)
د امام شافعى رحمه الله مشهور قول د اباحت دې (۷) خو امام بيهقى رحمه الله فرمائى چه غالبا امام شافعى ته د نهى روايت نه وو رسيدلې ، بيهقى كراهت له راجح ګرځولې دې (۸)
د امام مالك رحمه الله مختلف روايتونه رانقل دې خو مشهوره دا ده چه كه ددې رنګ تيز نه وى نو دا جائز دې ، خو د عُصفر رنګ تيز وى نو دا د دوى په نزد مكروه دې - (۹)
په حديث د باب كښې د " وَرس " لفظ راغلې دې ، دا هم يو بوټې دې او د جامو په رنګ كولو كښې پكار راځى - (۱۰)

---

(۱) أوجز المسالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى لبس الثياب المصبغة : ۱۴\۱۷۷ )
(۲) القاموس الوحيد : ۱۰۷۹)
(۳) أخرجه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب النهى عن لبس الرجل الثوب المعصفر ( رقم الحديث ۲۰۷۷ ) ۳\۱۶۴۷ )
(۴) الدرالمختار ، كتاب الحظر و الإباحة ، فصل فى اللبس : ۵\۲۵۲ )
(۵) شرح مسلم للنووى فى كتاب اللباس و الزينة ، باب النهى عن لبس العصفر : ۲\۱۹۳ )
(۶) المغنى لابن قدامة ، كتاب اللباس ، باب لباس لامصلى ، الفصل الثالث فيما يكره : ۱\۴۱۱ )
(۷) إرشاد السارى : ۱۲\۵۵۸ )
(۸) فتح البارى : ۱۰\۳۷۵ ، إرشاد السارى : ۱۲\۵۵۸ )
(۹) شرح الزرقانى على الموطا للإمام مالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى لبس ثياب المصبغة و الذهب : ۴\۲۷۰ )
(۱۰) إرشاد السارى : ۱۲\۵۵۹ )

دا یاد ساته چه د امامانو په نزد د ثوب مزعفر او د معصفر دا ممانعت صرف د سړو دپاره دی د ښځو دپاره نه دې -
امام بخاری رحمه الله چه په باب کښې کوم حدیث نقل کړیدې ، دیکښې نهی صِرف د محرم په حق کښې ده چه د هغې مفهوم مخالف دا رااوځی چه د غیر محرم دپاره ثوب مزعفر استعمالول جائز دی ، امام ړومبې باب قایم کړو " باب التزعفر للرجال " او ددې لاندې ئې حدیث ذکر کړو "نهی النبیﷺ أن یتزعفر الرجل" دیکښې نهی مطلق ده او دویم باب "باب الثوب المزعفر " کښې چه کوم روایت ذکر کړو دیکښې نهی صرف د محرم دپاره ده ، د امام د صنیع نه معلومیږی چه دې هم د امام مالك په شان نهی مطلق په مقید محمول کوی ، د امام مالك په نزد د مرحم دپاره د ثوب مزعفر استعمال د حدیث د باب په وجه ممنوع دې - (۱)

## ۳۴=بَاب الثَّوْبِ الْأَحْمَرِ

[۵۵۱۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْبُوعًا وَقَدْ رَأَيْتُهُ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْهُ [ر:۳۳۵۶]

## ۳۵=بَاب الْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ

[۵۵۱۱] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَشْعَثَ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ عِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ عَنْ لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ وَالْقَسِّيِّ وَالْإِسْتَبْرَقِ وَالْمَيَاثِرِ الْحُمْرِ [ر:۱۱۸۲]

**د سور رنګ جامو د استعمالولو حکم** :د سړو دپاره د سور رنګ د جامو استعمالول جائز دی او که ناجائز؟ دې سلسله کښې روایتونه مختلف دی ، د بعض روایتونو نه جواز معلومیږی او د بعض روایتونو نه عدم جواز معلومیږی -(۲)
د روایتونو ددې تعارض په وجه د فقهاءو اقوال هم دیکښې مختلف دی، لکه چه بعضې عالمانو دیته مطلقا جائز او بعضو ورته مطلقا ناجائز ویلې دی، د احنافو حضراتو په نزد د اوو نه زیات اقوال دی ، د بعضو په نزد حرام او د بعضو په نزد مباح او د بعضو په نزد مستحب ، او د بعضو په نزد مکروه تنزیهی دی، خو راجح قول د کراهت تنزیهی دې ، (۳)

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۳۷۵ ، عمدة القاری : ۲۲\۲۲ )
(۲) عن عبد الله بن عمروبن العاص رضی الله عنه قال : " مرّ علی النبی صلی الله علیه و سلم رجل و علیه ثوبان أحمران ، فسلّم ، فلم یرد علیه رسول الله صلی الله علیه و سلم " أخرجه أبوداود فی کتاب اللباس ، باب فی الحمرة : ۴\۵۳ ( رقم الحدیث : ۴۰۶۹ ) و أخرجه الترمذی فی کتاب الأدب ، باب کراهیة لبس المعصفر للرجال : ۵\۱۱۶ ( رقم الحدیث : ۲۸۰۷ )
(۳) امداد الفتاوی: ۴\۱۲۵ کفایت المفتی کښې ورته جائز ویلې دی : ۹\۱۵۷ ، احسن الفتاوی : ۸۶۲)

حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی :

" والمذهب فی لبس الحمرة و الصفرة : أن المزعفر و المعصفر ممنوع عنه الرجال مطلقا ، و الحمرة و الصفرة غیرذلك ، فالفتوی علی جوازهما مطلقا ، لکن التقوی غیرذلك " (١)

دا تفصیل د تیز سور رنگ د جامو متعلق دې خو د پیکه سور رنگ جامه یا داسې جامه چه دیکښې سره تارونه وی ، بغیر د کراهته جائز دې - (٢)

امام بخاری رحمه الله د باب الثوب الاحمر لاندې چه کوم روایت ذکر کړیدې ، دینه جواز معلومیږی - خو د راس ( سر ) حکم دینه جُدا دې او د سرې توبئ په سرول بالاتفاق جائز او صحیح دې -

## ٣٦ = بَاب النِّعَالِ السِّبْتِيَّةِ وَغَيْرِهَا

[٥٥٢٣] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ سَعِيدٍ أَبِي مَسْلَمَةَ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا أَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي نَعْلَيْهِ قَالَ نَعَمْ [ر: ٣٧٩]

[٥٥٢٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ بْنِ جُرَيْجٍ أَنَّهُ قَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا رَأَيْتُكَ تَصْنَعُ أَرْبَعًا لَمْ أَرَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِكَ يَصْنَعُهَا قَالَ مَا هِيَ يَا ابْنَ جُرَيْجٍ قَالَ رَأَيْتُكَ لَا تَمَسُّ مِنْ الْأَرْكَانِ إِلَّا الْيَمَانِيَيْنِ وَرَأَيْتُكَ تَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ وَرَأَيْتُكَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ وَرَأَيْتُكَ إِذَا كُنْتَ بِمَكَّةَ أَهَلَّ النَّاسُ إِذَا رَأَوْا الْهِلَالَ وَلَمْ تُهِلَّ أَنْتَ حَتَّى كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ أَمَّا الْأَرْكَانُ فَإِنِّي لَمْ أَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمَسُّ إِلَّا الْيَمَانِيَيْنِ وَأَمَّا النِّعَالُ السِّبْتِيَّةُ فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ النِّعَالَ الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَعَرٌ وَيَتَوَضَّأُ فِيهَا فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَلْبَسَهَا وَأَمَّا الصُّفْرَةُ فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَصْبُغَ بِهَا وَأَمَّا الْإِهْلَالُ فَإِنِّي لَمْ أَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ حَتَّى تَنْبَعِثَ بِهِ رَاحِلَتُهُ [ر: ١٦٤]

[٥٥٢٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَ الْمُحْرِمُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِزَعْفَرَانٍ أَوْ وَرْسٍ وَقَالَ مَنْ لَمْ يَجِدْ نَعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا أَسْفَلَ مِنْ الْكَعْبَيْنِ [ر: ١٣٤]

[٥٥٢٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ إِزَارٌ

---

(١) الابواب و التراجم : ٢\١٠٧ ، رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی اللبس : ٦\٣٥٨ )

(٢) رد المحتار علی الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی اللبس : ٦\٣٥٨ )

فَلْيَلْبَسِ السَّرَاوِيلَ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ [ر: ۱۴۵۴]

سِبْتِيَّة (د سين په كسره د باء په سكون او د ياء مفتوحه مشدده سره) النّعال صفت دې او د سبت اصل معنى د پريكولو راځى ، نِعَال سِبتِيَّة نه د څرمنې هغه پاڼزار مراد دې چه د هغې د څرمنې نه ويخته صفا كړې شى او پاڼزار ترينه جوړ كړې شى په پخوانى زمانه كښې به د څرمنې نه د دوه قسمونو پاڼزار جوړيدو رواج وو يو به د هغه څرمنې نه جوړيدې چه د هغې نه به ويخته پاك شوې وو او پاڼزار به ترينه جوړيدلو مالدارو خلقو به داسې پاڼزار جوړولو او بل هغه قسم چه څرمنې نه به ويخته نه وو صفا شوې او دينه به پاڼزار جوړيدلو - (۱)

**د ترجمة الباب مقصد** : شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله د ترجمة الباب مقصد بيانوى او ليكى :

"وعندى أن المصنف إنما ترجم بالنعال السبتية لما يتوهم من بعض الروايات من كراهيتها ، ولما قال عبيد بن جريج كما فى رواية الباب من قوله : "لم أر أحدا يصنعها" فأشار المصنف بالترجمة إلى مشروعيتها" (۲)

يعنى سبتى پڼرو ته بعض خلقو مكروه ويلې دى (څكه چه په زمانه د جاهليت كښې د مترفينو او د عيش پسندو خلقو په استعمال كښې دا وو) د بعض روايتونو نه هم ددې كراهت وهم كيږى ، ددې قول نه هم چا ته د كراهت وهم كيدې شو - امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د دې مشروعيت بلا كراهت ته اشاره اوكړه -

د سبتى پڼرو استعمال مطلقا د جمهورو په نزد جائز دې - د امام احمد رحمه الله په نزد په قبرستان كښې د سبتى پڼرواستعمال صحيح نه دې ، مكروه دې (۳) دې د بشير بن الخصاصيه د روايت نه استدلال كوى چه امام احمد په خپل مسند كښې او امام ابوداود د بشير بن نهيك نه نقل كړيدې ، دې فرمائى : إن رسول الله صلى الله عليه و سلم رأى رجلا يمشى فى نعلين بين القبور ، فقال : يا صاحب السبتيتين : ألقهما" (۴)

(رسول الله ﷺ يو سړې د قبرونو مينځ كښې د پڼرو سره په تلو اوليدو نو وې فرمائل : اې سبتى پڼرو والا پڼړې دې اوباسه)

خو دې روايت كښې يو احتمال دا هم دې چه د ألقهما نه د پڼرو ويستل مراد نه وى بلكه په پڼرو باندې لګيدلې پليدې مراد وى - امام طحاوى رحمه الله دا احتمال ذكر كړيدې ، دا احتمال اګر چه احتمال بعيد دې خو چه د حضرت انس رضي الله عنه د صحيح حديث نه په قبرستان كښې د پڼرو سره د تللو اجازت معلوميږى چه هغې كښې دى " إن الميت يسمع قرع نعالهم ، إذا

---

۱) عمدة القارى : ۲۲\۲٤)

۲) الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۷)

۳) فتح البارى : ۱۰\۳۷۹)

۴) المسند للإمام أحمد ، مسانيد بشير بن الخصاصية : ۵\۳۸ ، سنن أبى داود ، كتاب الجنائز ، باب المشى فى النعل بين القبور ۳\۲۱۷ (رقم الحديث : ۳۲۳۰)

ولّواعنه مدبرين"(١) (مړي چه دفن کړې شي او کله ده نه خلق واپس کيږی نو دې د خلقو د پنړو اواز اوری) دې وجه نه دا تاويل شويدې -
حافظ ابن حجر يو بل احتمال هم ذکر کړيدې هغه فرمائی :

"ويحتمل أن يكون النهى لإكرام الميت، وليس ذكر السبتيتين للتخصيص، بل اتفق ذلك، و النهى إنما هو للمشى على القبور بالنعال"(٢)

يعني ممکن ده چه قبرستان کښې پنړو سره د تلو ممانعت د قبرونو والا د اکرام د وجه نه شوې وی چه د پنړو سره د قبرونو دپاسه مه ځه چه دا خلاف د ادب دې او د سبتيتين ذکر احترازی نه وی اتفاقی وی مراد ترينه هر قسم پنړې وی "

## ٣٧=بَاب يَبْدَأُ بِالنَّعْلِ الْيُمْنَى

[٥٥١٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ إِزَارٌ فَلْيَلْبَسْ السَّرَاوِيلَ وَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ نَعْلَانِ فَلْيَلْبَسْ خُفَّيْنِ [ر:١٦٦]

## ٣٨=بَاب يَنْزِعُ نَعْلَهُ الْيُسْرَى

[٥٥١٧] (٣) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِينِ وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ لِيَكُنْ الْيُمْنَى أَوَّلَهُمَا تُنْعَلُ وَآخِرَهُمَا تُنْزَعُ

په پنړو اچولو کښې ادب او سنت هم دا دې چه پنړې اچولو کښې رومبې ښئي پښه ننويستل دې او ويستو وخت کښې به ګسه پښه اوباسې ، ښئي پښه به اچولو کښې مقدم کول او په ويستو کښې موخر کول دی -

## ٣٩=بَاب لَا يَمْشِي فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ

[٥٥١٨] (٤) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ

---

١) أخرجه أبوداود فى كتاب السنة، باب فى المسألة فى القبروعذاب القبر: ٤ \ ٢٣٩ ( رقم الحديث : ٤٧٥٢)
٢) فتح البارى : ١٠ \ ٣٨٠ )
٣) الحديث أخرجه الترمذى فى كتاب اللباس ، باب ما جاء بأى رجل يبدأ إذا تنعل : ٤ \ ٢٤٤ ( رقم الحديث : ١٧٧٩ ) و أخرجه مسلم فى اللباس و الزينة ، باب استحباب ليس النعل فى اليُمنى أولا ... ٣ \ ١٦٦٠ ( رقم الحديث : ٢٠٩٧ ) و أخرجه أبوداود فى اللباس ، باب فى الإنتعال : ٤ \ ٧٠ ( رقم الحديث : ٤١٣٩ ) و أخرجه ابن ماجه فى اللباس ، باب لبس النعال و خلعها : ٢ \ ١١٩٥ ورقم الحديث : ٣٦١٦)
٤) الحديث أخرجه مسلم فى اللباس و الزينة ، باب استحباب لبس النعل فى اليُمنى أولا ..... ٣ \ ١٦٦٠ (رقم الحديث : ٢٠٩٧ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب اللباس ، باب ما جاء فى كراهية المشى فى النعل الواحدة : ٤ \ ٢٤٢ ( رقم الحديث : ١٧٧٤ ) و أخرجه أبوداود فى اللباس ، باب...[بقيه برصفحه آننده.....

أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ لِيُحْفِهِمَا جَمِيعًا أَوْ لِيُنْعِلْهُمَا جَمِيعًا

**يوه پنړه كښې ګرځيدل مكروه دى**: يو پښه كښې ئې پنړه ده او بله پښه بغير د پنړې دى ، په دې هيئت تلل مكروه دي ، ځكه چه دا د اعتدال نه لرې يو بې ډوله طريقه ده ، لباس او هيئت كښې داسې انداز اختيارول چه د خلقو سترګې ده ته متوجه شى ، ممنوع دي او ابن العربى رحمه الله فرمائى چه دا د شيطان چال دې ، دې وجه نه دا ممنوع دې - (١)

حديث د باب حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې ، فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمائلې دى چه تاسو كښې دې يو كس يو پنړه په پښو كړې نه ګرځى يا دې دواړه واچوى يا دې دواړه اوباسى -

**ليحفهما**: دا د احفاء باب افعال نه دې چه ددې معنى د پښو بربنډولو او د پنړو د ويستلو ده د أنعل معنى د پنړو د وراغوستو ده -

**د روايتونو تعارض او ددې حل** : په بعضې روايتونو كښې د رسول الله ﷺ تلل په يو پنړه كښې هم ثابت دې ، لكه حضرت عائشه رضي الله عنها نه يو روايت منقول دې "ربما مشى النبى صلى الله عليه وسلم فى نعل واحدة" او په خپله د حضرت عائشه په باره كښې روايت دې چه "إنها مشت فى خُفٍ واحد" (٢)

امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه ما د امام بخارى نه ددې حديث متعلق تپوس اوكړو نو دوى اوويل : دا حديث د حضرت عائشه نه موقوف صحيح دې ، ګويا مرفوع دوى غير صحيح اوګرځولو - (٣)

د حضرت عائشه نه علاوه د حضرت ابن عمر او د حضرت على نه هم په يو پنړه كښې ګرځيدلو روايت راغلې دې - (٤)

خو دواړو قسمو روايتونو كښې حقيقتا هيڅ تعارض نشته دې ، عام حالاتو كښې خو ادب هم دا دې چه دواړو پښو كښې دې پنړې وى يا دې دواړو كښې پنړې نه وى ، خو كُه كله د

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته] فى الإنتعال : ٤ \ ٦٩ ( رقم الحديث : ٤١٣٦ ) و أخرجه ابن ماجه فى اللباس ، باب المشى فى النعل الواحد : ٢ \ ١١٩٥ ( رقم الحديث : ٣٦١٧ )

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٣٨١ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٦)

(٢) په يو پنړه كښې تلل امام ترمذى دا نقل كړيدې - كتاب اللباس ، باب ما جاء من الرخصة فى المشى ف النعل الواحدة : ٤ \ ٢٤٤ ( رقم الحديث : ١٧٧٧ ) حضرت عائشه رضى الله عنها به هم كله كله په يو پنړه كښې ګرځيدله ، أخرجه الترمذى فى كتاب اللباس باب ما جاء من الرخصة فى المشى فى النعل الواحدة : ٤ \ ٢٤٤ ( رقم الحديث : ١٧٧٨ )

(٣) سنن الترمذى ، كتاب اللباس ، باب ما جاء من الرخصة فى المشى فى النعل الواحدة : ٤ \ ٢٤٤ ( رقم الحديث : ١٧٧٨ )

(٤) عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٦ )

څه عذر د وجه نه لږ ساعت دپاره يو پنړه كښې ګرځيدل وى نو دا هم صحيح او جائز دې مثلاً يو پنړه په لاره كښې اوشليدله ، دا ئې د جوړولو دپاره په لاس كښې واخسته او بله پنړه ئې په پښه كښې ده نو دا جائز دى - (١)

او دا هم كيدې شى چه حديث د باب كښې نهى تنزيهى وى چه د جواز سره جمع كيدې شى - (٢)

## ۴۰=بَاب قِبَالَانِ فِي نَعْلٍ وَمَنْ رَأَى قِبَالًا وَاحِدًا وَاسِعًا

[۵۵۱۹/۵۵۲۰] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ نَعْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَهَا قِبَالَانِ

[۵۵۲۰] حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ طَهْمَانَ قَالَ خَرَجَ إِلَيْنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ بِنَعْلَيْنِ لَهُمَا قِبَالَانِ فَقَالَ ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ هَذِهِ نَعْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۲۹۴۰]

قِبال ( د قاف په كسره سره ) د څپلو هغه تسمې ته وائى چه د پښې دپاسه تيره شوې او د متې او د مسواكې ګوتې په مينځ لاندې د چپل په تلى كښې لګيدلې وى ، د رسول الله ﷺ په چپلو كښې دوه تسمې لګه چه په حديث د باب كښې دى ، امام بخارى په ترجمة الباب كښې فرمائى : "ومن رأى قبالا واحدا واسعا" يعنى بعض خلق يو تسمه هم جائز ګڼړى ، واسع د جائز په معنى دې (٣) د ترجمة الباب ددې دويم جزء سره متعلق څه حديث به باب كښې نشته دې او شارح د بخارى علامه كرمانى رحمه الله فرمائى :

"دلالة الحديث على الترجمة من جهة أن النعل صادقة على مجموع ما يلبس فى الرجلين ، وأما الركن الثانى من الترجمة ، فمن جهة أن مقابلة الشئ بالشئ يفيد التوزيع ، فلكل واحد من نعل رجل قبال واحد" (٤)

ددې حاصل دا دې چه اګر چه په حديث د باب كښې د دوه تسمو ذكر دې، د يو نه دې ، خو د يو ذكر د يوې بلې مشهورې قاعدې نه معلوميږى او هغه قاعده دا ده مقابلة الشئ بالشئ يفيد التوزيع يعنى چه يو څيز د بل څيز په مقابله كښې ذكر شى نو د تقسيم او د توزيع فائده وركوى ، دې وجه نه د دوه تسمو ذكر ئې په مقابله د نعل كښې اوكړو نو د هر چپل په حصه كښې يو تسمه راغله نو دا رنګه د يو قبال ذكر ضمنا ددې حديث نه معلوميږى -

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چه د دې دويم جزء نه د امام بخارى رحمه الله هغه روايتونو ته اشاره ده چه كومو كښې د بعضې اسلافو نه د يو تسمې ذكر منقول دې ، خو دا روايات چه د امام په شرط نه وو نو دې وجه نه ئې ذكر نه كړل ، خو بيا

---

(١) فتح البارى : ۱۰\۳۸۲ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۶ )
(٢) فتح البارى : ۱۰\۳۸۱ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۶ )
(٣) فتح البارى : ۱۰\۳۸۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۶ ، شرح الكرمانى : ۲۱\۹٤ )
(٤) الأبواب والتراجم : ۲\۱۰۷ ، دارنګه اوګورئ شرح الكرمانى : ۲۱\۹٤ )

هم د امام بخاری د سیاق د ترجمه نه هم دا معلومیږی چه دې دوه تسمو له په یو باندې ترجیح ورکوی - (۱)

## ۴۱=بَاب الْقُبَّةِ الْحَمْرَاءِ مِنْ أَدَمٍ

[۵۵۲۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ وَرَأَيْتُ بِلَالًا أَخَذَ وَضُوءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ يَبْتَدِرُونَ الْوَضُوءَ فَمَنْ أَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهِ وَمَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا أَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهِ [ر:۱۸۵]

[۵۵۲۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْأَنْصَارِ وَجَمَعَهُمْ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ [ر:۲۹۷۷]

قبه گنبد او غونډی عمارت ته وائی دلته دینه غونډې مونډئ خیمه مراد ده ، أدم رنگ شوې څرمنې ته وایی - (۲)

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د کور یا د خیمې رنگ که سور وی نو څه جرم نه دې، د باب تر لاندې ئې چه کوم ړومبې حدیث رانقل کړیدې، دیکښې د "قبة حمراء من أدم" تصریح ده ، خو په بل حدیث کښې د "قبة من أدم" دې ، د حمراء تصریح نشته دې ، خو دې دویم حدیث نه هم هغه وړاندینئ قبه مراد ده ، چه کومه سره وه ، د حمراء تصریح غالبا د اختصار د وجه حضرت انس ﷺ حذف کړیده دارنگه د حدیث مناسبت د باب سره دې -

هسې هم امام بخاری رحمه الله په ادنی مناسبت سره هم حدیث راوړی ، مطلقا د قبه ذکر هم د امام بخاری رحمه الله په صنیع کښې د حدیث د باب تر لاندې ذکر کولو دپاره کافی ده - (۳)

## ۴۲=بَاب الْجُلُوسِ عَلَى الْحَصِيرِ وَنَحْوِهِ

[۵۵۲۳] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَحْتَجِرُ حَصِيرًا بِاللَّيْلِ فَيُصَلِّي عَلَيْهِ وَيَبْسُطُهُ بِالنَّهَارِ فَيَجْلِسُ عَلَيْهِ فَجَعَلَ النَّاسُ يَثُوبُونَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُصَلُّونَ بِصَلَاتِهِ حَتَّى كَثُرُوا فَأَقْبَلَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ خُذُوا مِنْ الْأَعْمَالِ مَا تُطِيقُونَ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَمَلُّ حَتَّى تَمَلُّوا وَإِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ

---

(۱) الابواب و التراجم : ۲\۱۰۷)

(۲) عمدة القاری : ۲۲ \ ۲۷ . فتح الباری : ۱۰ \ ۳۸۵ . ارشاد الساری : ۱۲ \ ۵۶۳)

(۳) ارشاد الساری: ۱۲ \ ۵۶۵ .فتح الباری: ۱۰ \ ۳۸۵ ، شرح الکرمانی : ۲۱ \ ۹۵ ،عمدة القاری : ۲۲ \ ۲۷)

إِلَى اللَّهِ مَا دَامَ وَإِنْ قَلَّ [ر:٦٩٢]

دې باب کښې په پوزي وغيره باندې د ناستې ذکر دې ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله په دې ترجمه سره د هغه روايت ضعف ته اشاره کوى چه په کومه کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها نه تپوس اوشو چه آيا نبى کريم ﷺ په پوزې باندې مونځ به کولو حال دا دې چه د حصير (پوزى) متعلق خو قرآن کريم فرمائى (وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا) نو حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائل رسول الله ﷺ په پوزى به مونځ نه کولو - (١)

امام بخارى په دې باب سره د دې روايت ضعيف کيدو ته اشاره کړيده - (٢)

يَحْتَجِرُ حَصِيرًا : د احتجار معنى ده أى يتخذ حجرة لنفسه...... حجرت الأرض و احتجرتها دا هغه وخت ويلې کيږى چه کله په څه ځائې باندې نخه اولګولې شى او د ځان دپاره خاص کړې شى او نور د دينه بند کړې شى - (٣)

رسول الله ﷺ به د شپې د پوزى حجره جوړه کړه او مونځ به ئې کولو او د ورځې به ئې دا خوره او په دې باندې به کښيناستو ، خلقو به رسول الله ﷺ ته رجوع کوله او دوى سره به ئې مونځ کولو ، چه کله د دوى تعداد زيات شو نو دوى متوجه شو او وې فرمائل (دا هغه واقعه ته اشاره ده چه کله دوى د تراويح مونځ په رمضان کښې په پوزى په حجره کښې کولو او د اصحابو مجمع زياتيدل شروع شوې وو) " هغه عملونه اختيار کړې چه د کومې د ستاسو طاقت وى خکه چه الله تعالى په ثواب ورکولو نه ستړې کيږى چه تر څو تاسو په عمل نه ئې زړه تنګې شوې او د الله تعالى په نزد بهتر عمل هغه دې چه هغه هميشه اوکړې شى ، اګر چه لږ وى -

## ٤٣ = بَابُ الْمُزَرَّرِ بِالذَّهَبِ

[٥٥٢٣] وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ أَبَاهُ مَخْرَمَةَ قَالَ لَهُ يَا بُنَيَّ إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَتْ عَلَيْهِ أَقْبِيَةٌ فَهُوَ يَقْسِمُهَا فَاذْهَبْ بِنَا إِلَيْهِ فَذَهَبْنَا فَوَجَدْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَنْزِلِهِ فَقَالَ لِي يَا بُنَيَّ ادْعُ لِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَعْظَمْتُ ذَلِكَ فَقُلْتُ أَدْعُو لَكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا بُنَيَّ إِنَّهُ لَيْسَ بِجَبَّارٍ فَدَعَوْتُهُ فَخَرَجَ وَعَلَيْهِ قَبَاءٌ مِنْ دِيبَاجٍ مُزَرَّرٌ بِالذَّهَبِ فَقَالَ يَا مَخْرَمَةُ هَذَا خَبَأْنَاهُ لَكَ فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ [ر:٢٤٥٩]

مُزَرَّر : د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده يعنى هغه جامې چه ديکښې د سرو زرو تنړۍ لګيدلې وې - زرّر الثوب : أى شدّه بالأزرار : تنړۍ ترل - الإزار ، د زِرّ (په کسره د زاء) جمع

---

(١) فتح البارى : ١٠\٣٨٦ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٨)

(٢) الابواب و التراجم : ٢\١٠٧ ، فتح البارى : ١٠\٣٨٦ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٨)

(٣) فتح البارى : ١٠\٣٨٦ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٨ ، شرح الکرمانى : ٢١\٩٦)

ده تنړئ ته وائي ، علامه انور شاه کشمیری رحمه الله فرمائي چه زر د ټکړې تنړئ او پتيئ او مزی ته وائي(١)

داسې جامه او لباس چه دیکښې د سروزرو تنړئ لګیدلې وی دا د احنافو حضراتو په نزد د سرو دپاره جائز دې ، صاحب د درمختار وغیره هم دا لیکلې دی (٢) اګر چه مفتی اعظم حضرت مفتی کفایت الله صاحب دیته ناجائز ویلي دی (٣) حضرت تهانوی رحمه الله ړومبې د جواز او بیا د عدم جواز فتوی ورکړیده - (٤)

حدیث د باب کښې دی چه دوی ﷺ یو صحابی ته د ریښمو چغه ورکړه چه دیکښې د سروزرو تنړئ وی ، ډا خو یا د سړو د ریښمو د لباس د حرمت نه وړاندې واقعه ده ، او یا په ورکولو سره ئې مقصد په خپله د استعمالولو نه وو بلکه د دوی د کور د زنانه دپاره دوی ﷺ ورکړې وه - (٥)

## ۴۴=بَابِ خَوَاتِيمِ الذَّهَبِ

[٥٥٢٥] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ قَالَ سَمِعْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ نَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ سَبْعٍ نَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ أَوْ قَالَ حَلْقَةِ الذَّهَبِ وَعَنْ الْحَرِيرِ وَالْإِسْتَبْرَقِ وَالدِّيبَاجِ وَالْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ وَالْقَسِّيِّ وَآنِيَةِ الْفِضَّةِ وَأَمَرَنَا بِسَبْعٍ بِعِيَادَةِ الْمَرِيضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ وَرَدِّ السَّلَامِ وَإِجَابَةِ الدَّاعِي وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَنَصْرِ الْمَظْلُومِ [ر:١١٨٢]

[٥٥٢٦] (١) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ نَهَى عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَقَالَ عَمْرٌو أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعَ النَّضْرَ سَمِعَ بَشِيرًا مِثْلَهُ

[٥٥٢٧] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ وَجَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ فَاتَّخَذَهُ النَّاسُ فَرَمَى بِهِ وَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ أَوْ فِضَّةٍ [ر:٥٥٢٨، ٥٥٢٩، ٥٥٣٥، ٥٥٣٨، ٦٢٧٥، ٦٨٦٨]

---

(١) فیض الباری : ٣٧٧٤)
(٢) الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی اللبس : ٥\٢٥٠)
(٣) کفایت المفتی "لباداور متعلقات لباس" ٩\١٥٧)
(٤) إمداد الفتاوی ، کتاب الحظر و الإباحة ، احکام متعلقة لباس : ٤\١٢٩ ، ١٣٠ ، ١٣١)
(٥) فتح الباری : ١٠\٣٨٧ ، شرح الکرمانی : ٢١\٩٧ ، إرشاد الساری : ١٢\٥٦٧)
(٦) الحدیث أخرجه مسلم فی اللباس و الزینة باب تحریم خاتم الذهب علی الرجال ( رقم الحدیث : ٢٠٨٩ ) و أخرجه النسائی فی کتاب الزینة ، باب خاتم الذهب : ٥\٤٤١ ( رقم الحدیث : ٩٤٦٨ )
(٧) الحدیث أخرجه البخاری أیضا فی هذا الکتاب ، باب خاتم الفضة ( رقم الحدیث : ٥٥٢٨ ، ٥٥٢٩ ) و أخرجه أیضا فی باب نقش الخاتم ( رقم الحدیث : ٥٥٣٥ ) و أخرجه أیضا فی باب...[بقیه برصفحه آئنده....

خواتیم: جمع د خاتم ده ، خاتم کښې څلور لغتونه دي ، ① خاتَم ( په فتحه د تاء ) ② خاتِم (په کسره د تاء ) ③ خیتام ④ خاتام

**د سرو زرو د ګوتې حکم** :د سرو دپاره د سروزرو د ګوتې استعمال د څلورو واړو امامانو او جمهورو په نزد ناجائز او حرام دی - (۱) حدیث تیر شویدې ، دوی فرمائلي دی سره زر او ریښم څما د امت د سړو دپاره حرام دي ، اګر چه بعض عالمانو ددې په حرمت باندې اجماع رانقل کړیده ، خو بیا هم دابن حزم او د اسحاق بن راهویه په نزد دا حرام نه دی ، بلکه مباح دی (۲) بعضې عالمانو ورته مکروه تنزیهی ویلې دې (۳) رسول الله ﷺ د حرمت د حکم د نازلیدو نه وړاندې د سرو زرو ګوته اچولې وه - (۴)

## ۴۵=بَاب خَاتِمِ الْفِضَّةِ

[۵۵۲۸\۵۵۲۹]حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ وَجَعَلَ فَصَّهُ مِمَّا يَلِي كَفَّهُ وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ فَاتَّخَذَ النَّاسُ مِثْلَهُ فَلَمَّا رَآهُمْ قَدْ اتَّخَذُوهَا رَمَى بِهِ وَقَالَ لَا أَلْبَسُهُ أَبَدًا ثُمَّ اتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ فَاتَّخَذَ النَّاسُ خَوَاتِيمَ الْفِضَّةِ قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَلَبِسَ الْخَاتَمَ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ ثُمَّ عُمَرُ ثُمَّ عُثْمَانُ حَتَّى وَقَعَ مِنْ عُثْمَانَ فِي بِئْرِ أَرِيسَ

**د سپينو زرو د ګوتې حکم** :د جمهورو فقهاءو په نزد د سپينو زرو د ګوتې استعمال د سړو دپاره جائز دې - (۵) بعض عالمانو دا د عامو خلقو دپاره مکروه وئيلې دې ، خو د بادشاه او د قاضي وغيره دپاره دا بغير د کراهته جائز ده - (۶) دا حضرات د أبوريحانه د روايت نه

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] من جعل قص الخاتم فى بطن كفه ( رقم الحديث : ۶۲۷۵ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الأيمان و النذور ، باب من حلف على الشئ و إن لم يحلف ( رقم الحديث : ۶۲۷۵ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة ، باب الإقتداء بأفعال انبى صلى الله عليه وسلم ( رمق الحديث : ۶۸۶۸) و أخرجه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم خاتم الذهب على الرجال ( رقم الحديث : ۲۰۹۱ )

(۱) شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس : ۲\۱۹۵ و أوجز المسالك فى اللباس ، باب ما جاء فى لبس الخاتم : ۱۴\۳۵۳ )

(۲) شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس : ۲\۱۹۵ و أوجز المسالك فى اللباس ، باب ما جاء فى لبس الخاتم : ۱۴\۳۵۳ )

(۳) أوجز المسالك فى اللباس ، باب ما جاء فى لبس الخاتم : ۱۴\۳۵۳ )

(۴) شرح الزرقانى : كتاب الجامع ، باب ما جاء فى لبس الخاتم : ۴\۳۱۷ )

(۵) فتح البارى : ۱۰\۳۹۱ ، عمدة القارى : ۲۲\۳۰ )

(۶) أوجز المسالك فى اللباس ، باب ما جاء فى لبس الخاتم : ۱۴\۳۵۴ شرح زرقانى كتاب الجامع ، باب ماجاء فى لبس الخاتم : ۴\۳۱۸ )

استدلال کوی چه دا امام احمد رانقل کړیدي " إن رسول الله صلی الله علیه و سلم نهی عن الخاتم إلا لذی سلطان "(١) او د سنن ابی داود په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ د لسو څیزونو نه منع کړیده ، چه دیکښې یو "لبوس الخاتم إلا لذی سلطان " دې -(٢)

جمهور خو یو د حدیث د باب نه استدلال کوی دویم په سنن ابی داود کښې د حضرت بریده ﷺ د روایت نه هم استدلال کوی چه هغې کښې دی :" إن رجلاً جاء الی النبی ﷺ وعلیه خاتم من شبه ، فقال له : مالی اجد منك ریح الأصنام ، فطرحه ، ثم جاء وعلیه خاتم من حدید وفقال : مالی أری علیك حلیة أهل النار ؟ فطرحه ، فقال : یا رسول الله ! من أی شئ أتخذه ؟ قال : إتخذه من ورق ، ولا تتمه مثقالا " (٣) ( رسول الله ﷺ ته یو سړې راغلو او ده په لاس کښې د پیتلو یو گوته وه ، حضور اوفرمائل : څه خبره ده چه ما ته د ستا نه د بُتانو بدبوئی راځی ، ده دغه گوته اوغورزوله ، چه بیا راغلو نو ده سره د اوسپنې گوته وه ، نو حضور اوفرمائل : څه خبره ده چه ما ته په تا باندې د جهنمیانو زیور په نظر راځی ، نو ده دا هم اوغورزوله او تپوس ئې اوکړو ، اې د الله رسوله ! څه دا د څه څیز نه جوړه کړمه ؟ دوی اوفرمائل : د سپینو زرو خو چه د یو مثقال نه کمه وی )

تر کومې چه د ابوریحانه د روایت تعلق دې نو دیته امام مالك او امام احمد وغیره غوندې محدثینو ضعیف ویلې دې (٤) او که دا صحیح هم تسلیم کړې شی نو دیکښې به نهی په کراهت تنزیهی محمول وی چه د جواز سره جمع کیدې شی - (٥)

خو د سپینو زرو مقدار د یو مثقال نه کم کیدل پکار دی یعنی د څلور نیمو ماشو نه زیات نه دی کیدل پکار ، لکه چه په حدیث کښې دی "ولا تتمه مثقالا " چه دا په دې تصریح ده (٦) روایت د باب کښې دی چه رسول الله ﷺ د سروزرو یا د سپینو زرو گوته جوړه کړې وه او ددې غمې به ئې د تلی په طرف ساتلو ، دیکښې " محمد رسول الله " لیکلي شوې وو خلقو هم داسې گوتې جوړې کړې چه کله دوی خلقو لره اولیدل ، نو دا ئې اوغورزوله ، او وې فرمائل : چه څه به دا نه اغوندم ، بیا ئې د سپینو زرو گوته جوړه کړه نو خلقو هم د سپینو زرو گوتې جوړول شروع کړل ..... د حضرت ابن عمر بیان دې چه د حضور ﷺ نه پس دا گوته حضرت ابوبکر بیا حضرت عمر او بیا حضرت عثمان ﷺ واغوستله بیا دا د حضرت عثمان نه د اریس په کوهی کښې اوغورزیدله -

---

(١) مسند احمد : ٤\١٣٤ )
(٢) سنن أبی داود ، اللباس ، باب من کراهه ( أی لبس الحریر ) : ٤\٤٨ ( رقم الحدیث : ٤٠٤٩)
(٣) سنن ابی داود کتاب الخاتم ، باب ما جاء فی خاتم الحدید : ٤\٩٠ ( رقم الحدیث : ٤٢٢٣ )
(٤) شرح الزرقانی للموطأ للإمام مالک : ٤\٣١٨ ، أوجز المسالک فی اللباس ، باب ما جاء فی لبس الخاتم : ١٤\٣٥٥ )
(٥) أوجز المسالک فی اللباس ، باب ما جاء فی لبس الخاتم : ١٤\٣٥٥)
(٦) عون المعبود ، کتاب الخاتم ، باب ما جاء فی خاتم : ١١\٢٨٢ )

یو روایت کښې دی چه شپږو کالو پورې د حضرت عثمان سره وه ، دینه پس په کوهی کښې اوغورزیدله او د ډیر تلاش سره هم ملاو نه شوه - ([1])

## باب بلا ترجمة

[۵۵۲۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ فَنَبَذَهُ فَقَالَ لَا أَلْبَسُهُ أَبَدًا فَنَبَذَ النَّاسُ خَوَاتِيمَهُمْ [ر: ۵۵۲۷]

[۵۵۳۰] ([2]) حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ رَأَى فِي يَدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ يَوْمًا وَاحِدًا ثُمَّ إِنَّ النَّاسَ اصْطَنَعُوا الْخَوَاتِيمَ مِنْ وَرِقٍ وَلَبِسُوهَا فَطَرَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمَهُ فَطَرَحَ النَّاسُ خَوَاتِيمَهُمْ تَابَعَهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ وَزِيَادٌ وَشُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ ابْنُ مُسَافِرٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ أُرَى خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ

دا باب بلا ترجمه ده ، علامه عینی رحمه الله فرمائي چه دا باب کالفصل من الباب السابق یعنی دا باب د تیر شوی باب تتمه ده - ([3])

**د روایتونو تعارض او ددې حل** : شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله فرمائی : چه امام بخاری په دې خبره تنبیه کول غواړی چه رسول الله ﷺ د خلقو سره ګوتې اولیدلې او دوی کومه ګوته غورزولې وه نو چه دا د سرو زرو وه او که د سپینو زرو ؟ ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دوه روایتونه ذکر کړی دی ، په یو کښې دی چه د سرو وه او په بل کښې دی چه د سپینو وه -

① د دې اطمینان ورکوونکې جواب خو دا ورکړې شویدې چه دا ګوته د سرو وه ، چه په کوم روایت کښې د سپینو ذکر دې دا د ابن شهاب زهری وهم دې ، ځکه چه نورو تمامو ثقه راویانو د سرو ذکر کړیدې - ([4])

② دویم جواب دا دې چه د باب دویم روایت کښې "فطرح رسول الله خاتمه ، فطرح الناس خواتیمهم " نه مراد د سرو زرو ګوتې مراد دی یعنی خلقو د سپینو زرو ګوتې جوړې کړې او د سرو زرو ګوتې ئې اوغورزولې ، د دې تاویل مطابق " خاتم مطروح " په دواړو روایتونو کښې د سرو دی ، دې وجه نه د سره هډو تعارض نشته دې امام نووی رحمه الله فرمایی " هذا هو التأویل الصحیح " ([5]) خو سیاق د کلام د دې تاویل سره سمون نه خوری ، ځکه چه سیاق د

---

[1]) فتح الباری : ۱۰\۳۹۲)

[2]) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب اللباس و الزینة،باب فی طرح الخواتم:۳\۱۶۵۷(رقم الحدیث: ۲۰۳۹)

[3]) عمدة القاری : ۲۲\۲۹)

[4]) عمدة القاری : ۲۲\۳۱ ، فتح الباری : ۱۰\۳۹۲ ، إرشاد الساری : ۱۲\۵۷۱)

[5]) شرح مسلم للنووی : ۲\۱۹۷)

كلام كښې د " اصطنعوا الخواتيم من ورق و لبسوها " تصريح ده چه خلقو د سپينو زرو ګوتې اچولې وې، نوظاهره ده چه "مطروح" به هم دا وى ، سياق د كلام كښې د سرو ذكر نشته دې

④ دريم جواب دا وركړې شويدې چه د سرو زرو او د سپينو زرو دواړه قسمه ګوتې اوغورزولې شوې ، د سرو زرو ګوته د نزرل د حرمت نه پس اوغورزولې شوه نو خلقو هم په اتباع كښې اوويستلې ؛ بيا حضور د سپينو ګوته واچوله او په ديكښې ئې د خپل نوم مبارك نقش جوړ كړو نو خلقو هم د دوى په اتباع كښې داسې منقش ګوتې د سپينو زرو جوړې كړې ، خو د نقش اجازت چه نه وو ، دې وجه نه حضور ﷺ چه د خلقو سره دا اوليدلې نو خپله ګوته ئې اوويستله ، خلقو هم اوويستلې ، دينه پس بيا دوى د مهر وغيره لګولو په غرض واغوسته -

د دې توجيه حاصل دا دې چه دسرو زرو ګوته هم دوى ويستې وه د سرو زرو د حرمت په وجه او د سپينو زرو ګوته هم دوى ويستې وه ، په دې وجه چه خلق هم د سپينو زرو نقشدارې ګوتې اوباسى ، په رومبى روايت كښې د رومبئې خبرې او په دويم روايت كښې د دويمې واقعې ذكر دې ، لكه حافظ ابن حجر ليكى :

" ويحتمل وجها رابعا ..... وهوأنه اتخذ خاتم الذهب للزينة فلما تتابع الناس فيه ، و افق وقوع تحريمه ، فطرحه ، ولذلك قال : " لا ألبسه أبدا " و طرح الناس خواتيمهم تبعا له ، و صرح بالنهي عن لبس خاتم الذهب كما تقدم في الباب قبله ، ثم احتاج إلى الخاتم لأجل الختم به ، فاتخذه من فضة ، و نقش فيه اسمه الكريم فتبعه أيضا في ذلك ، فرمى به حتى رمى الناس تلك الخواتيم المنقوشة على اسمه لئلا تفوت مصلحة نقش اسمه بوقوع الاشتراك ، فلما عدمت خواتيمهم برميها رجع إلى خاتمه الخاص به فصار يختم به ، ويشير إلى ذلك قوله في رواية عبد العزيز بن صهيب عن أنس : " إنا اتخذنا خاتما و نقشنا فيه نقشا ، فلا ينقش عليه أحد " ، فلعل بعض من لم يبلغه النهي أو بعض من بلغه ممن لم يرسخ في قلبه الإيمان من منافق و نحوه اتخذوه ، و نقشوا ، فوقع ما وقع ، ويكون طرحه له غضبا ممن تشبه به في ذلك النقش (۱)

**قوله: تابعه إبراهيم بن سعد ، و زياد و شعيب عن الزهري :** يعنى د يونس متابعت ابراهيم ، زياد بن سعد او شعيب بن ابى حمزه كړيدې ، د ابراهيم متابعت امام مسلم ، د زياد متابعت هم امام مسلم او د شعيب متابعت اسماعيلى موصولا نقل كړيدې - (۲)

**قوله: و قال ابن المسافر عن الزهري : أرى خاتما من ورق :** عبدالرحمن بن خالد بن مسافر د زهرى نه چه كوم روايت نقل كړيدې ، ديكښې هم د " أرى خاتما من ورق " الفاظ راغلې دى ، دا تعليق اسماعيلى موصولاً نقل كړيدې ، خو د اسماعيلى په روايت كښې د " أرى " لفظ نشته دې ، دا امام بخارى رحمه الله د خپل اړخ نه زيات كړيدې ، دړى

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۳۹۳)

۲) فتح البارى : ۱۰\۳۹۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۳۲ ، إرشاد السارى : ۱۲\۵۷۱)

يعنى دوى اوويل چه خما خيال دې چه دا ګوته د سپينو زرو وه د سرو زرو نه وه - (1)

## ۴۶= باب فص الخاتم

[۵۵۳۱] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ هَلِ اتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا قَالَ أَخَّرَ لَيْلَةً صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى شَطْرِ اللَّيْلِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ خَاتَمِهِ قَالَ إِنَّ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا وَنَامُوا وَإِنَّكُمْ لَمْ تَزَالُوا فِي صَلَاةٍ مَا انْتَظَرْتُمُوهَا [ر: ۵۴۶]

[۵۵۳۲] (2) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ حُمَيْدًا يُحَدِّثُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ خَاتَمُهُ مِنْ فِضَّةٍ وَكَانَ فَصُّهُ مِنْهُ وَقَالَ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ حَدَّثَنِي حُمَيْدٌ سَمِعَ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۵۵۳۶، ۵۵۳۹، وانظر: ۵۴۶]

فَصّ د ګوتې غمې ته وائى ، دويم روايت كښې د فص په صراحت سره ذكر دې او په ړومبې روايت كښې په صراحت سره ددې ذكر نشته خو ديكښې دى " فكأني أنظر إلى وبيص خاتمه " حضرت انس ﷺ فرمائى ګويا څه د دوى د ګوتې ړرق ته ګورم ، وبيص ړرق ته وائى ، او غالب هم دا دې چه دا د غمى ړرق وو ، نو دارنګه په ړومبې روايت كښې هم د فص ذكر دلالتا راغلو-(3)

**قوله: كان خاتمه من فضة، وكان فصّه منه:** د باب په دې دويم روايت كښې دى چه د دوى د ګوتې غمې هم د سپينو زرو وو د منه ضمير خاتم ته راجع دې -

د مسلم په روايت كښې دى "وكان فصّه حبشيًا حجرًا من الحبشة" (4) يعنى غمى د خبشى كاڼړى نه جوړ شوې وو ، دسپينو زرو نه وو ، دا خو به يا په تعدد ( ګڼړو كيدو ) محمول كړې شى چه د دوى ﷺ دوه ګوتې وې ، چه د يوې غمې د سپينو زرو وو او د بلې د حبشى كاڼړى وو او دا هم كيدې شى چه غمې د سپينو زرو وو لكه چه د بخارى په روايت كښې دى ، خو دا

---

1) فتح البارى : ١٠\٤٩٤ ، عمدة القارى : ٢٢\٣٢ ، إرشاد السارى : ١٢\٥٧١ )

2) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب اللباس ،باب الخاتم فى الخنصر ( رقم الحديث : ٥٥٣٦ ) و أخرجه أيضا فى كتاب اللباس ، باب قول النبى صلى الله عليه و سلم : لا يُنقش على نقش خاتمه ( رقم الحديث : ٥٥٣٩ ) و أخرجه مسلم فى كتاب اللباس ، باب لبس النبى صلى الله عليه وسلم خاتما من ورق نقشه : محمد رسول الله ، و لبس الخلفاء له من بعده : ٣\١٦٥٦ ( رقم الحديث : ٢٠٩٢ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة ، باب ذكر الاختلاف على أنس فى فص خاتم النبى صلى الله عليه وسلم و صفته و موضعه من يده : ٥\٤٥١ ( رقم الحديث : ٩٥١٧ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب اللباس ، باب ما جاء ما يستحب فى فص الخاتم : ٤\٢٢٧ ( رقم الحديث : ١٧٤٠ )

3) الابواب و التراجم : ٢\١٠٨ )

4) صحيح مسلم، كتاب اللباس والزينة، باب فى خاتم الورق فصه حبشى، ٣\١٦٥٨ (رقم الحديث : ٢٠٩٤)

د حبشي نقش و نګار او دول مطابق جوړه شوې وه ، دې وجه نه دېته حبشي اوويلې شوه(۱)

**قوله:** وقال يحي بن أيوب: حدثني حميد سمع أنسا عن النبي صلى الله عليه وسلم: بره موصول حديث کښې " حميد عن انس " عنعنه دې ، دې تعليق کښې د سماع تصريح ده ، دې وجه نه امام دلته دا ذکر کړو - (۲)

## ٤٧- بَاب خَاتَمِ الْحَدِيدِ

[٥٥٣٣] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ سَهْلًا يَقُولُ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ جِئْتُ أَهَبُ نَفْسِي فَقَامَتْ طَوِيلًا فَنَظَرَ وَصَوَّبَ فَلَمَّا طَالَ مُقَامُهَا فَقَالَ رَجُلٌ زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ يَكُنْ لَكَ بِهَا حَاجَةٌ قَالَ عِنْدَكَ شَيْءٌ تُصْدِقُهَا قَالَ لَا قَالَ انْظُرْ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ وَاللَّهِ إِنْ وَجَدْتُ شَيْئًا قَالَ اذْهَبْ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ قَالَ لَا وَاللَّهِ وَلَا خَاتَمًا مِنْ حَدِيدٍ وَعَلَيْهِ إِزَارٌ مَا عَلَيْهِ رِدَاءٌ فَقَالَ أُصْدِقُهَا إِزَارِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِزَارُكَ إِنْ لَبِسَتْهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْكَ مِنْهُ شَيْءٌ وَإِنْ لَبِسْتَهُ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا مِنْهُ شَيْءٌ فَتَنَحَّى الرَّجُلُ فَجَلَسَ فَرَآهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَلِّيًا فَأَمَرَ بِهِ فَدُعِيَ فَقَالَ مَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ قَالَ سُورَةُ كَذَا وَكَذَا لِسُوَرٍ عَدَّدَهَا قَالَ قَدْ مَلَّكْتُكَهَا بِمَا مَعَكَ مِنْ الْقُرْآنِ [ر:٢١٨٦]

**د اوسپنې د ګوتې حکم :** د اوسپنې ګوته په ائمه اربعه کښې د جمهورو يعنی د احنافو ، مالکيه او د حنابله په نزد مکروه ده (۳) او د امام شافعی رحمه الله د صحيح قول مطابق بغير د کراهته جائز ده - (۴)

امام شافعی رحمه الله د حديث د باب نه استدلال کوی ، د امام بخاری رحمه الله د صنيع نه هم دا معلوميږی چه دې مسلك د اباحت ته ترجيح ورکوی ، حديث د باب کښې دی " اذهب فالتمس ولو خاتما من حديد " -

خو دا استدلال صحيح نه دې ، ځکه چه د اوسپنې د ګوتې د تلاش حکم ورکولو نه د دې د سړو دپاره د استعمالولو د جواز هيڅ دلالت نه معلوميږی ، دې وجه نه حافظ ابن حجر هم دا استدلال رد کړيدې او فرمائی :

" استدل به على جواز لبس خاتم الحديد ، ولا حجة فيه ، لأنه لا يلزم من جواز الإتخاذ جواز اللبس ، فيحتمل

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۳۹۶ ، إرشاد السارى : ۱۲\۵۷۲ . دا رنګه اوګورئ بذل المجهود ، کتاب الخاتم : ۱۷\۱۰۵ ، الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۸ )

۲) فتح البارى : ۱۰\۳۹۶ . إرشاد السارى : ۱۲\۵۷۲ )

۳) إرشاد السارى : ۱۲\۵۷۳ . الابواب والتراجم : ۲\۱۰۸ )

۴) الابواب و التراجم : ۲\۱۰۸ ، إرشاد السارى : ۱۲\۵۷٤ ، عون المعبود ، کتاب الخاتم ، باب ما جاء فی خاتم الحديد : ۱۱\۲۸۳ )

أنه أراد وجوده لتنتفع المرأة بقيته" (۱)

① جمهور يو خو د سنن ابى داود د هغه روايت نه استدلال كوى چه كوم څو صفحې وړاندې نقل كړې شو چه يو سړى سره د اوسپنې ګوته وه ، نو دوى ﷺ چه اوليدله نو وې فرمائل :" مالى أرى عليك حلية أهل النار" ددې په سند باندې امام نووى وغيره اعتراض كړيدې چه ديكښې يو راوى ابو طيبه عبد الله بن مسلم مروزى دې ، دې قابل د احتجاج نه دې (۲)
ابوحاتم فرمائى چه يكتب حديثه ولا يحتج به (۳)
خو علامه عينې رحمه الله فرمائى چه ابن حبان دده حديث رانقل كړيدې او دا ئې صحيح ګرځولې دې - (۴)

② د جمهورو دويم استدلال مسند احمد كښې د عبد الله بن عمرو بن العاص روايت نه دې ، چه دوى د سرو زرو ګوته اچولې وه نو رسول الله ﷺ ديته د ناخوښتيا په نظر اوكتل نو دوى دا اوويستله او د اسپنې ګوته ئې واچوله نو دوى ﷺ اوفرمائل :" هذا أخبث و أخبث" يعنى دا خو نوره هم زياته بده ده - (۵)
د دې روايت په سند كښې عبد الله بن مؤمل يو ضعيف راوى دې - (۶)
مسند احمد كښې داسې يو بل روايت د حضرت فاروق اعظم نه هم مروى دې - (۷)
بهرحال اګرچه ددې روايتونو په سند باندې كلام شته خو بيا هم كه دا د شواهدو د وجه نه په درجه د صحيح كښې نه وى هم خو د حسن په درجه كښې خو راځى ، چه كوم د كراهت ثابتولو دپاره كافى دې - (۸)

## ۴۸= بَاب نَقْشِ الْخَاتَمِ

[۵۵۳۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَادَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى رَهْطٍ أَوْ أُنَاسٍ مِنَ الْأَعَاجِمِ فَقِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لَا يَقْبَلُونَ كِتَابًا إِلَّا عَلَيْهِ خَاتَمٌ فَاتَّخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ فَكَأَنِّي بِوَبِيصِ أَوْ بِبَصِيصِ الْخَاتَمِ فِي إِصْبَعِ النَّبِيِّ

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۳۹۷)
(۲) إرشاد السارى : ۱۲\۵۷٤)
(۳) عمدة القارى : ۲۲\۳۳، دارنګه اوګورئ، عون المعبود ، كتاب الخاتم ، باب ما جاء فى خاتم الحديد : ۱۱\۲۸۳)
(۴) عمدة القارى : ۲۲\۳۳)
(۵) مسند احمد : ۲\۲۱۱)
(۶) عمدة القارى : ۲۲\۳۳)
(۷) مسند احمد : ۲\۲۱ و لفظه ذا شر منه)
(۸) الابواب و التراجم : ۲\۱۰۸)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْفِي كَفِّهِ [ر:٦٥]

[٥٥٣٥] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ اتَّخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ وَكَانَ فِي يَدِهِ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِي يَدِ أَبِي بَكْرٍ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِي يَدِ عُمَرَ ثُمَّ كَانَ بَعْدُ فِي يَدِ عُثْمَانَ حَتَّى وَقَعَ بَعْدُ فِي بِئْرِ أَرِيسَ نَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ [ر:٥٥٢٧]

ددې ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد په ګوته کښې د نقش کولو جواز بيانول دی ، ځکه چه د نقش و نګار کولو د ممانعت خيال په زړه کښې راتلې شی ، شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمه الله ليکی :

"والظاهر عندی أنه أراد بيان جوازه لأن النقش مظنة المنع" (١)

په حديث د باب کښې د وَبِيص او د بَصِيص د دواړو معنی د پړقيدو ده -

## ٤٩= بَابُ الْخَاتَمِ فِي الْخِنْصَرِ

[٥٥٣٦] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاتَمًا قَالَ إِنَّا اتَّخَذْنَا خَاتَمًا وَنَقَشْنَا فِيهِ نَقْشًا فَلَا يَنْقُشَنَّ عَلَيْهِ أَحَدٌ قَالَ فَإِنِّي لَأَرَى بَرِيقَهُ فِي خِنْصَرِهِ [ر:٥٥٣٢]

**ګوتمه په کومه ګوته کښې اچول پکار دی** : رسول الله ﷺ به په کچې ګوته کښې ګوتمه اچوله ، د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه په نورو ګوتو کښې دې وانچولې شی ، امام مسلم او ابوداود رحمهما الله د حضرت علی رضی الله عنه نه روايت نقل کړيدې ، چه دې فرمائی :

"نهانی رسول الله صلی الله علیه و سلم عن أن ألبس خاتمی فی هذه و فی هذه ، يعنی السبابة و الوسطی" (٢)

(حضرت علی فرمائی رسول الله ﷺ په مسواکه ګوته او په مينځمئ ګوته کښې د ګوتمې اچولو نه څه منع کړې ووم -)

امام نووی رحمه الله فرمائی چه ددې حديث د وجه نه په مينځمئ ګوته او دې سره نزدې ګوته کښې ګوتمه اچول مکروه دی - (٣)

علامه مناوی په شرح د شمائل کښې په کچئ ګوته کښې ګوتمه اچولو باندې اجماع رانقل کړيده - (٤)

---

(١) الأبواب و التراجم : ١٠٨/٢ )

(٢) رواه مسلم فی کتاب اللباس و الزينة ، باب النهی عن التختم فی الوسطی و التی تليها : ١٦٥٩/٣ ( رقم الحديث : ٢٠٢٨ ) و أخرجه أبوداود فی کتاب الخاتم ، باب ما جاء فی خاتم الحديد : ٩٠/٤ ( رقم الحديث : ٤٢٢٥ )

(٣) شرح مسلم للنووی فی کتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم خاتم الذهب الخ : ١٩٧/٢ )

(٤) شرح الشمائل للمناوی ، باب ماجاء فی تختم رسول الله صلی الله علیه و سلم : ١٤٩/١ )

د مينځمئ او د مسواكې ګوتې باره كښې خو د حضرت على رضي الله عنه په مذكوره حديث كښې صراحتًا نهى راغلې ده ، خو د كچئ ګوتې سره چه كومه ګوته ده ( بنصره يعنى وزيره ) د دې او د متې ګوتې باره كښې نه نفى شته او نه اثبات ! ([1])

**په كوم لاس كښې ګوته اچول پكار دى؟:** اوس دا خبره پاتې كيږى چه په ښې لاس كښې اچول پكار دى او كه په ګس لاس كښې ، امام بخارى رحمه الله دې باره كښې هيڅ باب نه دې قائم كړې ، خو امام ابوداود رحمه الله " كتاب الخاتم " كښې په دې مستقل باب قائم كړيدې "باب ما جاء فى التختم فى اليمين أو اليسار"

ددې باب لاندې دوى رومبې د حضرت على رضي الله عنه روايت رانقل كړيدې چه هغې كښې دى : "إن النبى ﷺ كان يتختم فى يمينه" دينه پس ئې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت رانقل كړيدې چه ديكښې دى "إن النبى ﷺ كان يتختم فى يساره" ([2])

ددې متعارض روايتونو په بناء باندې صاحب د فتح الودود فرمائى چه ښى او ګس دواړو لاسونو كښې د رسول الله ﷺ نه ګوته اچول ثابت دى ، كله به ئې په ښى لاس كښې او كله به ئې په ګس لاس كښې اچوله - ([3]) امام بيهقى فرمائې چه د سرو زرو ګوته به دوى په ښى لاس كښې او د سپينو زرو ګوته به ئې په ګس لاس كښې اچوله - ([4])

د شافعيه حضراتو په نزد په ښې لاس كښې اچول افضل دى ، ځكه چه ګوتمه اچول زينت دې او ښې لاس د زينت زيات حقدار دې - ([5]) او ګس لاس د استنجاء دپاره استعماليږى نو د ګوتمې د نجس كيدو خطره به وى - ([6])

علامه مناوى په شرح شمائل كښې ليكلې دى چه د ښې لاس والا روايتونه د نهو اصحابو نه منقول دى او د ګس لاس والا روايتونه د درې اصحابو نه - ([7]) د احنافو حضراتو او د مالكيه او د حنابله په نزد په ګس لاس كښې اچول افضل دى - ([8])

---

[1]) عون المعبود : ۱۱ \ ۲۸۶ ، المرقاة شرح المشكاة ، كتاب اللباس ، باب الخاتم : ۸ \ ۲۷۵ ، جمع الوسائل : باب ما جاء فى تختم رسول الله صلى الله عليه و سلم : ۱ \ ۱۴۹ )

[2]) سنن أبى داود ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى التختم فى اليمين أو اليسار : ۴ \ ۹۱ ( رقم الحديث : ۴۲۲۶ ، ۴۲۲۷ )

[3]) بذل المجهود ، كتاب الخاتم ، باب ما جاء فى التختم فى اليمين او اليسار : ۱۷ ؛ ۱۱۸ )

[4]) شعب الإيمان للبيهقى ، باب فى الملابس و الأوانى : ۵ \ ۲۰۳ ، عون المعبود كتاب الخاتم ، باب ما جاء فى التختم فى اليمين أو اليسار : ۱۱ \ ۲۸۶ )

[5]) شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب تحريم خاتم الذهب ... ۲ \ ۱۹۷ ، عون المعبود ، كتاب الخاتم ، باب ما جاء فى التختم فى اليمين أو اليسار : ۱۱ \ ۲۸۷ )

[6]) عون المعبو . كتاب الخاتم ، باب ما جاء فى التختم فى اليمين أو اليسار : ۱۱ \ ۲۸۷ ، فتح البارى : ۱۰ \ ۴۰۱ )

[7]) شرح الشمائل للمناوى ، باب ماجاء فى تختم رسول الله صلى الله عليه و سلم : ۱ \ ۱۵۰ )

[8]) بذل المجهود : ۱۷ \ ۱۱۹ ، الأبواب و التراجم : ۲ \ ۱۰۸ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۳۷ )

ملاعلى قارى رحمه الله په " جمع الوسائل شرح شمائل " كښې د امام مالك نه قول په استحباب د يسار او په كراهت د يمين رانقل كړيدې - (۱) په مالكيه كښې علامه دسوقى هم يسار ته سنت ويلې دې لأنه آخر الفعلين عن رسول الله صلى الله عليه و سلم(۲) د دې تائيد د ابن عدى د دې روايته هم كيږى چه كوم د ابن عمر نه ده په ضعيف سند سره رانقل كړيدې "إن النبى ﷺ تختم فى يمينه، ثم حوّله إلى يساره" (۳)

مولانا خليل احمد سهارنپورى او حضرت مولانا رشيد احمد گنگوهى رحمهما الله فرمائى چه احناف عالمان گس لاس كښې د گوتې اچولو نه اوس منع كوى ځكه چه گس لاس كښې د گوتمې استعمال اوس د روافضو شعار او علامت گرځيدلې دې او د اهل بدعتو سره تشبيه صحيح نه ده ، دې وجه نه ښى لاس كښې اچول پكار دى - (۴)

خو درمختار كښې ليكلې دى چه ښى لاس كښې د گوتمې اچول د روافضو شعار دې و دې وجه دينه بچ كيدل پكار دى (۵) ، په اصل كښې دا د زمانې او د عرف اختلاف دې ، د حضرت گنگوهى وغيره په زمانه كښې په گس لاس كښې او د صاحب د درمختار په زمانه كښې په ښى لاس كښې د گوتمې اچولو د روافضو شعار وو ، دې وجه نه د اهل بدعتو سره د تشبه نه هر يو منع كړيده پس كه تشبه نه وى نو د احنافو په نزد په گس لاس كښې اچول افضل او اولى دى - (۶)

امام ترمذى رحمه الله د امام بخارى رحمه الله په باره كښې فرمائى چه دوى د عبدالله بن جعفر روايت ته "أصح فى الباب" ويلې دې او ديكښې د تخـتم فى اليمين " ذكر دې - (۷)

## ۵۰=بَاب اتِّخَاذِ الْخَاتَمِ لِيُخْتَمَ بِهِ الشَّيْءُ أَوْ لِيُكْتَبَ بِهِ إِلَى أَهْلِ الْكِتَابِ وَغَيْرِهِمْ

[۵۵۳۷] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَكْتُبَ إِلَى الرُّومِ قِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لَنْ يَقْرَءُوا كِتَابَكَ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَخْتُومًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ وَنَقْشُهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ فَكَأَنَّمَا أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِهِ فِي يَدِهِ [ر: ۶۵]

---

۱) جمع الوسائل فى شرح الشمائل ، باب ما جاء فى تخـتم رسول الله صلى الله عليه و سلم : ۱\۱۴۹)
۲) الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۸)
۳) فتح البارى : ۱۰\۴۰۰ ، الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۸)
۴) الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۸ ، بذل المجهود : ۱۷\۱۱۹ ، الكوكب الدرى : ۲\۴۴۸ )
۵) الدر المختار ، كتاب الحظر و الإباحة ، فصل فى اللبس : ۵\۲۵۴ )
۶) الدر المختار ، كتاب الحظر و الإباحة ، فصل فى اللبس : ۵\۲۵۴ )
۷) جامع الترمذى و كتاب اللباس وباب ماجاء فى لبس الخاتم فى اليمين: ۴\۲۲۹ ( رقم الحديث : ۱۷۴۴)

دې باب كښې د مهر لګولو او اهل كتاب وغيره ته د خط ليكلو دپاره د ګوتمې جوړولو بيان دې - د سفر د حديبيې نه واپس راتلو نه پس رسول الله ﷺ مختلف باچايانو ته او حاكمانو ته د دعوتى خطونو ليږلو اراده اوكړه نو دغه وخت دوى ته معلومه شوه چه حاكمان د مهر نه بغير خط ته هيڅ اهميت نه وركوى - دې وجه نه په دې خطونو د حضورﷺ مهر لګول ضرورى دې ، د دې ضرورت په وجه دوى ﷺ ګوته كښې خپل مهر جوړ كړو ، د سپينو زرو ګوته ئې جوړه كړه چه ددې په غمې كښې " محمد رسول الله " ليكلې شوې وو ، بعض وائي چه دا په شپږم كال د هجرت او بعضو په اووم كال د هجرت دا واقعه ګرځولې ده ، خو دواړو كښې تطبيق داسې كيدې شى چه دا د شپږم كال د آخر او د اووم كال د ابتداء واقعه ده - (١)

دينه يو دا خبره هم معلوميږى چه دعوتى او تبليغى كارونو كښې د نورو قومونو د رواج او د طريقو رعايت كولو كښې هم څه باك نشته دې ، په دې شرط چه ديكښې څه شرعى قباحت نه وى -

## ٥١= بَاب مَنْ جَعَلَ فَصَّ الْخَاتَمِ فِي بَطْنِ كَفِّهِ

[٥٥٣٩] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ حَدَّثَهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصْطَنَعَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ وَجَعَلَ فَصَّهُ فِي بَطْنِ كَفِّهِ إِذَا لَبِسَهُ فَاصْطَنَعَ النَّاسُ خَوَاتِيمَ مِنْ ذَهَبٍ فَرَقِيَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ فَقَالَ إِنِّي كُنْتُ اصْطَنَعْتُهُ وَإِنِّي لَا أَلْبَسُهُ فَنَبَذَهُ فَنَبَذَ النَّاسُ قَالَ جُوَيْرِيَةُ وَلَا أَحْسِبُهُ إِلَّا قَالَ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى [ر: ٥٥٣٢]

د ګوتې غمې دننه تلى طرف ته ساتلې كيدې شى دې دپاره چه دا واضحه شى چه دا ګوته د مهر وغيره دپاره اغوستې شويده ، د زينت دپاره نه ده اغوستې شوې ، د حضور ﷺ عام معمول هم دا دې اګر چه د غمې بهر طرف ته ساتل هم جائز دى - (٢)

روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ د سرو زرو ګوته جوړه كړې وه، چه كله به دوى دا اغوسته نو ددې غمې به ئې تلى طرف ته ساتلو ...... بيا دوى په منبر اوختل او د حمد و ثناء نه پس ئې اوفرمائل چه ما دا ګوته جوړه كړې وه خو اوس به دا نه اغوندم ( چه سرو دپاره د سرو زرو د استعمال د حرمت حكم راغلو ) نو دوى دا ګوته اوويستله

**قوله**: قَالَ جويرية : ولا أحسبه إلا قال : في يده اليمنى : دا د ماقبل سند سره موصول دې ، جويريه بن اسامه فرمائى چه د نافع په باره كښې خما دا خيال دې چه دوى د " في يده اليمنى الفاظ " هم ويلې وو ، يعنى دا ګوته به د دوى ﷺ په ښى لاس كښې وه ، صحيح بخارى كښې صرف هم دا يو روايت دې چه ديكښې د " يمنى " ذكر دې ، باقى په يو روايت

---

(١) فتح البارى : ١٠\٣٩٩ ، الابواب والتراجم : ٢\١٠٨ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٣٩٩ ، عمدة القارى : ٢٢\٣٦ ، شرح البخارى للكرمانى ، ٢١\١٠٤ ، شرح البخارى لابن بطال : ٩\١٣٦ )

كښي هم د يمنى يسرى ذكر نشته دي - ([1])

## ۵۲: باب قول النبي صلى الله عليه وسلم لا ينقش على نقش خاتمه

[۵۵۳۹] حدثنا مسدد حدثنا حماد عن عبد العزيز بن صهيب عن أنس بن مالك رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم اتخذ خاتما من فضة ونقش فيه محمد رسول الله وقال إني اتخذت خاتما من ورق ونقشت فيه محمد رسول الله فلا ينقشن أحد على نقشه [ر: ۵۵۳۲]

رسول الله ﷺ په خپله ګوته کښې د " محمد رسول الله " نقش جوړ کړې وو او دا ارشاد ئې فرمائلې وو چه بل څوك به دا نقش نه جوړوی . دا ګوته مهر هم وو ، دې وجه نه ئې خلق منع کړې وو چه چرته التباس او خلل واقع نه شی - ([2])

په ګوته کښې د خپل نوم يا د ذکر يا د حکمت يو خبره نقش کول جائز دی او د سلفو معمول هم پاتې شويدې حضرت عبد الله بن عمر ﷺ په ګوته کښې د خپل نوم نقش کړې وو ، حضرت حذيفه او ابوعبيده " الحمد لله " ليکلې وو ، حضرت علی ﷺ " الله الملك " ابراهيم نخعی " بالله " حضرت مسروق " بسم الله " ليکلې وو - ([3])

د بعض حضراتو نه د کراهت قول منقول دې ځکه چه که داسې څه ذکر يا د الله تعالى نوم اوليکلې شی نو جنبی او حائضه به ديته لاس لګوی او د استنجاء کولو په وخت به دې پورې د نجاست لګيدو ويره وی ، دې وجه نه ديته مکروه ويلې شويدی ګنې فی نفسه بالاتفاق دا جائز دې ، دې وجه نه چه په کومو ځايونو کښې د بې عزتئ ويره وی نو ګوته دې اوويستلې شی او دا يو بهتر کار دې - ([4])

## ۵۳= باب هل يجعل نقش الخاتم ثلاثة أسطر

[۵۵۴۰] حدثني محمد بن عبد الله الأنصاري قال حدثني أبي عن ثمامة عن أنس أن أبا بكر رضي الله عنه لما استخلف كتب له وكان نقش الخاتم ثلاثة أسطر محمد سطر ورسول

---

[1]) عمدة القاری : ۲۲\۳۶ ، فتح الباری : ۱۰\۴۰۰ )

[2]) فتح الباری : ۱۰\۴۰۰ ، ( او آيا د دوی صلی الله عليه وسلم د زمانې نه پس په ګوته باندې داسې نقش جوړول جائز دی او که نه ؟ علامه عينی فرمائی " فإن قلت : نهيه صلى الله عليه و سلم أن ينقش مثل نقشه خاص بحياته أو يعم ذلك حياته و بعدها . قلت : الظاهر الأول ، و يدل عليه لبس الخلفاء الخاتم بعده ثم جدد عثمان خاتما آخر بعد وقوع ذلك الخاتم فی بئر أريس ، و نقش عليه ذلك النقش " . عمدة القاری : ۲۲\۳۸ )

[3]) فتح الباری : ۱۰\۴۰۲ )

[4]) فتح الباری : ۱۰\۴۰۲ ، عمدة القاری : ۲۲\۳۴ ، او علامه ابن عابدين فرمائی چه " فلو نقش اسمه تعالى او اسم نبيه صلى الله عليه وسلم استحب أن يجعل الفص فی كمه إذا دخل الخلاء و أن يجعله فی يمينه إذا استنجى " رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی اللبس : ۵\۲۵۴ )

سَطْرٌ وَاللَّهِ سَطْرٌ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَزَادَنِي أَحْمَدُ حَدَّثَنَا الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَدِهِ وَفِي يَدِ أَبِي بَكْرٍ بَعْدَهُ وَفِي يَدِ عُمَرَ بَعْدَ أَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ جَلَسَ عَلَى بِئْرِ أَرِيسَ قَالَ فَأَخْرَجَ الْخَاتَمَ فَجَعَلَ يَعْبَثُ بِهِ فَسَقَطَ قَالَ فَاخْتَلَفْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مَعَ عُثْمَانَ فَنَزَحَ الْبِئْرَ فَلَمْ يَجِدْهُ [ر: ٢٩٣٩]

رسول الله ﷺ چه د " محمد رسول الله " کوم نقش جوړ کړې وو ، هغه په درې کرخو کښې وو يو کرخه کښې " محمد " او په بله کښې " رسول " او په دريمه کښې " الله " وو -

د بعض حضراتو نه منقول دی چه برنۍ رومبنۍ کرخه کښې " الله " دويمه کښې " رسول " او په آخره دريمه کرخه کښې " محمد " ليکلې شوې وو ، داسې :




خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی :" فلم أر التصريح بذلك فی شيء من الأحاديث ، بل رواية الإسماعيلی يخالف ظاهرها ذلك ، فإنه قال فيها : محمد سطر ، و السطر الثانی رسول ، و السطر الثالث الله "(١)

حافظ ابن حجر فرمائی په احاديثو کښې ما ته داسې څه تصريح ملاو نه شوه بلکه د اسماعيلی د روايت نه په ظاهره ددې خلاف معلوميږی ، ځکه چه ديکښې دی ، محمد يو کرخه کښې دې او دويمه کرخه کښې رسول دې او دريمه کښې لفظ د الله دې )

د باب بل روايت کښې دی چه دحضور ﷺ دا گوته د حضرت فاروق اعظم نه پس د حضرت عثمان سره وه ، دوی يو ورځ د اريس کوهی سره ناست وو او دا گوته ئې راويستې وه او دې سره ئې لوبې کولې چه دا د ده نه اوغورزيدله ، حضرت انس ﷺ فرمائی چه مونږ د حضرت عثمان سره درې ورځو پورې کوشش کولو ، ددې کوهی ټولې اوبه مو رااوويستلې خو دا گوته ملاو نه شوه -

علامه مناوی په شرح شمائل کښې ليکی : "وكان فی خاتم المصطفى شيء من الأسرار كما كان فی خاتم سليمان ، لأن سليمان لما فقد خاتمه ذهب ملكه ، وعثمان لما فقد الخاتم ، انتقض عليه الأمر ، فكان مبدأ الفتنة التی أفضت إلى قتله ، واتصلت إلى آخر الزمان "(٢)

يعنی د رسول الله ﷺ په گوته کښې څه راز وو ، چه څنگه د سليمان عليه السلام په گوته کښې راز وو. چه کله دا روکه شوه نو ددوی حکومت ختم شو ، د حضرت عثمان نه هم چه

---

(١) فتح البارى : ١٠\٤٠٣ ، ٤٠٤ )

(٢) شرح الشمائل للمناوی ، باب ما جاء فی ذكر خاتم رسول الله صلى الله عليه و سلم : ١\١٤٦ )

کله د حضور دا گوته روکه شوه نو معاملات خراب شو او د هغې فتنې ابتداء اوشوه چه د دوی قتل ته اورسیدله او تر آخر د زمانې پورې به جاری وی "
ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د حدیث د باب نه یو خبره دا معلومیږی چه کُه لږ مال هم روک شی نو ددې تلاش کښې کوشش کول پکار دی -
حضرت عائشه رضي الله عنها امیل روک شوې وو نو حضور ددې تلاش کړې وو - (١)
روایت کښې دی " یعبث به " علامه کرمانی فرمائی چه گوتمه ئې په گوته کښې تاووله ، کله به ئې ویستله او کله به ئې اچوله " عبث " نه هم دا مراد دې (٢) انسان چه کله په یو معامله کښې فکر مند وی او په سوچ او په غور کښې مشغول وی نو عموما هم داسې کوی ، دا د وقار خلاف نه ده ، حافظ ابن حجر فرمائی -
" وإنما كان كذلك، لأن من مثلهم إنما ينشأ عن فكر، وفكرتهم إنما هي في الخير " (٣)
یو خبره دا هم معلومه شوه چه د څه څیز د روکیدو نه پس ددې دې درې ورخو پورې تلاش اوکړی او بیا دینه پس تلاش پریږدی نو دا جائز دی او داسې کس ته به لاپرواه نه وائی -
اودا هم معلومه شوه چه د صالحانو آثار او د دوی لباس په طور دتبرك استعمالولې شي (٤)

## ٥٤= بَابُ الْخَاتَمِ لِلنِّسَاءِ وَكَانَ عَلَى عَائِشَةَ خَوَاتِيمُ ذَهَبٍ

[٥٥٣١] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا شَهِدْتُ الْعِيدَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى قَبْلَ الْخُطْبَةِ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَزَادَ ابْنُ وَهْبٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ فَأَتَى النِّسَاءَ فَجَعَلْنَ يُلْقِينَ الْفَتَخَ وَالْخَوَاتِيمَ فِي ثَوْبِ بِلَالٍ [ر: ٩٨]

دې باب کښې د ښځو د گوتې اچولو بیان دې ، د حضرت عائشه رضي الله عنها سره د سرو زرو گوتې وې ، روایت د باب کښې حضرت ابن عباس فرمائی ، چه څه د نبی کریم صلى الله عليه وسلم سره د اختر په مانځه کښې موجود ووم ، دوی د خطبې ویلو نه وړاندې مونځ اوکړو او د ابن وهب په واسطه سره دا اضافه هم نقل ده ، چه دوی صلى الله عليه وسلم ښځو ته ورغلل دوی ته ئې د صدقې او د خیرات کولوترغیب ورکړونوښځودحضرت بلال په جامو کښې گوتې او سلایانې راغورزولې
الفتخ ( د فاء او د تاء د فتحه سره ) جمع د فتخة ده سلائی بې غمی او بې د گوله ساده گوتې ته وائی ( چه کومه د کچۍ گوتې سره نزدې گوته کښې اغوستې کیږی ) شارحینو ددې تشریح کښې لیکلې دی : وهي الخواتيم التي تلبسها النساء في أصابع الرجلين وقيل : الخواتيم التي لا فصوص لها، وقيل : الخواتيم الكبار (٥)

---

(١) شرح صحیح البخاری لابن بطال : ٩\١٣٧ ، فتح الباری : ١٠\٤٠٤ )
(٢) شرح صحیح البخاری للکرمانی : ٢١\١٠٥ ، فتح الباری : ١٠\٤٠٤ ، عمدة القاری : ٢٢\٣٩ )
(٣) فتح الباری : ١٠\٤٠٤ )
(٤) ١٠٤ ) فتح الباری : ١٠\٤٠٤ )
(٥) فتح الباری : ١٠\٤٠٥ ، إرشاد الساری : ١٢\٥٨٠ )

یعنی دینه هغه ګوتې مراد دی چه ښځې ئې د پښو په ګوتو کښې اچوی ، بعضو ویلې دی دینه بغیر د غمی والا ګوته مراد ده او یو قول دا هم دې چه دینه غمې ګوتې مراد دی

## ۵۵=بَابُ الْقَلَائِدِ وَالسِّخَابِ لِلنِّسَاءِ يَعْنِي قِلَادَةً مِنْ طِيبٍ وَسُكٍّ

[۵۵۴۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ عِيدٍ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلُ وَلَا بَعْدُ ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ فَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَتِ الْمَرْأَةُ تَصَدَّقُ بِخُرْصِهَا وَسِخَابِهَا _ [ر: ۹۸]

قلائد جمع د قلادة ده ، هار ( امیل ) ته وائی ، سخاب ( د سین په کسره او د خاء په تخفیف سره ) د ملغلرو نه علاوه چه د لونګو وغیره نه جوړ شوې امیل وی چه دا ماشومان استعمالوی ، ([1]) بعضو ددې ترجمه په کړو سره کړیده - امام بخاری رحمه الله ددې په تفسیر کښې فرمائی قلادة من طیب وسك یعنی د خوشبو او د مشکو وغیره نه جوړ شوې امیل ، سُك ( د سین په ضمه او دکاف په تشدید سره ) د خوشبو نوم دې ([2])
خُرص ( د خاء په ضمه او د راء په سکون سره ) مُندرو ته وائی - ([3])

## ۵۶=بَابُ اسْتِعَارَةِ الْقَلَائِدِ

[۵۵۴۳] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ هَلَكَتْ قِلَادَةٌ لِأَسْمَاءَ فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَلَبِهَا رِجَالًا فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَيْسُوا عَلَى وُضُوءٍ وَلَمْ يَجِدُوا مَاءً فَصَلَّوْا وَهُمْ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ التَّيَمُّمِ زَادَ ابْنُ نُمَيْرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ اسْتَعَارَتْ مِنْ أَسْمَاءَ [ر: ۳۲۷]
امیل او زیورات وغیره عاریتًا د استعمال دپاره اغستې شی لکه چه حضرت عائشه د حضرت اسماء امیل اخستې وو

## ۵۷=بَابُ الْقُرْطِ لِلنِّسَاءِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ أَمَرَهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّدَقَةِ فَرَأَيْتُهُنَّ يَهْوِينَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَحُلُوقِهِنَّ
[۵۵۴۴] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدًا عَنْ

---

[1]) عمدة القاری : ۲۲\۳۹ ، إرشاد الساری : ۱۲\۵۸۱ )
[2]) إرشاد الساری : ۱۲\۳۸۱ ، عمدة القاری : ۲۲\۳۹ )
[3]) فتح الباری : ۱۰\۴۰۶ ، عمدة القاری : ۲۲\۴۰ ، إرشاد الساری : ۱۲\۵۸۱ )

ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى يَوْمَ الْعِيدِ رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلَتِ الْمَرْأَةُ تُلْقِي قُرْطَهَا_[ر:۹۸]

قُرط (د قاف په ضمه او د راء په سکون) مُندرو او والو ته وائی (۱)

## ۵۸=بَابُ السِّخَابِ لِلصِّبْيَانِ

[۵۵۳۵] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا وَرْقَاءُ بْنُ عُمَرَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سُوقٍ مِنْ أَسْوَاقِ الْمَدِينَةِ فَانْصَرَفَ فَانْصَرَفْتُ فَقَالَ أَيْنَ لُكَعُ ثَلَاثًا ادْعُ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ فَقَامَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ يَمْشِي وَفِي عُنُقِهِ السِّخَابُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ هَكَذَا فَقَالَ الْحَسَنُ بِيَدِهِ هَكَذَا فَالْتَزَمَهُ فَقَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ وَأَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُ وَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَمَا كَانَ أَحَدٌ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ بَعْدَ مَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَالَ [ر:۲۰۱۶]

روايت د باب كښې د " لكع " معنى د ماشوم ده (۲) فقال النبی صلی الله علیه وسلم بیده هکذا ، فقال الحسن بیده هکذا : رسول الله ﷺ دواړو لاسونو سره اشاره اوکړه يعنى دواړه لاسونه ئې د غاړې ورکولو دپاره خواره کړل - حضرت حسن هم دواړه لاسونه خواره کړل او دوی ته ورتر غاړه وتلو -

## ۵۹=بَابُ الْمُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ بِالرِّجَالِ

[۵۵۳۶] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُتَشَبِّهِينَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَاءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتِ مِنَ النِّسَاءِ بِالرِّجَالِ تَابَعَهُ عَمْرٌو أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ

روايت د باب كښې دى چه رسول الله ﷺ په هغه سړو لعنت كړيدې چه كوم د ښځو په شان شكل جوړوى او په هغه ښځو ئې لعنت كړيدې چه كوم د سړو په شان صورت اختياروى - يعنى د لباس او د زينت چه كوم څيزونه د ښځو سره خاص دى ، هغه سړو لره اختيارول نه

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۴۰۶ ، عمدة القارى : ۲۲\۴۰ ، إرشاد السارى : ۱۲\۵۸۱)

۲) إرشاد السارى : ۱۲\۵۸۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۴۱)

۳) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب اللباس ، باب لباس النساء : ۴\۶۰ ( رقم الحديث : ۴۰۹۷) و أخرجه الترمذى فى كتاب الأدب ، باب ما جاء فى المتشبهات بالرجال من النساء : ۵\۱۰۵ ( رقم الحديث : ۲۷۸۴ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب النكاح ، باب فى المخنثين : ۱\۶۱۴ ( رقم الحديث : ۱۹۰۴ )

دى پكار . او داسې چه كوم هينت او طريقې د سړو سره خاص دى هغه اختيارول ښځو لره صحيح نه دى . داسې د خبرو او د تلو حكم هم دې ، هو كه څوك په پيدايش كښې دارنګه مشابهت اولرى نو چه دا غير اختيارى دې دې وجه نه دا په دې وعيد كښې داخل نه دې (١)

د باب په آخر كښې د عمرو بن مرزوق متابعت ابونعيم موصولا نقل كړيدې - (٢)

## ٦٠- بَابُ إِخْرَاجِ الْمُتَشَبِّهِينَ بِالنِّسَاءِ مِنْ الْبُيُوتِ

[٥٥٤٧] (٣) حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِينَ مِنْ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنْ النِّسَاءِ وَقَالَ أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ قَالَ فَأَخْرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُلَانًا وَأَخْرَجَ عُمَرُ فُلَانًا_[ر:٦٤٤٥]

[٥٥٤٨] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ أَنَّ عُرْوَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَفِي الْبَيْتِ مُخَنَّثٌ فَقَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ أَخِي أُمِّ سَلَمَةَ يَا عَبْدَ اللَّهِ إِنْ فَتَحَ اللَّهُ لَكُمْ غَدًا الطَّائِفَ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى بِنْتِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هَؤُلَاءِ عَلَيْكُنَّ.

قَالَ أَبُو عَبْد اللَّهِ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ يَعْنِي أَرْبَعَ عُكَنٍ بَطْنِهَا فَهِيَ تُقْبِلُ بِهِنَّ وَقَوْلُهُ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ يَعْنِي أَطْرَافَ هَذِهِ الْعُكَنِ الْأَرْبَعِ لِأَنَّهَا مُحِيطَةٌ بِالْجَنْبَيْنِ حَتَّى لَحِقَتْ وَإِنَّمَا قَالَ بِثَمَانٍ وَلَمْ يَقُلْ بِثَمَانِيَةٍ وَوَاحِدُ الْأَطْرَافِ وَهُوَ ذَكَرٌ لِأَنَّهُ لَمْ يَقُلْ ثَمَانِيَةُ أَطْرَافٍ [ر:٤٠٦٩]

د باب ړومبى روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ مخنث سړو سره او د سړو د شكل په شان خان جوړوونكو ښځو باندې لعنت كړيدې او فرمائى چه دوى د خپلو كورونو نه اوباسئ ، رسول الله ﷺ فلانى لره او حضرت عمر فلانى لره ويستې وو -

**المترجّلات** : په زور د سړو سره مشابهت جوړوونكې ښځې ، رسول الله ﷺ چه كوم سړې ويستلې وو د ده نوم انجشه وو او حضرت عمر چه څوك ويستې وو د هغه نوم مانع وو - (٤)

---

١) فتح البارى : ١٠\٤٠٨ ، إرشاد السارى : ١٢\٥٨٣ ، عمدة القارى : ٢٢\٤١ )

٢) فتح البارى : ١٠\٤٠٩ ، عمدة القارى : ٢٢\٤١ ، إرشاد السارى : ١٢\ ٥٨٣ )

٣) ٥٥٤٧ ) الحديث أخرجه البخارى ايضا فى كتاب الحدود ، باب نفى أهل المعاصى و المخنثين ( رقم الحديث : ٦٤٤٥ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب الأدب ، باب ما جاء فى المتشبهات بالرجال من النساء : ٥\ ١٠٦ ( رقم الحديث : ٧٧٨٥ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى الحكم فى المخنثين : ٤\٢٨٢ ( رقم الحديث : ٤٩٣٠ ) و أخرجه النسائى فى كتاب عشرة النساء ، باب لعن المتبرجات من النساء : ٥\ ٣٩٦ ( رقم الحديث : ٩٣٥١ )

٤) إرشاد السارى : ١٢\٥٨٣ ، حافظ ابن حجر د هغه كس نوم ذكر كړيدې ...[بقيه برصفحه آئنده....

د باب دويم حديث كتاب النكاح ، باب ما ينهى من دخول المتشبهين بالنساء على المرأة او كتاب المغازى، باب غزوة الطائف كښې تير شويدي

## ٦١ = بَاب قَصِّ الشَّارِبِ

وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُحْفِي شَارِبَهُ حَتَّى يُنْظَرَ إِلَى بَيَاضِ الْجِلْدِ وَيَأْخُذُ هَذَيْنِ يَعْنِي بَيْنَ الشَّارِبِ وَاللِّحْيَةِ

[٥٥٤٩] (١) حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ حَنْظَلَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ أَصْحَابُنَا عَنِ الْمَكِّيِّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنَ الْفِطْرَةِ قَصُّ الشَّارِبِ [ر: ٥٥٥١، ٥٥٥٣، ٥٥٥٤]

[٥٥٥٠] (٢) حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَا عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً الْفِطْرَةُ خَمْسٌ أَوْ خَمْسٌ مِنَ الْفِطْرَةِ الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَنَتْفُ الْإِبْطِ وَتَقْلِيمُ الْأَظْفَارِ وَقَصُّ الشَّارِبِ [ر: ٥٥٥٢، ٥٩٣٩]

د لباس نه د فارغيدو نه پس امام بخارى رحمه الله دې ځائې نه متعلقات د لباس بيانوى ، د بريتو اخستل . د نوكونو اخستل وغيره د لباس متعلقات دى - (٣)

**د بريتو اخستو طريقه او حكم** حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه خپل بريت به دومره تراشل چه د خرمنې سپين والې به ښكاريدو او د ګيرې او د بريتو په مينځ كښې به ئې هم ويخته اخستل -

امام طحاوى رحمه الله د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا اثر موصول نقل كړيدې - (٤)

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]چه كوم سړې رسول الله صلى الله عليه و سلم ويستلې وو خو چه كوم سړې حضرت عمر رضي الله عنه ويستې وو د هغه باره كښې ابن حجر فرمائى : " و لم أقف فى شىء من الروايات على تسمية الذى أخرجه عمر " فتح البارى : ١٠\١١٠ . علامه عينى هم دا فرمائلې دى : عمدة القارى : ٢٢\٤٢)

(١) الحديث أخرجه البخارى ايضا فى كتاب اللباس ، باب تقليم الأظفار ( رقم الحديث : ٥٥٥١ ، ٥٥٥٣ ) و فى باب إعفاء اللحى ( رقم الحديث : ٥٥٥٤ )

(٢) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى هذا الكتاب ، باب تقليم الأظفار ( رقم الحديث : ٥٥٥٢ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الاستيذان ، باب الختان بعد الكبر و نتف الإبط ( رقم الحديث : ٥٩٣٩ ) و اخرجه مسلم فى كتاب الطهارة ، باب خصال الفطرة ، ١\٢٢١ ( رقم الحديث : ٢٥٧ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب اللباس ، باب فى أخذ الشارب : ٤\٨٤ ( رقم الحديث : ٤١٩٨ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة ، باب الفطرة : ٥\٤٠٦ ( رقم الحديث : ٩٢٨٩ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الطهارة ، باب الفطرة : ١\١٠٨ ( رقم الحديث : ٢٩٢ )

(٣) فتح البارى : ١٠\١١٠ ، عمدة القارى : ٢٢\٤٣ )

(٤) شرح معانى الآثار للطحاوى ، كتاب الكراهية ، باب حلق الشارب : ٢\٣٦٨ )

بريت د شونډو په اړخونو کښې چه کوم ځائې ختميږی د دې او د ګيرې مينځ په حصه کښې چه کوم ويخته دی دا به هم حضرت ابن عمر رضي الله عنه قينچی کول -

د باب دويم حديث په سند کښې دې چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت بيانوی ، د روايتًا بيانول نه مراد مرفوعًا بيانول دی - (۱) چه پنځه څيزونه فطرت دی سنتول ، د نامه نه لاندې ويخته خريل ، د ترخ ويخته ويستل ، نوکونه اخستل ، او د بريتو قينچې کول -

من الفطرة ، علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی : "أی من السنة القديمة التی اختارها الأنبياء عليهم السلام ، اتفقت عليها الشرائع ، فكأنها أمر جبلی فطروا عليه" (۲) يعنی دا يو پخوانې سنت دې چه دا ټولو پيغمبرانو اختيار کړيدې ، او چه په دې تمام شريعتونه متفق دي ، ګويا دا يو فطری طبيعت دې چه دوی په دې سره پيدا شوی دی -

د استحداد معنی ده حديد يعنی پاکی استعمالول ، د نتف اصل معنی ويستل او راکښل راځې . د ترخ ويخته په لاسونو سره ويستل پکار دی ، خو کُه چا ته دې سره تکليف وی نو په پترى (بليډ) وغيره سره ئې هم صفا کولې شی ، مقصد د ويختو لرې کول دی (۳)

په بريتونو اخستو کښې سنت دا دې چه دا په قينچې وغيره سره دومره نرى نرى واخستې شی چه څرمن په نظر راشی ، پترى (بليډ) سره بريتونه بالکل صفا کولو ته بعضې عالمانو بدعت او مکروه ويلې دی (۴) خو د احنافو په نزد جائز دی - (۵) د بريتو د تراشلو په باره کښې حديث د باب کښې د "قصّ" لفظ راغلې دې ، راتلونکې باب کښې د حضرت ابن عمر په حديث کښې د "أحفوا الشوارب" الفاظ دی دينه وړاندې باب کښې د "انهكوا الشّوارب" الفاظ دی . د صحيح مسلم په روايت کښې د "جزّوا الشّوارب" الفاظ دی - (۶)

إحفاء او د نهك معنی ده په تراشولو او قينچې کولو کښې ښه مبالغه کول د "جز" معنی ده ويخته داسې اخستل چه څرمن په نظر راشی (۷)...... د دې تمامو الفاظو حاصل دا دې چه

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۴۱۳ . عمدة القاری : ۲۲\۴۵ . إرشاد الساری : ۱۲\۵۸۶ )

۲) إرشاد الساری : ۱۲\۵۸۶ )

۳) فتح الباری : ۱۰\۴۲۲ . إرشاد الساری : ۱۲\۵۸۷ . علامه عينی فرمائی "فإن حلقه فقد خالف السنة" عمدة القاری : ۲۲\۴۵ )

۴) أوجز المسالک . کتاب اللباس . باب ما جاء فی السنة فی الفطرة : ۱۴\۲۳۱ . شرح الزرقانی علی الموطاء للإمام مالک . کتاب اللباس . باب ما جاء فی السنة فی الفطرة : ۴\۲۸۷ . الأبواب و التراجم : ۲\۱۰۹ . فتح القدير . کتاب الحج . باب الجنايات : ۲\۴۴۶ )

۵) شرح مسلم للنووی . کتاب الطهارة . باب خصال الفطرة : ۱\۱۲۹ . أوجز المسالک . کتاب اللباس . باب ما جاء فی السنة فی الفطرة : ۱۴\۲۳۲ . حاشية ابن عابدين . کتاب الحج . باب الجنايات : ۲\۲۲۲ . فتح القدير . کتاب الحج . باب الجنايات : ۲\۴۴۶ )

۶) صحيح مسلم . کتاب الطهارة . باب خصال الفطرة : ۱\۲۲۲ ( رقم الحديث : ۲۶۰ )

۷) فتح الباری : ۱۰\۴۲۵ . أوجز المسالک . کتاب اللباس . باب ما جاء فی السنة فی الفطرة : ۱۴\۲۳۲)

بريت په قينچى كول پكار دى خو په پاكئ سره بالكل د بيخه صفا كول نه دى پكار، امام مالك په پاكئ سره بالكل صفا كولو ته مثله ويلې ده [1]، د شوافع او حنابله په نزد هم په قينچئ وغيره سره تراشل افضل دى - [2]

## ۶۳= بَاب تَقْلِيمِ الأَظْفَارِ

[۵۵۵۰] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ ابْنُ أَبِي رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ حَنْظَلَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنَ الْفِطْرَةِ حَلْقُ الْعَانَةِ وَتَقْلِيمُ الأَظْفَارِ وَقَصُّ الشَّارِبِ [ر:۵۵۴۹]

[۵۵۵۱] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْفِطْرَةُ خَمْسٌ الْخِتَانُ وَالِاسْتِحْدَادُ وَقَصُّ الشَّارِبِ وَتَقْلِيمُ الأَظْفَارِ وَنَتْفُ الآبَاطِ [ر:۵۵۵۰]

[۵۵۵۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ وَفِّرُوا اللِّحَى وَأَحْفُوا الشَّوَارِبَ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ إِذَا حَجَّ أَوِ اعْتَمَرَ قَبَضَ عَلَى لِحْيَتِهِ فَمَا فَضَلَ أَخَذَهُ [ر:۵۵۴۹]

**د نوكونو اخستو حكم**: تقليم د قلم نه باب د تفعيل مصدر دې، ددې معنى د پريكولو او د اخستو او د قطع كولو راځى، د بريتو په شان نوكونه اخستل هم په فطرى امورو كښې دى، په لويو نوكونو كښې خيرې جمع كيږى، چه كوم د پاكئ خلاف دې، دارنګه د خيرو په وجه ډير كرتې اوبه بيخونو ته نه رسيږى دې وجه نه د نوكونو د اخستو اهتمام كول پكار دى -

**په څومره موده كښې نوكونه او بريت اخستل پكار دى**: امام مسلم رحمه الله د حضرت انس نه روايت نقل كړيدې چه په بريتو او په نوكونو اخستو كښې او د ترخونو او د نامه لاندې ويختو اخستو كښې مونږ دپاره د څلويښتو ورځو حد مقرر شويدې چه دينه به ئې زيات نه پريږدو - [3]

او بهتره دا ده چه هره هفته د بريتو او د نوكونو د اخستو او د نامه د لاندې د ويختو د صفا كولو اهتمام اوشى، امام بيهقى رحمه الله د حضرت ابوهريره نه روايت نقل كړيدې چه رسول الله ﷺ به د هرې جمعې مانځه دپاره د راوتلو نه وړاندې خپل نوكونه او بريت اخستل - [4]

**د نوكونو د اخستو طريقه**: د نوكونو په اخستو كښې د ګوتو ترتيب څنګه كيدل پكار دى ؟

---

[1] فتح البارى : ۱۰\۴۲۵ ، أوجز المسالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى السنة فى الفطرة : ۱۴\۲۳۲ )

[2] فتح البارى : ۱۰\۴۲۵ ، أوجز المسالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى السنة فى الفطرة : ۱۴\۲۳۲ شرح الزرقانى ، على الموطاء لإمام مالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى السنة فى الفطرة : ۱۴\۲۸۷ )

[3] صحيح مسلم ، كتاب الطهارة ، باب خصال الفطرة : ۱\۲۲۲ ، ( رقم الحديث : ۲۵۸ )

[4] أوجز المسالک ، كتاب اللباس ، باب ما جاء فى السنة فى الفطرة : ۱۴\۲۳۰ )

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه احادیثو کښې ددې متعلق څه تصریح نشته دې -(۱)

امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم کښې لیکلې دی چه مستحب دا ده چه د ښی لاس د مسواکې ګوتې نه شروع اوکړې شی بیا مینځنۍ ګوته بیا وزیره ګوته بیا د کچې ګوتې نوکونه دې واخستې شی بیا د ګس لاس د کچې ګوتې نه شروع شی تر د متې ګوتې د ګس لاس پورې واخستې شی او په آخره کښې د ښې لاس د متې ګوتې نوك واخستې شی، او د پښو په نوکونو اخستو کښې شروع دې د ښې پښې د کچې ګوتې نه اوشی او په ترتیب سره دې اخلی تر دې د ګسې پښې په کچه ګوته ئې ختم کړی -(۲)

**قوله: خالفوا المشركين، وفروا اللحى، وأحفوا الشوارب:** رسول الله ﷺ فرمائی چه د مشرکانو مخالفت اوکړئ، ګیره لویه کړئ او بریت اوتراشئ، مشرکانو نه مراد مجوسیان دې -(۳)

د "وفروا اللحى" د الفاظو نه دا شبه کیږی چه ګیره لویه پکار ده او په هیڅ صورت کښې هم دیته قینچی وراوړل او کمول نه دی پکار -

شاید هم دې شبه ختمولو دپاره امام بخاری رحمه الله د حضرت ابن عمر اثر رانقل کړیدې چه کله دوی به حج یا عمره کوله نو خپله ګیره به ئې په موټې کښې اونیوله او د ویختو چه به څومره حصه زیاته وه نو دا به ئې قینچی کړه، امام ترمذی رحمه الله د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص نه هم یو روایت نقل کړیدې چه په خپله رسول الله ﷺ به هم خپله ګیره مبارکه په پلنو او په اوږدوالی کښې څه کموله -(۴)

دې وجه نه د وفروا اللحى او د أعفوا اللحى مطلب دا دې چه ګیره دې اوساتلې شی نه دې اوخرولې شی او نه دې زیاته کمه کړې شی -

د باب د دې دویم حدیث تعلق ترجمة الباب سره نشته دې بلکه دا د راتلونکی باب "باب إعفاء اللحى" لاندې ذکر کول پکار وو - په تکلف او په زور سره کُه څه توجیه ورلره اوکړې شی هغه بیله خبره ده، لکه علامه قسطلانی رحمه الله لیکی:

"وهذا الحديث لا تعلق له بما ترجمه له كما لا يخفى ويمكن توجيهه بتعسف" (۵)

•••

---

۱) فتح الباری: ۱۰\۴۲۳)

۲) شرح مسلم للنووی، کتاب الطهارة، باب خصال الفطرة: ۱\۱۲۹، دارنګه اوګوره بذل المجهود، کتاب الترجل، باب فی أخذ الشارب: ۱۷\۸۳)

۳) فتح الباری: ۱۰\۴۶۸، عمدة القاری: ۲۲\۴۶، إرشاد الساری: ۱۲\۵۹۰)

۴) أخرجه الترمذی فی کتاب الأدب، باب ما جاء فی الأخذ من اللحیة: ۵\۹۴ (رقم الحدیث: ۲۷۶۲)

۵) إرشاد الساری: ۱۲\۵۹۰)

## ٦٣ = باب إعفاء اللحى عفوا [الأعراف: ٩٥]

كثروا وكثرت أموالهم

[٥٥٥٣] حدثني محمد أخبرنا عبدة أخبرنا عبيد الله بن عمر عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم انهكوا الشوارب وأعفوا اللحى [ر: ٥٥٤٩]

**د ګيرې اندازه**: په حديث د باب کښې دى " انهكوا الشوارب وأعفوا اللحى" بريت قينچى کړئ او ګيره لويه کړئ -

**ګيره څومره لويول پکار دى؟**: په دې باره کښې حديث کښې څه معين اندازه نه ده شوې (١) خو د يو موټى نه کم د ګيرې د قينچى کولو اجازت د چا نه هم نه دى منقول بلکه داسې کول حرام دى - (٢) خو د يو موټى نه چه کوم زيات وى د هغې قينچى کول د بعضو په نزد مباح او د بعضو په نزد مستحب دي - (٣) امام نووى رحمه الله فرمائى چه ګيره د يو موټى نه زياته شى نو دا دې قينچى نه کړې شى ، دا دې په خپل حال سره پريخودې شى - (٤)

د يو موټى نه زياته ګيره چه دومره غټه شى چه بدنما ښکارى نو دې صورت کښې زيات ويخته اخستل بعض عالمان ضرورى او بعض مستحب ګڼړى ، خو په يو موټى ګيره ساتلو باندې اجماع ده - (٥) مفتى کفايت الله صاحب رحمه الله فرمائى :

" په حديث کښې د ګيرې د غټولو حکم او تائيد راغلې دې او ددې اندازه خودلو دپاره څه قولى روايت د رسول الله ﷺ نه روايت نه دې ، خو فعلى روايت کښې د اصحابو ﷺ دا طرز عمل مروى دې چه د يو موټى نه به ئې زياته ګيره قينچى کوله او د يو موټى نه د کمې

---

(١) کفايت المفتى ، کتاب الحظر ، بال او داړهى کے احکام : ٩\١٧٦ ، معارف الحديث ، کتاب المعاشرة و المعاملات : ٦\٣١٥)

(٢) البدر السارى : ٤\٣٨٠ ، معارف الحديث ، کتاب المعاشرة و المعاملات : ٦\٣١٥ ، کفايت المفتى ، کتاب الحظر و الإباحة : ٩\١٧٤)

(٣) الابواب و التراجم : ١٢\١١٠ ، او د صاحب د درمختار نه منقول دى چه يو موټى ګيره ساتل مسنون دى لکه چه دې فرمائى " و السنة فيها القبضة " الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فى البيع : ٥\٢٨٨ ، هم د دې عبارت تر لاندې شارح علامه ابن عابدين فرمائى " وهو أن يقبض الرجل لحيته فما زاد منها على قبضة قطعه كذا ذكره محمد فى كتاب الآثار عن الإمام ، قال : و به نأخذ " )

(٤) شرح مسلم للنووى ، کتاب الطهارة ، باب خصال الفطرة : ١\١٢٩)

(٥) و هل يكره أخذ ما زاد على القبضة فيه وجهان : أحدهما يكره ، و الثانى لا يكره لما روى البخارى ذلك من فعل ابن عمر ..... و علم مما سبق أنهم اختلفوا فيما طال من اللحية على أقوال : الأول : يتركها على حالها و لا يأخذ منها شيئا ، و هو مختار الشافعية ، و رجحه النووى و هو أحد الوجهين عند الحنابلة ، و الثانى كذلك إلا فى حج أو عمرة ، فيستحب أخذ شيء منها ، قال الحافظ : هو المنصوص عن الشافعى ، و الثالث يستحب أخذ ما فحش طولها جدا بدون التحديد بالقبضة وهو مختار لإمام مالك ، و رجحه القاضى عياض و الرابع : يستحب أخذ ما زاد على القبضة ، وهو مختار الحنفية ، ( الأبواب و التراجم : ١٢\١١٠)

قينچی کولو هیڅ څه سند نشته دې ، دې وجه نه فقهاء کرامو يو موټې ګیره ساتل واجب ګرځولې دی ، او ددې نه کم ساتونکې ئې په وجه د تارك د واجبو فاسق ګرځولې دې " (١)

**قوله: عفوا: كثروا وكثرت أموالهم:** د إعفاء په مناسبت سره امام بخاری رحمه الله د خپل عادت مطابق د سوره اعراف ایت پنځه نوی کښې واقع د لفظ د " عفوا " معنی بیان کړه چه د دې معنی د زياتيدو او د مال د زياتيدو راځی ، آيت كريمه دې ﴿ ثم بدلنا مكان السيئة الحسنة حتى عفوا...... ﴾ مونږ بد حالی په خوشحالئ سره بدله کړه تر دې چه دوی ته ﴿ د صحت سره مال او اولاد کښې ﴾ ښه ترقی نصیب شوه ﴿ دا زیاتیدل او د دوی مال او اولاد کښې اضافه اوشوه - ﴾

## ٦٤=بَاب مَا يُذْكَرُ فِي الشَّيْبِ

[٥٥٥٦\٥٥٥٥] حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا أَخَضَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمْ يَبْلُغْ الشَّيْبَ إِلَّا قَلِيلًا

[٥٥٥٦] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ قَالَ سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ شَمَطَاتِهِ فِي لِحْيَتِهِ [ر:٣٣٥٧]

[٥٥٥٨\٥٥٥٧] (٢) حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ وَقَبَضَ إِسْرَائِيلُ ثَلَاثَ أَصَابِعَ مِنْ قُصَّةٍ فِيهِ شَعَرٌ مِنْ شَعَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حُمْرًا

[٥٥٥٨] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا سَلَّامٌ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى أُمِّ سَلَمَةَ فَأَخْرَجَتْ إِلَيْنَا شَعَرًا مِنْ شَعَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَخْضُوبًا وَقَالَ لَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا نُصَيْرُ بْنُ أَبِي الْأَشْعَثِ عَنْ ابْنِ مَوْهَبٍ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ أَرَتْهُ شَعَرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْمَرَ

**د ترجمة الباب مقصد:** شیب بوډاتوب او د ویختو سپین والی ته وائی ، شارحین د ترجمة الباب مقصد بیانولو کښې لیکی چه سپینو ویختو ته خضاب لګولې شی او که نه ؟ امام ددې حکم بیانول غواړی - (٣) خو دا خبره زړه ته نه پریووځی ځکه امام د خضاب د حکم

---

(١) كفايت المفتی : كتاب الحظر و الإباحة " بال اور داڑھی کا احکام : ٩\١٧٦ )

(٢) ٥٥٥٧ ) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی هذا الباب ( رقم الحديث : ٥٥٥٨ ) و اخرجه ابن ماجه فی كتاب اللباس ، باب الخضاب بالحناء : ٢\١١٩٦ ( رقم الحديث : ٣٦٢٣ )

(٣) عمدة القاری : ٢٢\٤٧ ، دارنګه اوګورئ فتح الباری : ١٠\٤٣١ ، إرشاد الساری : ١٢\٥٩١ )

متعلق وړاندې مستقل باب قائم کړېدې
شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چه د ترجمة الباب مقصد د شيب فضيلت او د سپينو ويختو د ويستلو د ممانعت باره کښې چه کوم روايتونه راغلې دى هغې ته ئې اشاره کول مقصود دې (۱)
**د سپينو ويختو فضيلت**: لکه چه امام ابوداود او ترمذى د عمرو بن شعيب عن ابيه په سند سره روايت نقل کړېدې چه "إن النبى صلى الله عليه و سلم نهى عن نتف الشيب و قال : إنه نور المسلم" يعنى رسول الله ﷺ د سپينو ويختو د ويستلو نه منع کړېده ، او فرمايلى دى چه دا د مسلمان نور دې (۲) خو چه دا روايتونه د امام بخارى رحمه الله په شرطونو برابر نه وو ، دې وجه نه ئې دا ذکر نه کړل او د خضاب والا روايتونه ئې ذکر کړل -
ړومبى روايت کښې محمد بن سيرين فرمائى چه ما دا حضرت انس نه تپوس اوکړو چه آيا رسول الله ﷺ خضاب لګولې وو ؟ نو دوى اوويل د دوى ډېر کم ويخته سپين شوې وو ( د پنځلس ، اوولس ، اتلس ، نورلس ياد شلو ويختو د سپينېدو ذکر راغلې دى ) -(۳)
په دويم روايت کښې دى چه د حضرت انس نه د رسول الله ﷺ د خضاب لګولو په باره کښې تپوس اوشو نو دوى اوويل چه د دوى ويخته دومره سپين شوې نه وو چه خضاب ئې لګولې وې ، ګه د دوى د ګيرې سپين ويخته چا شمارلې نو شمارلې کېدل -
شمطاب ( د شين او د ميم په فتحه سره ) سپينو ويختو ته وائى - (۴)
**د يو مغلق عبارت تشريح** : د باب په دريم حديث کښې عثمان بن عبد الله بن وهب فرمائى :
أرسلنى أهلى إلى أم سلمة زوج النبى صلى الله عليه وسلم بقدح من ماء .... و قبض اسرائيل ثلاث أصابع ...... من قصة فيه شعر من شعر النبى صلى الله عليه وسلم" -
دې عبارت کښې دلته لږ غونده اغلاق دې ، حضرت ګنګوهى رحمه الله ددې چه کومه تشريح کړېده هغه ډېره واضحه او بې ګرد وغبار ده -
دلته ړومبې په دې خبره پوهه شه چه د " و قبض إسرائيل ثلاث أصابع " دا جمله معترضه ده ، اسرائيل بن يونس ددې حديث د پوهول دپاره په درې ګوتو اشاره اوکړه ، نو دې جمله کښې ددې ذکر دې ، دې وجه نه د اصل حديث الفاظ دا دى "أرسلنى أهلى إلى أم سلمة زوج النبى صلى الله عليه وسلم بقدح من ماء من قصة فيه شعر من شعر النبى صلى الله عليه وسلم" -
① قُصّة ( د قاف په ضمه او د صاد په تشديد سره ) د ويختو " من قُصّة..... " کښې " من "

---
(۱) الابواب و التراجم : ۲ | ۱۱۰
(۲) أخرجه الترمذى فى كتاب الأب ، باب ما جاء فى النهى عن نتف الشيب : ۵ | ۱۲۵ ( رقم الحديث : ۲۸۲۳ ) و روى أبو داود معناه فى كتاب الترجل ، باب فى نتف الشيب : ۴ | ۸۵ ( رقم الحديث : ۴۲۰۲ )
(۳) إرشاد السارى : ۱۲ | ۵۹۱ ، عمدة القارى : ۲۲ | ۴۸ )
(۴) عمدة القارى: ۲۱ | ۴۸ ، فتح البارى: ۱۰ | ۴۳۲ إرشاد السارى: ۱۲ | ۵۹۲ ، شرح الكرمانى : ۲۱ | ۱۱۲)

سببيه ده او د " اجل " په معنى دي " أى لأجل قصة " او په ديكبنبې د شعر نه وړاندې فعل محذوف دي أى ليجعل فيه شعرمن شعر النبى صلى الله عليه وسلم ... تركيبى عبارت به ترينه جوړ شى " أرسلنى أهلى إلى أم سلمة .... بقدح من ماء لأجل قصة ليجعل فيه شعرمن شعر النبى صلى الله عليه و سلم ..... ترجمه به وى " خه خپل كور والا د اوبو يو پيالئ سره حضرت ام سلمه بى بى د رسول الله ﷺ ته اوليږلم د ويختو د غنچكې د وجه نه دې دپاره چه دې پيالي كښې د نبى كريم ﷺ ويخته واچولې شى " -

د حضرت ام سلمه رضي الله عنها سره په يو ډبى كښې د رسول الله ﷺ ويخته مبارك محفوظ وو ، چه چا ته به بد نظر لګيدلو يا به څوك بيمار شو نو اوبه به ئې رااوليږلې ، دوى به ويخته مبارك په ديكښې واچولو ، خلقو به دا اوبه استعمالولې نو ددې په بركت به دوى ته شفا ملاويده - (١) عثمان بن وهب ته ئې پيالئ وركړه او د دې ويختو دپاره ئې اوليږلو دې دپاره چه دا ويخته مبارك په دې پيالئ كښې واچولې شى -

" فيه شعر... " كښې ضمير مجرور " قدح " ته راجع دې بعضې نسخو كښې " فيها " دې ، دې صورت كښې به مطلب نور هم واضح شى چه څه ئې حضرت ام سلمه رضي الله عنها ته اوليږلم ددې غنچې دپاره چه ديكښې د رسول الله ﷺ ويخته مبارك وو - د دوى ويخته مبارك د نورو ويختو سره ايخودې شوې وو دې دپاره چه محفوظ پاتې شى ، لكه چه حضرت ګنګوهى رحمه الله فرمائى :

" من قصة : كلمة من بمعنى الأجل ، وقول : فيه شعرمن شعر..... الظاهر أنه بيان لما آل إليه أمر القدح حين جعلت أم سلمة شعره صلى الله عليه و سلم فيه ، إذ لا يخفى أن الشعرلم يكن فى القدح الذى أتى به عثمان إلى أم سلمة رضي الله عنها ، وإنما كان الشعرفى الجلجل و لا يبعد أن يقال : " ليجعل فيه شعرمن شعر..... بحذف الفعل ، و هذا إذا أعيد الضميرإلى القدح ، و أما إذا أعيد إلى القُصة كما فى نسخة ، فالأمر أظهر ، ولعلها جعلته فى القصة خوفا عن التلف و الضياع لو أفرد و كان وحده " (٢)

③ دا تفصيل هله دې چه كله دا لفظ د " قُصّة " وى خو په څو نسخو كښې دا لفظ د " فضّة " دې- (٣) او دا د " قدح " صفت دې او ترجمه به ئې وى " څه خپل كور والا د سپينو زرو نه جوړه شوې پيالئ سره اوليږلم چه ديكښې د رسول الله ﷺ ويخته مبارك وو ، د عثمان بن وهب كور والا دا اوړلې وو .بيا ئې واپس كولو دپاره عثمان رضي الله عنه ته وركړل او راوې ليږلو-(٤)

(١) عمدة القارى: ٢٢\٤٩.فتح البارى:١٠\٤٣٣.إرشاد السارى : ١٢\٥٩٣ ، شرح الكرمانى : ٢١\١١٣)
(٢) لامع الدرارى : ١٠\٣)
(٣) عمدة القارى : ٢٢\٤٨ ، فتح البارى : ١٠\٤٣٢ ، إرشاد السارى : ١٢\٥٩٤ )
(٤) عمدة القارى: ٢٢\٤٩.فتح البارى:١٠\٤٣٢ .إرشاد السارى : ١٢\ ٥٩٤ شرح الكرمانى : ٢١\١١٢)

په دې به دا اشکال وی چه د سپینو زرو پیالۍ استعمالول خو جائز نه دی . د دې دا جواب ورکړې شویدې چه دا خالص د سپینو زرو نه وه ، په دې صرف د سپینو زرو څه کار شوې وو یا خالص د سپینو زرو وه خو دا قسم د سپینو زرو واړه لوښی استعمالول حضرت ام سلمه جائز ګڼړل - (۱)
او دا هم کیدې شی چه حضرت ام سلمه ﷺ دا د خوراك څښاك دپاره نه استعمالولو صرف د حضور ﷺ ویخته ئې دېکښې ایخودې وو ، د سپینو زرو لوښی کښې څه داسې څیز محفوظ ساتل جائز دی - (۲)

③ دریم صورت دا دې چه " من فضة " د قدح " صفت نه دې بلکه د " جلجل " صفت دې . جلجل ډبی ته وائی ، لکه چه حمید په " الجمع بین الصحیحین " کښې چه کوم روایت رانقل کړیدی ، د دې الفاظ دی "أرسلنی أهلی إلی أم سلمة بقدح من ماء فجاءت بجلجل من فضة فیه شعر" (۳) د دې حاصل دا دې چه عثمان صرف د اوبو پیالۍ اوړې وه او حضرت ام سلمه د سپینو زرو هغه ډبې راوړو چه دیکښې د حضور انور ﷺ ویخته مبارك وو خلقو به د اوبو وغیره لوښی اوړل ، حضرت ام سلمه به دیکښې دننه دغه ډبی ایخودلو ، بیا به دغه اوبه استعمالیدلې او مریضانو ته به شفا ملاویده -
حاصل دا چه روایت کښې د "من فضة..." نه وړاندې " فجاءت بجلجل " الفاظ د حمیدی په روایت کښې دی ، دلته د بخاری په روایت کښې نشته دې چه د هغې په وجه نه په کلام کښې څه اشکال او سختی راځی لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی :
"قوله : فجاءت بجلجل ، و به ینتظم الکلام ، ویعرفا منه أن قوله : " من فضة " بالفاء و المعجمة ، و أنه صفة الجلجل، لاصفة القدح الذی أحضره عثمان بن موهب" (۴)
اوس خبره پاتې کیږی د " وقبض إسرائیل ثلاث أصابع " .... اسرائیل بن یونس د خبرې د پوهولو دپاره درې ګوتې ( متهه ګوته ، مسواکه ګوته او مینځنۍ ګوته ) خورې کړې راغونډې کړې . حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : چه دې سره د اوبو د پیالۍ وړوکوالی ته اشاره وه چه دا دومره وړه پیالۍ وه - (۵)
علامه عینی رحمه الله فرمائی چه دې سره د عثمان حضرت ام سلمه ته د درې ځلو تلو اشاره کول مقصود دی ، څکه چه په ګوتو باندې شمیر ته اشاره کیږی - (۶)

---

(۱) عمدة القاری: ۲۲\۴۹ ،فتح الباری: ۱۰\۴۳۲ ،إرشاد الساری: ۱۲\۵۹۴ ، شرح الکرمانی : ۲۱\۱۱۲)
(۲) عمدة القاری : ۲۲\۴۹ ، إرشاد الساری : ۱۲\۵۹۲ ، فتح الباری : ۱۰\۴۳۲ )
(۳) فتح الباری : ۱۰\۴۳۲ )
(۴) فتح الباری : ۱۰\۴۳۲ )
(۵) فتح الباری : ۱۰\۴۳۲ ، إرشاد الساری : ۱۲\ ۵۹۲)
(۶) عمدة القاری : ۲۲\۴۸ ، شرح الکرمانی : ۲۱\۱۱۲ )

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله د "قبض أصابع" تشریح کوی او لیکی:

"ثم اعلم أن هیئة قبض الأصابع أن تطول أصابعك الثلاثة، وهی الإبهام، والسبابة والوسطی، ثم توسع بینها توسعا قلیلا بحیث یکون البعد بین رؤوسها و بین أصولها سواء، فهذا القبض إما للإشارة إلی هیئة القدم أو للإشارة إلی هیئة الجلجل" (۱)

یعنی د "قبض أصابع" هیئت داسې دی چه ده خپلې درې ګوتې (متھ) مسواکه ګوته او مینځنۍ ګوته خورې کړې او ددې په مینځ کښې ئې لږه غونډه فاصله اوساتله چه د ګوتو د بیخونو اود سرونو په مینځ کښې برابروی، ددې هیئت دا اشاره یا پیالۍ ته وه یا ډبی ته وه۔

مخضبة: ټب یعنی د اوبو لوښې ته وائی - (۲)

د روایت په آخر کښې عثمان بن موهب فرمائی چه ما دې لوښې کښې اوکتل نو په دیکښې څو سره ویخته په نظر راغلل، معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به خضاب لګولو، په دې مناسبت سره امام دا حدیث دلته ذکر کړو - (۳)

## ٦٥ = بَاب الْخِضَابِ

[۵۵۵۹] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى لَا يَصْبُغُونَ فَخَالِفُوهُمْ [ر: ۳۲۷۵]

**د خضاب لګولو حکم:** نکریزې او د سور رنګ خضاب لګول بالاتفاق مستحب دی، خو د تور رنګ خضاب کښې اختلاف دې -

د احنافو حضراتو په نزد د ضرورت شرعیه په وجه د تور رنګ خضاب لګول جائز دی - مثلاً په جهاد کښې په دښمنانو باندې رعب اچولو دپاره یو بوډا مجاهد تور خضاب لګوی یا بوډا خاوند د خوانې ښځې د اطمینان دپاره تور خضاب لګوی، نو دا بې د کراهته جائز دی خو عام حالاتو کښې بې د ضرورت شرعیه نه د تور رنګ خضاب لګول مکروه دی - (۴)

په احنافو کښې بعضې عالمانو تور خضاب لګولو ته مطلقًا جائز ویلې دی، ضرورت وی او که ضرورت نه وی - (۵) د شوافعو په نزد په تور خضاب کښې دوه قوله دی د تحریم او د کراهت تنزیهی، امام نووی رحمه الله د تحریم قول ته اصح وائی - (۶)

---

(۱) لامع الدراری: ۱۰ \ ٤٢٤)

(۲) النهایة لإبن الأثیر: ۲ \ ۳۹، مجمع بحار الأنوار: ۲ \ ۵۱، القاموس الوحید: ٤٤٧).

(۳) إرشاد الساری: ۱۲ \ ۵۹۳)

(۴) کفایت المفتی کتاب الحظر و الإباحة " بال اور داڑھی کآ احکام "، أوجز المسالک، کتاب الشعر، باب ما جاء فی صبغ الشعر: ۱۵ \ ۲۵)

(۵) رد المحتار علی الدر المختار، کتاب الحظر و الإباحة، فصل فی البیع: ۱۵ \ ۲۹۹)

(۶) فتح الباری: ۱۰ \ ٤۳۶، أوجز المسالک، کتاب الشعر، باب ما جاء فی صبغ الشعر: ۱۵ \ ۲۵)

د شوافعو په شان د حنابله په نزد هم دوه روايتونه دى ، يو د تحريم او بل د كراهت ، د دوى مشهور روايت د كراهت دے - (۱)

د امام مالك رحمه الله نه ابن وهب نقل كوى چه ده به فرمائل : " لم أسمع فى صبغ الشعرة بالسواد نهيا معلوما " (۲)

حاصل دا چه د جهاد وغيره د ضرورت شرعيه دپاره تور خضاب استعمالول بالاتفاق بغير د كراهته جائز دى او د دهوكے وركولو دپاره تور خضاب لګول بالاتفاق ممنوع دى ، او د عام زينت دپاره په لګولو كښے د جمهورو په نزد كراهت دے او د بعضو په نزد جائز دے - (۳)

**د تور خضاب د ممانعت دلائل** : مانعين استدلال كوى د حضرت جابر د هغه روايت نه چه په صحيح مسلم كښے دى چه د فتح د مكے په موقع باندے د حضرت ابوبكر صديق ﷺ پلار ابوقحافه راوستے شو ، د دوى ويخته بالكل سپين وو ، دوى ﷺ اوفرمائل : " غيروا هذا بشيء ، واجتنبوا السواد " (۴)

دارنګه د حضرت ابن عباس روايت امام ابوداود نقل كړيدے چه رسول الله ﷺ فرمائلے دى " يكون قوم يخضبون فى آخر الزمان بالسواد كحواصل الحمام ، لا يريحون رائحة الجنة " (۵) په آخرى زمانه كښے به يو قوم راشى دوى به تور خضاب لګوى په شان د كونترو د ججورو ، دا خلق به د جنت خوشبوئى هم بيا نه مومى - )

د دے روايتونو په بنياد باندے جمهور تور خضاب ته مكروه تحريمى يا تنزيهى وائى -

**د جائز ګڼړونكو دلائل** : چه كوم حضرات ديته جائز وائى هغوى د اصحابو او د تابعينو په آثارو سره استدلال كوى -

علامه ابن القيم په زاد المعاد كښے او ابن ابى شيبه په مصنف كښے د دوى نومونه ليكلے دى ، حضرت حسن ، حضرت حسين ، حضرت عثمان ، سعد بن ابى وقاص ، عقبه بن عامر ، مغيره بن شعبه ، جرير بن عبد الله ، عمرو بن العاص ، محمد بن سيرين ، ابراهيم نخعى ، سعيد بن جبير ، محمد بن الحنفيه نه تور خضاب لګول منقول دے - (۶)

دا حضرات احاديث د نهى لره په خداع او په دهوكه وركولو محمولوى - (۷)

خو د نهى احاديث چه مطلق دى ، دے وجه نه دا په مخصوص صورت باندے حمل كول

---

(۱) أوجز المسالک ، كتاب الشعر ، باب ما جاء فى صبغ الشعر : ۱۵\۲۵ )

(۲) الموطاء للإمام مالک ، كتاب الشعر ، باب ما جاء فى صبغ الشعر : ۲\۹۴۹ )

(۳) الدر المختار ، كتاب الحظر و الإباحة : ۵\۲۹۹ ، البحر الرائق ، كتاب الكراهية : ۸\۱۸۳ )

(۴) صحيح مسلم، كتاب اللباس و الزينة، باب استحباب خضاب الشيب : ۳\۶۶۳ ( رقم الحديث : ۲۱۰۲)

(۵) رواه أبوداود فى كتاب الترجل ، باب ما جاء فى خضاب السواد ، ۴\۸۷ ( رقم الحديث : ۴۲۱۲ )

(۶) زاد المعاد لابن القيم ، فصل فى ذكر شيء من الأدوية و الأغذية المفردة التى جاءت على لسانه صلى الله عليه وسلم و ما فيها من المنافع و الخواص : ۴\۳۶۸ )

(۷) أوجز المسالک ، كتاب الشعر ، باب ما جاء فى صبغ الشعر : ۱۵\۲۶ )

خلاف د ظاهر دی -

مانعين د ذکر شوی آثارو په باره کښې وائی چه ديکښې د سواد نه خالص سواد مراد نه دې . بلکه هغه سواد مراد دې چه د سور رنګ ګډون ورسره وی - (۱)

بهر حال دا تفصيل خو د تورو خضاب متعلق دې ، نکريزې او سور خضاب لګول مستحب او مسنون دی -

امام ترمذی رحمه الله د حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه نه روايت نقل کړيدې ، چه رسول الله ﷺ فرمائلي دی "إن أحسن ماغيرتم به الشيب : الحناء والكتم" (۲)

## ٦٦=بَابُ الْجَعْدِ

[٥٥٦٠] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيلِ الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيرِ وَلَيْسَ بِالْأَبْيَضِ الْأَمْهَقِ وَلَيْسَ بِالْآدَمِ وَلَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ وَلَا بِالسَّبْطِ بَعَثَهُ اللَّهُ عَلَى رَأْسِ أَرْبَعِينَ سَنَةً فَأَقَامَ بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِينَ وَبِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ وَتَوَفَّاهُ اللَّهُ عَلَى رَأْسِ سِتِّينَ سَنَةً وَلَيْسَ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ عِشْرُونَ شَعَرَةً بَيْضَاءَ [ر:٣٣٥٤]

[٥٥٦١] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ يَقُولُ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَحْسَنَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَعْضُ أَصْحَابِي عَنْ مَالِكٍ إِنَّ جُمَّتَهُ لَتَضْرِبُ قَرِيبًا مِنْ مَنْكِبَيْهِ قَالَ أَبُو إِسْحَاقَ سَمِعْتُهُ يُحَدِّثُهُ غَيْرَ مَرَّةٍ مَا حَدَّثَ بِهِ قَطُّ إِلَّا ضَحِكَ قَالَ شُعْبَةُ شَعَرُهُ يَبْلُغُ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ [ر:٣٣٥٦]

[٥٥٦٢] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرَانِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ فَرَأَيْتُ رَجُلًا آدَمَ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنْ أُدْمِ الرِّجَالِ لَهُ لِمَّةٌ كَأَحْسَنِ مَا أَنْتَ رَاءٍ مِنَ اللِّمَمِ قَدْ رَجَّلَهَا فَهِيَ تَقْطُرُ مَاءً مُتَّكِئًا عَلَى رَجُلَيْنِ أَوْ عَلَى عَوَاتِقِ رَجُلَيْنِ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ فَسَأَلْتُ مَنْ هَذَا فَقِيلَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ وَإِذَا أَنَا بِرَجُلٍ جَعْدٍ قَطَطٍ أَعْوَرِ الْعَيْنِ الْيُمْنَى كَأَنَّهَا عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ فَسَأَلْتُ مَنْ هَذَا فَقِيلَ الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ [ر:٣٢٥٦]

[٥٥٦٣/٥٥٦٨] (۳) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَضْرِبُ شَعَرُهُ مَنْكِبَيْهِ

---

۱) أوجز المسالک ، كتاب الشعر ، باب ما جاء فی صبغ الشعر : ۱۵\۲۷ )

۲) أخرجه الترمذی فی كتاب اللباس ، باب ما جاء فی الخضاب : ٤\۲۳۲ ( رقم الحديث : ۱۷۵۳ ) يعنی بهترين خضاب نکريزې او وسمه ده " الكتم : نبت يخلط مع الوسمة " النهاية لابن الأثير : ٤\۱۵۰)

۳) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی هذا الباب (رقم الحديث : ٥٥٦٤ ) ...[بقيه برصفحه آئنده....

[۵۵۶۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ كَانَ يَضْرِبُ شَعَرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْكِبَيْهِ

[۵۵۶۵] (1) حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ شَعَرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كَانَ شَعَرُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجِلًا لَيْسَ بِالسَّبِطِ وَلَا الْجَعْدِ بَيْنَ أُذُنَيْهِ وَعَاتِقِهِ

[۵۵۶۶] حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْيَدَيْنِ لَمْ أَرَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ وَكَانَ شَعَرُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجِلًا لَا جَعْدَ وَلَا سَبِطَ

[۵۵۶۷] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْيَدَيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ حَسَنَ الْوَجْهِ لَمْ أَرَ بَعْدَهُ وَلَا قَبْلَهُ مِثْلَهُ وَكَانَ بَسِطَ الْكَفَّيْنِ

[۵۵۶۸] حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هَانِئٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَوْ عَنْ رَجُلٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْقَدَمَيْنِ حَسَنَ الْوَجْهِ لَمْ أَرَ بَعْدَهُ مِثْلَهُ وَقَالَ هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَثْنَ الْقَدَمَيْنِ وَالْكَفَّيْنِ وَقَالَ أَبُو هِلَالٍ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ أَوْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَخْمَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ لَمْ أَرَ بَعْدَهُ شَبَهًا لَهُ [ر: ۳۳۵۴]

[۵۵۶۹] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فَذَكَرُوا الدَّجَّالَ فَقَالَ إِنَّهُ مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ كَافِرٌ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمْ أَسْمَعْهُ قَالَ ذَاكَ وَلَكِنَّهُ قَالَ أَمَّا إِبْرَاهِيمُ فَانْظُرُوا إِلَى صَاحِبِكُمْ وَأَمَّا مُوسَى فَرَجُلٌ آدَمُ جَعْدٌ عَلَى جَمَلٍ أَحْمَرَ مَخْطُومٍ بِخُلْبَةٍ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ إِذَا انْحَدَرَ فِي الْوَادِي يُلَبِّي [ر: ۱۴۸۰]

گلكوتي ( تاو راتاو ) ويختو ته جعد وائی ، حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله ليكي :

---

.....بقيه ازحاشيه گذشته] و أخرجه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب صفة شعر النبى صلى الله عليه و سلم : ۴ \ ۱۸۱۹ ( رقم الحديث : ۲۲۳۸ )

1) ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب صفة شعر النبى صلى الله عليه و سلم : ۴ \ ۱۸۱۹ ( رقم الحديث : ۲۳۳۸ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة ، باب الجعد : ۵ \ ۴۰۹ ( رقم الحديث : ۹۳۱۱ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الزينة ، باب اتخاذ الجمة و الذوائب : ۲ \ ۱۲۰۰ ( رقم الحديث : ۳۶۳۴ ) و أخرجه الترمذى في الشمائل، باب ما جاء فى شعر رسول الله صلى الله عليه و سلم : ۴۸ (رقم الحديث : ۲۷)

و الظاهر عند هذا العبد الضعيف في الغرض من الترجمة على ما يستفاد من مجموع أحاديث الباب أن شدة الجعودة ليست بمحمودة فينبغي إزالته بالإمشاط وغيره، و قليله محمود لايزال([1])
يعنى د ترجمة الباب مقصد دا دې چه د ويختو زيات ګلګوتې كيدل څه وصف نه دې دې وجه نه د ګمنز په ذريعه زيات ګلګوتوالې ختمول پكار دى ، د ويختو لږ غونده ګلګوتې كيدل ښه وصف دې -
د باب ترلاندې امام بخارى رحمه الله د رسول الله ﷺ د جسمانى اوصافو متعلق احاديث ذكر كړيدى، الطويل البائن: ډيرزيات اوږد ، الامهق : خالص سپين په شان د برص د مريض كيدل ، الآدم غنم رنګ يعنى د دوى رنګ داسې غنم رنګې نه وو چه په هغې باندې سپين والې غالب وى ، بلكه سور والې او سپين والې دواړه وو - الجعد القَطط ( د قاف او د طاء د فتحه سره ) ډير زيات ګلګوتې ويختو والا - سبط ( د سين د فتحه او د باء د كسره سره ) هغه كس چه دده ويخته بالكل نيغ وى - "توفاه الله على رأس ستين" د وفات په وخت د رسول الله ﷺ عمر مبارك درې شپيته كاله وو ، دلته كسر خذف شويدې - ([2])
جُمّة او لِمّة زلفو او ويختو ته وائى ، چه كوم ويخته اوږو پورې وى نو ديته جُمّة ، چه كوم د غوږونو او د اوږو مينځ پورې وى نو ديته لِمّة وائى - ([3]) او چه غوږونو پورې وى نو ديته وفرة وائى -
رسول الله ﷺ به كله د اوږو پورې او كله د غوږونو د نرمو پورې ويخته ساتل په مختلف وختونو كښې ئې مختلف معمول پاتې شويدې -
لِمَم: د لِمّة جمع ده - أُدْم ( د همزې په ضمه او د دال په سكون سره ) د آدم جمع ده په معنى د غنم رنګى،رجلها :رَجَل په معنى د ګمنزكولو راخى، عِنَبَة طافية: د ډك انګور د دانې په شان
**قوله: كان شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم رجلا :** رَجِل ( د راء په فتحه او د جيم په كسره سره ) داسې ويخته چه زيات ګلګوتې نه وى او نه زيات نيغ وى ، بلكه ددې په مينځ كښې وى ، ديته رجل وائى ضَخْم اليدين : د ډكو غټو لاسونو والا ، بَسْط الكفّين : فراخه ورغوو والا ، شَثْن القدمَين : د غوښې نه د ډكو قدمونو والا
**قوله: وأما موسى فرجلٌ آدم جعد على جمل أحمر مخطوم بخُلْبة :** حضرت موسى عليه السلام غنم رنګې وو ، ويخته ئې ګلګوتې وو ، داسې سور اوښ باندې سور وو چه هغې ته د رسۍ واړې لګيدلې وې ، په وادى ( كنده ) كښې كوزيدلو او تلبيه ئې وئيله،

[1]) الأبواب و التراجم : ١١٠\٢ )
[2]) إرشاد السارى : ٥٩٥\١٢ )
[3]) فتح البارى : ٤٣٨\١٠ ، إرشاد السارى : ٥٩٥\١٢ ، عمدة القارى : ٥٢\٢٢ )

خُلّبَة ( د خاء په ضمه او د لام په سکون سره ) د کجورو د پوستکو او د مالوچو وغیره نه جوړه شوې مضبوطه رسئ - (١)

علامه قسطلانی د دې روایتونو د باب سره مناسبت بیانولو دپاره لیکی :

"فإن قلت : هذه الروایات الواردة فی صفة الکفین و القدمین لا تعلق لها بالترجمة أجیب : بأنها کلها حدیث واحد ، واختلفت رواته بالزیادة و النقص ، والغرض منه بالإصالة صفة الشعر و ما عدا ذلك فبالتبع "

یعنی کُه تا ته دا شبه اوشی چه دا روایتونه چه متعلق د ورغوو او د پښو د قدمونو سره دی ددې د ترجمة الباب سره څه تعلق نشته دې ( ځکه چه ترجمة الباب د ویښتو متعلق دې ) نو ددې جواب دا دې چه دا هم یو حدیث دې ، خو راویانو دا په کمی زیاتی سره روایت کړیدې ، نو اصلاً دې سره د ویښتو صفت بیانول مقصود دی ، باقی څیزونه بالتبع دی - (٢)

## ٦٧= بَاب التَّلْبِيدِ

[٥٥٧٠/٥٥١٤] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ مَنْ ضَفَّرَ فَلْيَحْلِقْ وَلَا تَشَبَّهُوا بِالتَّلْبِيدِ وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُولُ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُلَبِّدًا

[٥٥١٥] حَدَّثَنِي حِبَّانُ بْنُ مُوسَى وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَا أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ مُلَبِّدًا يَقُولُ لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَا يَزِيدُ عَلَى هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ [ر: ١٣٦٦]

[٥٥١٦] حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ حَفْصَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا شَأْنُ النَّاسِ حَلُّوا بِعُمْرَةٍ وَلَمْ تَحْلِلْ أَنْتَ مِنْ عُمْرَتِكَ قَالَ إِنِّي لَبَّدْتُ رَأْسِي وَقَلَّدْتُ هَدْيِي فَلَا أَحِلُّ حَتَّى أَنْحَرَ [ر: ١٤٩١]

د تلبید معنی ده په ګوند وغیره سره د سر ویښتو یو بل سره انخلول چه خواره نه شی چه محفوظ وی د ګرد وغباره ، د تضفیر معنی ده د سر د ویښتو کونځئ جوړول - (٣)

حضرت فاروق اعظم فرمائی : "من ضفّر فلیَحلِق ، ولا تشبّهوا بالتّلبید" یعنی چه کوم سړی د سر د ویښتو نه کونځئ جوړې کړې وی نو هغه دې د ( احرام نه وتلو دپاره ) حلق اوکړی او د

---

(١) النهایة لابن الاثیر : ٢/٩٨ ، عمدة القاری : ٢٢/ ٥٤ )

(٢) إرشاد الساری : ١٢/٥٩٩ )

(٣) فتح الباری : ١٠/٤٤١ ، إرشاد الساری : ١٢/ ٦٠٠ ، عمدة القاری : ٢٢/ ٥٥ ، النهایة لابن الاثیر : ١٣ ، ٩٢/٤ ، ٢٢٤ )

تلبيد مشابهت دې اختيار نه کړي -
**د حضرت فاروق اعظم د قول مختلف مطلبونه** : شارحينو د حديث مختلف مطلبونه بيان کړيدى : ① يو مطلب دا بيان شويدې چه د حضرت فاروق اعظم دې حديث کښې اول د تلبيد او د تضفير د احرام نه د وتلو دپاره حکم بيان کړيدې چه کوم سړى ويخته په شريشو انخلولې وى يا ده د ويختو نه کونځۍ جوړې کړې وى نو د احرام نه د وتلو دپاره دې دې حلق اوکړى ، قصر دده دپاره کافى نه دى يا حلق ده دپاره د قصر په مقابله کښې افضل دې خو د احرام نه علاوه عام حالاتو کښې تلبيد او تضفير دواړه ....... د شراحو په قول سره ...... د حضرت عمر په نزد مکروه دى دې وجه نه دوى اوفرمائل : "لاتشبهوابالتلبيد" يعنى د احرام نه علاوه د تلبيد په شان صورت مه اختياروي ، چه د ويختو کونځۍ جوړې کړئ ، د کونځو نه ئې منع اوکړه چه کوم مشبه دې نو د تلبيد نه په طريق اولى سره ممانعت راغلو ځکه چه دا مشبه به دې - (١)

حضرت ابن عمر فرمائى :لقد رأيت رسول الله صلى الله عليه و سلم ملبدا
ددې تشريح په صورت کښې د حضرت ابن عمردې قول لره بعضو د حضرت فاروق اعظم په تائيد او په حمايت محمول کړيدې او بعضو په ترديد او په مخالفت باندې ، د تائيد او د حمايت په صورت کښې د ابن عمر د قول مطلب به دا وى چه حضرت عمر فاروق تلبيد ته په عام حالت کښې مکروه ويلې ، نو د دوى دا قول صحيح دې ځکه چه ابن عمر وائى : ما رسول الله ﷺ لره صرف د احرام په حالت کښې د تلبيد سره ليدلې دې ، د احرام د حالت نه غير کښې مې نه دې ليدلې ، ګويا حضرت ابن عمر چه فرمائى :"لقد رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم ملبدا" نو دينه په حالت د احرام کښې ليدل مراد دى -
او د مخالفت په صورت کښې د حضرت ابن عمر د قول مطلب دا دې ، چه حضرت فاروق اعظم د تلبيد نه چه کومه منع کړيده دا صحيح نه ده ځکه چه دوى ﷺ لره ما په حالت د تلبيد کښې ليدلې دې ، حضرت ابن عمر ، د حضرت فاروق اعظم د قول دا مطلب اخستې دى چه دې د تلبيد نه مطلقا ( د احرام او د غير احرام دواړو حالتونو کښې ) منع کوى ، دې وجه نه دوى د خپل والد ترديد اوکړو ، حال دا دې چه د حضرت فاروق اعظم مقصد د تلبيد نه مطلقا ممانعت نه دې بلکه د احرام نه په غير حالت کښې ممانعت مراد دې - (٢)
بهرحال د حضرت ابن عمر قول د دوى تائيد هم کيدې شى او د دوى ترديد هم
② من ضفّر فليَحلق دويم مطلب دا بيان شويدې چه کوم کس په حالت د احرام کښې د سر د ويختو کونځۍ جوړول غواړى نو دې دې د تضفير په ځائې د احرام نه وړاندې خپل ويخته اوخروى چه ددې تکلف ضرورت باقى پاتې نه شى - (٣)

(١) فتح البارى : ١٠\٤٤١ ، إرشاد السارى : ١٢\٦٠٠ ، عمدة القارى : ٢٢\٥٥ )
(٢) فتح البارى : ١٠\٤٤١ ، إرشاد السارى : ١٢\٦٠٠ ، عمدة القارى : ٢٢\٥٥ )
(٣) فتح البارى : ١٠\٤٤١ )

۞ خو ددې حديث د تولو نه ښه مطلب قطب عالم حضرت گنگوهی رحمه الله په " لامع الدراری " كښې بيان كړيدې ، هغه فرمائی ، د عبارت معنی دا ده چه رسول الله ﷺ په شريشو ويخته انخلولې وو او بيا ئې حلق كړې وو ، دې وجه نه د تلبيد كوونكی دپاره هم دا مستحب دی چه دې د قصر په ځائې دې حلق اوكړی ، دارنگه د ويختو نه كونځې جوړوونكې چه د تلبيد سره مشابهت اختياروی ده لره هم حلق كول پكار دی ، اصل او اعلی صورت د تلبيد دې ، تضفير نقل او ادنی صورت دې ، بيا اصل طرف ته فاروق اعظم د رغبت پيدا كولو دپاره فرمائی چه كونځې جوړول او د تلبيد صورت اختيارول په ځائې باندې اصل تلبيد ولې نه كوئ ، دې وجه نه د تلبيد مشابهت مه اختياروئ بلكه هم په تلبيد باندې عمل اوكړئ ... او ددې په تائيد كښې ئې د حضرت ابن عمر قول هم ذكر كړو ، چه دوی رسول الله ﷺ لره د تلبيد په صورت كښې په حالت د احرام كښې ليدلې دې لكه چه حضرت فرمائی :

" و معنى العبارة أن النبى صلى الله عليه و سلم لبّد رأسه ، وحلق فكان الأدب للملبد الحلق و كذلك هو أدب لمن تشبه بالملبد بالتضفير ، ثم حث على إختيار الأعلى بترك الأدنى ، فقال : لا تشبهوا بالتلبيد بأن تضفروا ، بل حصلوا عين التلبيد ، ثم أورد ابن عمر تائيدا لقول أبيه : إنى رأيته صلى الله عليه و سلم ملبدا " (١)

## ٦٨= بَابُ الْفَرْقِ

[٥٥٧٣] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ مُوَافَقَةَ أَهْلِ الْكِتَابِ فِيمَا لَمْ يُؤْمَرْ فِيهِ وَكَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَسْدِلُونَ أَشْعَارَهُمْ وَكَانَ الْمُشْرِكُونَ يَفْرُقُونَ رُءُوسَهُمْ فَسَدَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاصِيَتَهُ ثُمَّ فَرَقَ بَعْدُ_ [ر:٣٣٦٥]

[٥٥٧٤] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ الطِّيبِ فِي مَفَارِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فِي مَفْرِقِ النَّبِيِّ [ر:٢٦٨]

فرق ( د فاء په فتحه او د راء په سكون سره ) د سر په ويختو كښې كرخې ويستو ته وائی ، د سر ويخته چه بالكل په مينځ كښې په دوه حصو باندې تقسيم كړې شی ، په مينځ كښې چه كومه كرخه جوړه شی هغې ته په عربۍ كښې فرق او په پښتو كښې ورته د سر د ويختو كرخه وائی - (٢) رسول الله ﷺ به وړاندې سر كښې كرخه نه ويستله بلكه ويخته به ئې هم

١) لامع الدراری : ١٠/٦)
٢) فتح الباری : ١٠/٤٤١ ، عمدة القاری : ٢٢/٥٥ ، إرشاد الساری : ١٢/٦٠١ ، النهاية لابن الاثير : ١٣/٤٣٨ ، مجمع بحار الأنوار : ٤/١٢٨)

داسې شا ته اړول . خکه چه د اهل کتابو هم دا طریقه وه او مشرکانو به سر کښې کرخه ويستله ، چه په کومو امورو کښې به دوی ته د وحی په ذریعه تعلیم نه وو ورکړې شې دې امورو کښې به دوی د اهل کتابو اتباع خوښوله خو روستو به دوی سر کښې کرخه ويستله سدل باب د نصر او د ضرب د دواړو نه راځی ، ویخته پریخودل ، زوړوندول ، سدل او فرق دواړه جائز دی ، د حضرات اصحابو دواړه قسمه معمول وو - (۱)

د باب په آخری حدیث کښې دی : "کأنی أنظر إلی وبیص الطیب فی مَفارق النبی .... قال عبد الله : فی مَفرِق النبی " .....مَفرِق ( د میم په فتحه د فاء په سکون او د راء په کسره سره ) د سر کرخې ته وائی ، عبد الله بن رجاء د جمع په ځائې د مفرد روایت کړیدې - وبیص پرق ته وائی -

## ۶۹=بَاب الذَّوَائِبِ

[۵۵۷۵] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ عَنْبَسَةَ أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بِتُّ لَيْلَةً عِنْدَ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ خَالَتِي وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فِي لَيْلَتِهَا قَالَ فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنْ اللَّيْلِ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ قَالَ فَأَخَذَ بِذُؤَابَتِي فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا أَبُو بِشْرٍ بِهَذَا وَقَالَ بِذُؤَابَتِي أَوْ بِرَأْسِي [ر:۱۱۷]

**ذوائب:** د ذُؤابة جمع ده زلفو او کونځو ته وائی ، ، روایت د باب کښې حضرت ابن عباس فرمائی چه رسول الله ﷺ څه د زلفو نه اونیولم او ښی طرف ته ئې اودرولم ، معلومه شوه چه زلفې ساتل جائز دی چه حضور ﷺ پرې څه رد اونکړو -
سړو دپاره د ویختو نه کونځۍ جوړول مکروه دی (۲) خو د زلفو په صورت کښې لړې اوږدې ساتل بې د کراهته جائزدې اود سنن ترمذی په یوحدیث کښې دحضور ﷺ نه ثابته هم ده(۳)

## ۷۰=بَاب الْقَزَعِ

[۵۵۷۶\۵۵۷۷](۴) حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ قَالَ أَخْبَرَنِي مَخْلَدٌ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي

---

[۱]) الابواب و التراجم : ۱۲\۱۱۰ )

[۲]) العرف الشذی علی جامع الترمذی ، کتاب اللباس ، باب بلا ترجمة : ۱\۳۰۸ ، الفتاوی الهندیة ، کتاب الکراهیة ، الباب التاسع عشر فی الختان و الخضاء و قلم الأظفار ..... ۵\۳۵۷ )

[۳]) عن أم هانی قالت : قدم رسول الله صلی الله علیه و سلم مکة ، وله أربع غدائر ، و فی روایة عنها : له أربع ضفائر ( جامع الترمذی ، کتاب اللباس ، باب دخول النبی صلی الله علیه و سلم مکة : ۴\۲۴۶ ) ( رقم الحدیث : ۱۷۸۱ )

[۴]) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب اللباس ، باب کراهة القزع : ۳\۱۶۷۵ ( رقم الحدیث : ۲۱۲۰ ) و أخرجه أبوداود فی کتاب الترجل،باب فی الذؤابة: ۴\۸۳ (رقم الحدیث : ۴۱۹۳) ...[بقیه برصفحه آئنده....

عُبَيْدُ اللهِ بْنُ حَفْصٍ أَنَّ عُمَرَبْنَ نَافِعٍ أَخْبَرَهُ عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى عَبْدِ اللهِ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْقَزَعِ قَالَ عُبَيْدُ اللهِ قُلْتُ وَمَا الْقَزَعُ فَأَشَارَ لَنَا عُبَيْدُ اللهِ قَالَ إِذَا حَلَقَ الصَّبِيَّ وَتَرَكَ هَا هُنَا شَعَرَةً وَهَا هُنَا وَهَا هُنَا فَأَشَارَ لَنَا عُبَيْدُ اللهِ إِلَى نَاصِيَتِهِ وَجَانِبَيْ رَأْسِهِ قِيلَ لِعُبَيْدِ اللهِ فَالْجَارِيَةُ وَالْغُلَامُ قَالَ لَا أَدْرِي هَكَذَا قَالَ الصَّبِيُّ قَالَ عُبَيْدُ اللهِ وَعَاوَدْتُهُ فَقَالَ أَمَّا الْقُصَّةُ وَالْقَفَا لِلْغُلَامِ فَلَا بَأْسَ بِهِمَا وَلَكِنَّ الْقَزَعَ أَنْ يُتْرَكَ بِنَاصِيَتِهِ شَعَرٌ وَلَيْسَ فِي رَأْسِهِ غَيْرُهُ وَكَذَلِكَ شَقُّ رَأْسِهِ هَذَا وَهَذَا

[٥٥٧٧] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُثَنَّى بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الْقَزَعِ

**قزع** ( د قاف او د زاء په فتحه سره ) معنى ده د سر د ويختو څه حصه خرول او څه پريخودل، يا د مختلف ځايونو نه د سر ويخته خرولو ته قزع وائى - (١)

امام نووى رحمه الله په دې د مكروه تنزيهى كيدو اجماع رانقل كړيده ، او ديكښې نر او ښځه دواړه برابر دى - (٢)

روايت د باب كښې د حضرت ابن عمر شاګرد نافع د دوى نه نقل كوى چه رسول الله ﷺ د قزع نه منع كړيده ، **قلت: وما القزع.....** راوى عبيد الله بن حفص وائى چه ما عمر بن نافع نه دقزع د تفسير تپوس اوكړو ، د مسلم په روايت كښې دى چه **قلت لنافع: وما القزع** يعنى عبيد الله د عمر بن نافع په ځائې د نافع نه د قزع تفسير پوښتلې وو ... (٣)

نافع چه ددې كوم جواب وركړيدې د هغې نقل كولو سره عبيد الله د دې خودنه په اشاره هم اوكړه ، نافع اوويل چه د ماشوم سر اوخرولې شى او دې دې ځائې كښې ويخته پريخودې شى عبيد الله تندى او د سر دواړو اړخونو ته اشاره اوكړه ، عبيد الله نه تپوس اوشو چه دا حكم د جينې دپاره دې او كه د هلك دپاره نو ده اوويل : ما ته نور نه دې معلوم خو د " صبى " ( د ماشوم ) لفظ ئې ويلې وو -

عبيد الله وائې چه ما د عمر بن نافع نه په دوباره تپوس اوكړو نو دوى اوويل : د كپرې او د څټ د ويختو اخستو كښې څه باك نشته دې خو قزع مكروه دې ، چه دنور سر ويخته اوخرولې شى او صرف د تندې ويخته پريخودې شى ، دارنګه نيم سر خرول او نيم پريخودل هم جائز نه دى -

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة ، باب النهى عن القزع : ٥\٤٠٧ ( رقم الحديث : ٩٢٩٨ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الزينة ، باب النهى عن القزع : ١\١٢٠١ ( رقم الحديث : ٣٦٣٧ )

(١) عمدة القارى : ٢٢\٥٧ ، فتح البارى : ١٠\٤٤٦ ، إرشاد السارى : ١٢\٦٠٣ ، مجمع بحارالأنوار : ٤\٢٦٧ ، النهاية لابن الاثير : ٤\٥٩ ، شرح البخارى للكرمانى : ٢١\١٢١ )

(٢) شرح صحيح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب كراهة القزع : ٢\٢٠٤ )

(٣) صحيح مسلم ، كتاب اللباس و الزينة ، باب كراهة القزع : ٣\١٦٧٥ ( رقم الحديث : ٢١٢٠ )

حدیث کښې فأشار لنا عبیدالله دوه ځله په تکرار سره راغلې دې ، چه دینه په ترکیب کښې څه اشکال پیدا کیږي ، حال دا دې چه یو ځل کافی وو - (۱)

القُصّة نه دلته د کیږئ ویخته مراد دی ، شارحین فرمائی " وهی هنا شعر الصدغین " - (۲)

قزع مکروه دې ځکه چه یو خو دا ډیر بې خرته کار دې (بد ښکاری) ، دویم دا د یهودیانو شعار او د دوی طریقه وه - (۳)

## ۷۷=بَابُ تَطْيِيبِ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا بِيَدَيْهَا

[۵۵۷۸] (۴) حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَيَّبْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِي لِحُرْمِهِ وَطَيَّبْتُهُ بِمِنًى قَبْلَ أَنْ يُفِيضَ [ر:۱۴۶۵]

ښځه خاوند ته په خپل لاسونو خوشبو لګولې شی ځکه چه حدیث د باب کښې د حضرت عائشه فرمان دې چه ما رسول الله ﷺ ته د احرام تړلو په وخت خپل لاس سره خوشبو اولګوله.اود طواف افاضه (طواف زیارت) نه وړاندې منی کښې مې ورته خوشبو اولګوله.

لحُرمه: حُرْم (د حاء په ضمه او د راء په سکون سره) احرام ته وائی ، په حالت د احرام کښې خوشبو لګول خو جائز نه دې ، دلته ئې دا څنګه اوویلې ؟ علامه عینی فرمائی :"واجیب بأن مرادها قبل طواف الزيارة أى قبل أن يفيض إلى الطواف ، وهو عند التحلل الأول ، وهو بعد الرمى يوم النحر و الحلق ، وتحل به جميع المحرمات إلا الجماع (۵)

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۴۴۶ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۵۸ ، إرشاد الساری : ۱۲ \ ۶۰۴ ، شرح البخاری للکرمانی : ۲۱\۱۲۲ )

(۲) فتح الباری : ۱۰\۴۴۷ ، عمدة القاری : ۲۲\۵۸ ، إرشاد الساری : ۱۲\۶۰۴ )

(۳) فتح الباری : ۱۰ \ ۴۴۷ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۵۸ ، إرشاد الساری : ۱۲ \ ۶۰۴ ، شرح البخاری للکرمانی : ۲۱\۱۲۱ )

(۴) قال الحافظ ابن حجر : کذن فقه هذه الترجمة من جهة الإشارة إلى الحديث الوارد فی الفرق بين طيب الرجل و المرأة ، و أن طيب الرجل ما ظهر ريحه و خفی لونه ، و المرأة بالعكس .فلو كان ذلک ثابتا لا متعنت المرأة من تطيب زوجها لما يعلق بيديها و بدنها منه حالة تطييبها له . و كان لكفيه أن يطيّب نفسه ، فاستدل المصنف بحديث عائشة المطابق للترجمة و قد تقدم مشروحا فی الحج و هو ظاهر فيما ترجم له . و الحديث الذی أشاره إليه أخرجه الترمذی و صححه الحاكم من حديث عمران بن حصين . وله شاهد عن أبی موسى الأشعرى عند الطبرانی فی الأوسط ووجه التفرقة : أن المرأة مأمورة بالاستتار حالة بروزها من منزلها ، و الطيب الذی له رائحة لو شرع لها كانت فيه زيادة فی الفتنة بها .و إذا كان الخبر ثابتا . فالجمع بينه و بين حديث الباب أن لها مندوحة أن تغسل أثر . اذا أرادت الخروج لأن منعها خاص بحالة الخروج . و الله أعلم ( فتح الباری : ۱۰\۴۴۷ )

(۵) عمدة القاری : ۲۲ \ ۵۹ )

یعني په لسم تاریخ د رمی او د حلق کولو نه د جماع نه ماسوا د احرام نورې تمامې پابندئ پورته شی خوشبو لګولې شی ، په حدیث د باب کښې د احرام هم دا وخت مراد دې -

## ۷۲=بَاب الطِّيبِ فِي الرَّأْسِ وَاللِّحْيَةِ

[۵۵۷۹] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَطْيَبِ مَا يَجِدُ حَتَّى أَجِدَ وَبِيصَ الطِّيبِ فِي رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ [ر:۲۶۸]

(۱) د سر او د ګیرې په ویختو کښې خوشبو لګول په سنت سره ثابت دی ، حضرت عائشه فرمائی چه ما به رسول الله ﷺ ته بهترین خوشبو لګوله تر دې چه د دوی په ګیره او په سر کښې به د خوشبو پرق پاتې وو -

## ۷۳=بَاب الِامْتِشَاطِ

[۵۵۸۰] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ مِنْ جُحْرٍ فِي دَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُكُّ رَأْسَهُ بِالْمِدْرَى فَقَالَ لَوْ عَلِمْتُ أَنَّكَ تَنْظُرُ لَطَعَنْتُ بِهَا فِي عَيْنِكَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِذْنُ مِنْ قِبَلِ الْأَبْصَارِ [ر:۵۸۸۷، ۶۵۰۵]

امام بخاری دې باب کښې د ګمنزې استحباب بیانول غواړی -

حضرت سهل بن سعد فرمائی : چه یو سړی په سوری کښې د رسول الله ﷺ کور ته اوکتل دې وخت کښې دوی ﷺ په سر مبارك کښې ګمنز وهله ، نو دوی ﷺ اوفرمائل :که ما ته علم وې چه ته دیکښې ګورې نو ما به دا د ستا په سترګو کښې درمنډلې وه ، د کتلو دپاره اجازت مقرر شویدې ( که د اجازت نه وړاندې په کور کښې اوګورې نو بیا د اجازت اخستو څه فائده ؟ ...... )

مِدْرَی ( د میم په کسره او د دال په سکون او د راء په فتحه سره ) ګمنز ته وائی ، بعضې وائی چه دا یو لرګې وی چه ښځې د ویختو راغونډولو دپاره ئې په سر کښې لګوی ( کیلپ ) او بعض وائی چه دا یو لرګې وی چه دیکښې د ګمنز په شان غاښ وی - (۲)

---

(۱) ۵۵۸۰ ) الحدیث أخرجه البخاری أیضا فی کتاب الإستیذان ، باب الإستیذان من أجل البصر ( رقم الحدیث : ۵۸۸۷ ) و أخرجه أیضا فی الدیات ، باب من أطلع فی بیت قوم ففقؤا عینه ، فلا دیة له ( رقم الحدیث : ۶۵۰۵ ) و أخرجه مسلم فی کتاب الأب ، باب تحریم النظر فی بیت غیره : ۳\۱۶۹۸ ( رقم الحدیث : ۲۱۵۶ ) و أخرجه الترمذی فی کتاب الإستیذان ، باب من أطلع فی دار قوم بغیر إذنهم : ۵\۶۴ ( رقم الحدیث : ۲۷۰۹ ) و أخرجه النسائی فی کتاب القسامة ، باب ذکر حدیث عمرو بن حزم فی العقول و إختلاف الناقلین له : ۴\۲۴۷ ( رقم الحدیث : ۷۰۶۴ )

(۲) عمدة القاری : ۲۲\۶۰، شرح البخاری للکرمانی: ۲۱\۱۲۳ ،و فی مجمع بحار الأنوار:[بقیه برصفحه آئنده.

د مِدْرى معنى چه د ګمنز واخستې شى نو د حديث د باب سره مناسبت سره بالکل ظاهره دې او که ددې نورې معنى مراد شى نو بيا په طريقه د مقايسه د روايت ترجمة الباب سره مناسبت دې - (۱)

## ۷۴=بَاب تَرْجِيلِ الْحَائِضِ زَوْجَهَا

[۵۵۸۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أُرَجِّلُ رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا حَائِضٌ
حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ مِثْلَهُ [ر: ۲۹۱، ۲۹۲]

حائضه ښځه خپل خاوند لره ګمنز کولې شى لکه چه حديث د باب کښې دى -

## ۷۵=بَاب التَّرْجِيلِ وَالتَّيَمُّنِ

[۵۵۸۲] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَشْعَثَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَائِشَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يُعْجِبُهُ التَّيَمُّنُ مَا اسْتَطَاعَ فِي تَرَجُّلِهِ وَوُضُوئِهِ [ر: ۱۶۶]

د ابوذر په نسخه کښې دى " باب الترجيل و التيمن " هندوستانى نسخو کښې او بعض نورو نسخو کښې " باب الترجل " دې ، رسول الله ﷺ به تيمن يعنى د ښى طرف نه شروع کول خوښول ، ګمنز کولو او اودس کولو کښې به دوى د ښى طرف نه شروع کوله ، ګمنز کول هم مستحب دې ځکه چه دا د نظافت او د پاکيدو ذريعه ده -

ددې بابونو او د احاديثو نه د دنيا اسباب او جائز زيب و زينت پريخودونکو د هغه بدبختو خلقو خيال واضح طور باندې غلط کيدل ثابتيږى چه هغوى دا خيال کوى چه د الله د طالبانو او د آخرت د فکر کوونکو دپاره د خپل صورت او هيئت او د لباس د حسن او د قبح نه بې پروا کيدل پکار دى خيرن خيچن او په بد حال او په ګډو وډو ويختو کښې اوسيدل پکار دى او د صفائې او د پاکئ او د صورت او د لباس د ښائسته کولو فکر او ديکښې د ښائست خوښوالې د دوى په نزد ګويا د دنيا دارئ خبرې دى ، چه کوم خلق داسې ګوى هغوى بې شك او شبه د رسول الله ﷺ د تعليم او د هدايت او د دوى د راوړې

...بقيه ازحاشيه ګذشته] المدرى و المدارة شىء يعمل من حديد أو خشب على شكل سن من أسنان المشط و أطول منه يسرح به الشعر المتلبّد و يستعمله من لا مشط له..... مجمع بحارالأنوار: ۲ \ ۱۷۰ ،النهاية لابن الاثير: ۲ \ ۱۱۵ ، و قال الحافظ ابن حجر : المدى تطلق على نوعين : أحدهما صغير يتخذ من أبنوس أو عاج أو حديد يكون طول المسلة يتخذ لفرق الشعر فقط و هو مستدير الرأس على هيئة نصل السيف بقبضة و هذه صفته : ●—— ثانيهما كبير و هو عود مخروط من آبنوس أو غيره ، وفى رأسه قطعة منحوتة فى قدر الكف ، ولها مثل الأصابع أولاهن معوّجة مثل حلق الإبهام المستعمل للتسريح و يحك الرأس والجسدوهذ صفته: ●——☰ فتح البارى : ۱۰\ ۴۴۹)

۱) الابواب والتراجم : ۲\ ۱۱۱ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۶۰)

شوي شريعت د مزاجه بې خبره دی -
خو د صورت او د لباس وغيره د ډول او ښنګار د حد نه زيات اهتمام او دې دپاره فضول او بې ځايه تکلفات کول هم ناخوښه او د شريعت د مزاج نه خلاف دی -

## ٧٦=باب مايذكر في المسك

[٥٥٨٣] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ عَمَلِ ابْنِ آدَمَ لَهُ إِلَّا الصَّوْمَ فَإِنَّهُ لِي وَأَنَا أَجْزِي بِهِ وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ [ر: ١٧٩٥]

امام مسلم او امام ابوداود رحمهما الله د رسول الله ﷺ مرفوع حديث نقل کړيدې چه " إن المسك أطيب الطيب " يعنى مشك د ټولو نه ښه خوشبو ده (١) روايت د باب کښې دی چه د روژه دار د خُلې بوئې د الله تعالى په نزد د مشکو د بوئې نه زيات ښه دې ، خُلُوف د لوږې او د تندې د لاسه چه د روژه دار په خُله کښې کوم بوئې پيدا کيږی هغې ته وائى - (٢)

د أطيب معنې ئې بيان کړيده " أى خلوف الصائم أقبل عند الله من قبول ريح المسك عندكم يعنى د روژه دار د خُلې بوئې د الله تعالى په نزد زيات مقبول دې دډېره چه ښنګه د ستاسو په نزد د مشك بوئې مقبول دې - (٣)

## ٧٧=باب ما يستحب من الطيب

[٥٥٨٤] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أُطَيِّبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ إِحْرَامِهِ بِأَطْيَبِ مَا أَجِدُ [ر: ١٤٦٥]

ښه او د بهتر نه بهتر خوشبوئې استعمالول مستحب دی ، اعلى خوشبو وی نو هم دا استعمالول پکار دی ، د اعلى په وجود کښې د ادنى خوشبوئې استعمالول نه دی پکار -(٤)

## ٧٨=باب من لم يرد الطيب

[٥٥٨٦] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ثُمَامَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ [ر: ١٣٦٥]

علامه عينى رحمه الله فرمائى : أى هذا باب فى ذكر من لم يرد الطيب وكأنه يريد بذلك أن النهى عن رده

---

(١) صحيح مسلم ، كتاب الألفاظ من الأدب ، باب استعمال المسك و أنه أطيب الطيب : ٤ \ ١٧٦٥ ( رقم الحديث:٢٢٥٢)وأخرجه أبوداود فى كتاب الجنائز،باب فى المسك للميت: ٣ \ ٢٠٠ (رقم الحديث : ٣١٥٨)

(٢) عمدة القارى : ٢٢ \ ٦١ ، إرشاد السارى : ١٢ \ ٦٠٨ ، شرح البخارى للكرمانى : ٢١ \ ١٢٤ )

(٣) عمدة القارى : ٢٢ \ ٦١ ، شرح البخارى للكرمانى : ٢١ \ ١٢٤ ، إرشاد السارى : ١٢ \ ٦٠٨ )

(٤) فتح البارى : ١٠ \ ٤٥٢ )

ليس على التحريم (١) يعنى دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د هغه کس ذکر کړيدې چه خوشبو نه واپس کوی ، حضور ﷺ به خوشبو نه واپس کوله او په يو روايت کښې دوی د خوشبوئې واپس کولو نه منع کړيده ، امام بخاری رحمه الله شايد دې خبرې ته اشاره کوی چه دا نهی تحريمی نه ده -

حديث د باب کښې دی چه رسول الله ﷺ به خوشبوئی نه واپس کوله (کُه چا به هديه کښې ورکوله) زعم د قال په معنی دې -

بزار د حضرت انس نه روايت نقل کړيدې ، ما عرض على النبى ﷺ طيب قط فرده " (٢)

امام ابوداود د حضرت ابوهريره ﷺ نه مرفوع روايت نقل کړيدې ، من عرض عليه طيب، فلا يرده، فإنه طيب الريح، خفيف المحمل" (٣) يعنى د چا په خدمت کښې کُه خوشبوئی پيش کړې شی نو ده لره ددې واپس کول نه دې پکار ځکه چه ددې بوئی ښه دې او د خوشبو ورکوونکی باندې دا سخت بوج راولی -

## ۷۹=بَاب الذَّرِيرَةِ

[۵۵۸۶] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْهَيْثَمِ أَوْ مُحَمَّدٌ عَنْهُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُرْوَةَ سَمِعَ عُرْوَةَ وَالْقَاسِمَ يُخْبِرَانِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ طَيَّبْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ بِذَرِيرَةٍ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ لِلْحِلِّ وَالْإِحْرَامِ [ر: ۱۴۶۵]

د خوشبوئې دوه قسمونه دی يو خو د عرق او د تيلو په شکل کښې او بل د سفوف (پوډر) وغيره په شکل کښې " ذريره " د يو خاص خوشبوئې نوم دې ، امام نووی رحمه الله فرمائی چه دا په اصل کښې د لرګی نه جوړيږی چه د هند نه راځی ، داودی وائی رومبې ددې مفردات او اجزاء جمع کيږی ، بيا دا ميده کيږی اوداسې د سفوف والا خوشبوئی تياريږی (٤)

روايت د باب کښې حضرت عائشه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته خپل لاس د ذريره خوشبويی په حجة الوداع کښې د احرام تړلو او پرانستلو وخت کښې لګولې ده -

## ۸۰=بَاب الْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ

[۵۵۸۷] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ تَعَالَى مَا لِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي كِتَابِ اللَّهِ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ [ر: ۴۶۰۴]

---

(١) عمدة القاری : ۲۲\۶۱)

(٢) فتح الباری : ۱۰\۴۵۳)

(٣) أخرجه أبوداود فی کتاب الترجل ، باب فی رد الطيب : ۴\۷۸ ( رقم الحديث : ۴۱۷۲ )

(٤) فتح الباری : ۱۰\۴۵۴ ، عمدة القاری : ۲۲\۶۲)

د ښانست والى دپاره د غاښونو ارتوونكو ښځو باندې لعنت ويلې شويدې ، لكه چه حديث د باب كښې دى چه د الله لعنت دې وى په خالونو لګوونكو او چه څوك په خپل جسم خال لګوى ، او چه د مخ ويخته اوباسى او د حسن دپاره غاښونه ارتوونكو ښځو باندې چه دوى د الله تعالى پيدا كړې صورت بدلوونكى دى -

ددې حديث تشريح په كتاب التفسير كښې د سورت الحشر په تفسير كښې تيره شويده (۱)

## ۸۱=بَابُ الْوَصْلِ فِي الشَّعَرِ

[۵۵۸۸] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَقُولُ وَتَنَاوَلَ قُصَّةً مِنْ شَعَرٍ كَانَتْ بِيَدِ حَرَسِيٍّ أَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْ مِثْلِ هَذِهِ وَيَقُولُ إِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ حِينَ اتَّخَذَ هَذِهِ نِسَاؤُهُمْ [ر:۳۲۸۱]

[۵۵۸۹] (۲) وَقَالَ ابْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ [ر:۵۶۰۲]

امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د ويختو د لګولو ممانعت بيان كړيدې ، روايت د باب كښې دى چه حضرت معاويه ﷺ د حج په موقع په منبر باندې خطبه وركوله ، دوى د خپل يو سپاهى د لاسه د ويختو يو ګونجۍ واخسته او وې ويل چه د ستاسو عالمان كوم خائې دى ؟ ما د نبى كريم ﷺ نه د دې منع كول اوريدلې دى ، دوى ﷺ به فرمائل : بنو اسرائيل هلاك شو چه كله د دوى ښځو دا اختيار كړو ( يعنى چه كله د دوى ښځو د خپلو ويختو سره نور ويخته لګول شروع كړل )

قُصّة د ويختو ګونجۍ ، حَرَسِيٌّ : حفاظت كوونكې (۳)

[۵۵۹۰] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ بْنَ مُسْلِمِ بْنِ يَنَّاقٍ يُحَدِّثُ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ جَارِيَةً مِنْ الْأَنْصَارِ تَزَوَّجَتْ وَأَنَّهَا مَرِضَتْ فَتَمَعَّطَ شَعَرُهَا فَأَرَادُوا أَنْ يَصِلُوهَا فَسَأَلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ تَابَعَهُ ابْنُ إِسْحَاقَ عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ عَنْ الْحَسَنِ عَنْ صَفِيَّةَ عَنْ عَائِشَةَ [ر:۴۸۰۹]

---

[1]) كشف البارى ، كتاب التفسير : ۶۶۶ )

[2]) ۵۵۸۹ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى اللباس ، باب المستوشمة ( رقم الحديث : ۵۶۰۲ ) و أخرجه مسلم فى اللباس ، باب تحريم فعل الواصلة و المستوصلة و الواشمة و المستوشمة .... ۳\ ۱۶۷۶ ( رقم الحديث : ۲۱۲۴ )

[3]) عمدة القارى : ۲۲\ ۶۳ ، فتح البارى : ۱۰\ ۴۵۸ ، إرشاد السارى : ۱۲\ ۶۱۱ )

دويم روايت كښې دى د انصارو د يو جينئ نكاح اوشوه ، هغه بيماره شوه نو ددې د سر ويخته اووتل اودوريدل نو د خلقو دا اراده وه چه ددې په ويختو كښې جوړ اولګوو ( نور ويخته اولګوو ) خلقو د نبى ﷺ نه تپوس اوكړو نو دوى ﷺ اوفرمائل : الله په ويختو لګوونكى او چه څوك ئې په كښې لګوى په دواړو لعنت كړيدې -
د محمد ابن اسحاق متابعت محاملى موصولا نقل كړيدې - (١)

تمعّط : غورزيدل ، رژيدل ..... په راتلونكى روايت كښې تمرّق دې ددې معنى د وتلو ده ، يعنى د سر ويخته د بيخه وتل -

[٥٥٩١\٥٥٩٢] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ حَدَّثَتْنِي أُمِّي عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ إِنِّي أَنْكَحْتُ ابْنَتِي ثُمَّ أَصَابَهَا شَكْوَى فَتَمَرَّقَ رَأْسُهَا وَزَوْجُهَا يَسْتَحِثُّنِي بِهَا أَفَأَصِلُ رَأْسَهَا فَسَبَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ [ر:٥٥٩٧]

[٥٥٩٢] (٢) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنِ امْرَأَتِهِ فَاطِمَةَ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ

[٥٥٩٣] (٣) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَقَالَ نَافِعٌ الْوَشْمُ فِي اللِّثَةِ [ر:٥٥٩٦، ٥٥٩٨، ٥٦٠٣]

حضرت اسماء بنت ابى بكر ﷺ فرمائى چه يو ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او عرض ئې اوكړو چه ما د خپلې لور واده اوكړو ، بيا هغه بيماره شوه نو ددې سر ويخته اووتل ، ددې خاوند ددې په باره كښې مونږ لمسوى ( ترغيب راكوى چه ددې په سر كښې ويخته اولګوئ ) نو آيا څه ددې په سر كښې ويخته لګولې شم ؟ رسول الله ﷺ چه دا واوريدل نو په ويختو لګوونكې ښځه او چه كومه ښځه ئې ورته په كښې لګوى په دواړو ئې لعنت اوويلې -

---

١) إرشاد السارى : ١٢\٦١٢ ، فتح البارى : ١٠\٤٦٠ )

٢) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى اللباس ، باب الموصولة ( رقم الحديث : ٥٥٩٧ ) و أخرجه النسائى فى كتاب الزينة ، باب الواصلة : ٥\٤٢١ ( رقم الحديث : ٩٣٧٤ )

٣) ٥٥٩٣ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى اللباس ، باب الموصولة ( رقم الحديث : ٥٥٩٦ - ٥٥٩٨ ) و فى باب المستوشمة ( رقم الحديث : ٥٦٠٣ ) و أخرجه مسلم فى اللباس ، باب تحريم فعل الواصلة و المستوصلة و الواشمة و المستوشمة ..... ١٣\١٦٧٦ ( رقم الحديث : ٢١٢٤ ) و اخرجه الترمذى فى اللباس ، باب ما جاء فى مواصلة الشعر : ٤\٢٣٦ ( رقم الحديث : ١٧١٥٨ ) و أخرجه النسائى فى الزينة ، باب المستوصلة : ٤\٣٢١ ( رقم الحديث : ٩٣٧٧ ) و أخرجه أبوداود فى اللباس ، باب صفة الشعر : ٤\٧٧ ( رقم الحديث : ٤١٦٨ )

فتمزق :دا د راء سره هم دي او تمزق د زاء سره هم دې د دواړو يومعنى ده يعنى جُدا كيدل-(۱)

قال نافع : الوشم فى اللثة : نافع فرمايى چه په اوږو كښې هم دننه وشم كيږى -

[۵۵۹۳] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ قَدِمَ مُعَاوِيَةُ الْمَدِينَةَ آخِرَ قَدْمَةٍ قَدِمَهَا فَخَطَبَنَا فَأَخْرَجَ كُبَّةً مِنْ شَعَرٍ قَالَ مَا كُنْتُ أَرَى أَحَدًا يَفْعَلُ هَذَا غَيْرَ الْيَهُودِ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمَّاهُ الزُّورَ يَعْنِي الْوَاصِلَةَ فِي الشَّعَرِ [ر:۳۲۸۱]

د باب آخرى حديث كښې دى " فأخرج كبة من شعر " يعنى حضرت معاويه د ويختو يو ګنجۍ رااويستله ، كبة او قصة په يو معنى دى

دې حديث نه آداب مستنبط كولو كښې حافظ ابن حجر ليكى :

وفيه قيام الإمام بالنهى على المنبر، ولا سيما إذا رآه فاشيا، فيفشى إنكاره تاكيدا ليحذر منه، وفيه إنذار من عمل المعصية بوقوع الهلاك بمن فعلها قبله كما قال تعالى : (و ما هى من الظالمين ببعيد) و فيه جواز تناول الشيء فى الخطبة ليراه من لم يكن رآه لمصلحة الدينية، وفيه إباحة الحديث عن بنى اسرائيل، و كذا غيرهم من الأمم للتحذير مما عصوا فيه(۲)

يعنى ددې حديث نه يو خبره خو دا معلومه شوه چه د شريعت نهى د منبر د سر دپاسه بيانول پكار دى كرچه كله دا خوريږى ، داسې صورت كښې خو ددې بر سر عام ترديد او رد پكار دى ، دويمه خبره دا معلومه شوه چه ګناه كوونكو ته د تيرو شوو ګناهګارو د هلاكت انجام خودل او يرول پكار دى - دريمه خبره دا معلومه شوه چه د خطبې دوران كښې په لاس كښې يو څيز راخستل دې دپاره چه خلقو ته ئې اوښائى او دوى پرې پوهه كړى جائز دى ، لكه چه حضرت معاويه دغه ګنجۍ د ويختو په لاس كښې واخسته او خلقو ته ئې اوخودله، څلورمه خبره دا معلومه شوه چه دبنى اسرائيلو او د نورو امتونو قصې او واقعات خلقو ته اورول روا دى دې دپاره چه دوى دګناهونو نه بچ شى او اويريږى -

فائده :د ښځې دپاره چه څنګه د سر په ويختو كښې نور ويخته لګول جائز نه دى داسې سر خرئيل ورلره هم جائز نه دى، طبرى دحضرت ابن عباس روايت نقل كړيدې "نهى النبى صلى الله عليه وسلم أن تحلق المرأة رأسها" (۳)(رسول الله ﷺ ښځې د سر د ويختو د خرولونه منع كړيدى) امام ابوداود هم دا حديث په دې الفاظو رانقل كړيدې " ليس على النساء حلق، إنما على النساء التقصير" (۴) په ښځو باندې ( د احرام نه وتلو دپاره ) حلق نشته دې ، بلكه دوى به تقصير

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۴۶۰ ، إرشاد السارى : ۱۲\۶۱۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۶۵ ، شرح البخارى للكرمانى : ۲۱\۱۲۸ )

(۲) فتح البارى : ۱۰\۴۶۱ )

(۳) فتح البارى : ۱۰\۴۵۹ )

(۴) أخرجه أبوداود فى كتاب الحج . باب الحلق و التقصير : ۲\۲۰۳ ( رقم الحديث : ۱۹۸۴ )

کوی یعنی ویخته به واړه کوی -)

**د ویختو سره نور ویخته لګولو حکم** : فقهاء حضراتو په نزد د ویختو سره د څه څیز لګولو په تفصیل کښې اختلاف دې :

① بعضو مطلقا وصل ممنوع ګرځولې دې ، برابره خبره ده چه هغه د سړی ویخته وی او ګه د سړی نه علاوه د بل څه وی او ګه د ریښمو او د جامو تارونه وی ، د ویختو سره د داسې څه څیز لګول مطلقا ممنوع دی -

مالکیه حضرات او اکثر شافعیان حضراتو دا قول اختیار کړیدې -([1])

② دانسان ویخته لګول خو مطلقا ممنوع دی دارنګه د انسان نه علاوه د یو بل څیز نجس ویخته هم لګول جائز نه دی ، لکه د مردار څناور ویخته خو د انسان نه علاوه د بل څیز پاك ویخته لګول جائز دی دا د احنافو حضراتو ، حنابله او د بعض شوافعو مسلك دې ([2]) لکه چه عالمګیریه کښې دی : ووصل الشعر بشعر الآدمی حرام، سواء کان شعرها أو شعر غیرها .... ولا بأس للمرأة أن تجعل فی قرونها و ذوائبها شیئا من الوبر([3])

امام محمد رحمه الله په موطا کښې فرمائی : ولا بأس فی الرأس إذا کان صوفا، فأما الشعر من شعور الناس فلا ینبغی، وهو قول أبی حنیفة والعامة من فقهائنا([4])

③ دریم قول دا دې چه د ویختو سره ویخته لګول ممنوع دې او د ویختو سره بل داسې څیز لګول هم ممنوع دی چه په هغې د ویختو ګمان کیږی خو ګه داسې څه التباس نه راځی نو بیا جائز دې -([5])

حافظ ابن حجر رحمه الله دې قول ته ترجیح ورکړیده -([6])

## ۸۲=بَابُ الْمُتَنَمِّصَاتِ

[۵۵۹۵] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ لَعَنَ عَبْدُ اللَّهِ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ فَقَالَتْ أُمُّ يَعْقُوبَ مَا

---

[1]) أوجز المسالک فی کتاب الشعر ، باب السنة فی الشعر : ۱۵\۱۳۱)

[2]) الدر المختار : کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی النظر و المس : ۵ \ ۲۶٤ ،بذل المجهود فی کتاب الترجل ، باب فی صلة الشعر : ۱۶ \ ۵۸ ، المغنی لابن قدامة " حکم وصل الشعر " فصل ( بلا ترجمة ) : ۱۱ ۳۸ ، أوجز المسالک کتاب الشعر ، باب ما جاء فی السنة فی الشعر : ۱۵\۱۳)

[3]) الفتاوی الهندیة ، کتاب الکراهیة ، الباب التاسع عشر فی الختان و الخصاء و قلم الأظفار وقص الشارب ..... : ۵\۳۵۸)

[4]) الموطا للإمام محمد ، باب المرأة تصل شعرها بشعر غیرها ص \ ۳۸۳)

[5]) بذل المجهود ، کتاب الترجل ، باب فی صلة الشعر : ۱۷ \ ۵۸ ، أوجز المسالک ، کتاب الشعر ، باب فی السنة فی الشعر : ۱۵\۱۱)

[6]) فتح الباری : ۱۰\۴۵۹)

هٰذَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَمَا لِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ وَفِي كِتَابِ اللّٰهِ قَالَتْ وَاللّٰهِ لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُهُ قَالَ وَاللّٰهِ لَئِنْ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا [ر: ۴۶۰۴]

مُتَنَمِّصات دا جمع د متنمصة ده دا د تنمص نه دي چه ددې معنی د ویختو ویستلو راخی ،
نامصة: هغه ښځه ده چه د مخ نه ویخته اوباسی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه نامصة هغه ښځې ته وایی چه بانړه جوړوی او روزې نرئ کوی - (۱)

متنمصة هغه ښځې ته وائی چه نمص طلب کوی یعنی په نورو ښځو باندې ویخته اوباسی - (۲) عموما ښځې د مخ د اړخونو نه او د روزو جوړولو او نری کولو دپاره په نورو ښځو ویخته اوباسی ، د حدیث د باب په وجه داسې کول ناجائز او حرام دی
خو که د یوې ښځې په مخ گیره یا زیاتی ویخته رااوخیژی نو ددې د صفا کولو اجازت شته دې - (۳) او دا په دې وعید کښې داخله نه ده بلکه امام نووی رحمه الله دیته مستحب ویلې دی - (۴)

## ۸۲= بَابُ الْمَوْصُولَةِ

[٥٥٥٥] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ لَعَنَ عَبْدُ اللّٰهِ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللّٰهِ فَقَالَتْ أُمُّ يَعْقُوبَ مَا هٰذَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَمَا لِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ وَفِي كِتَابِ اللّٰهِ قَالَتْ وَاللّٰهِ لَقَدْ قَرَأْتُ مَا بَيْنَ اللَّوْحَيْنِ فَمَا وَجَدْتُهُ قَالَ وَاللّٰهِ لَئِنْ قَرَأْتِيهِ لَقَدْ وَجَدْتِيهِ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا [ر: ۴۶۰۴]

موصولة: دا هغه ښځه ده چه ددې په سر کښې ویخته لګیدلې وی ، دې باب کښې ددې مذمت بیان کړې شویدې

قوله: أَصَابَتْهَا الْحَصْبَةُ: حصبة ( د حاء په فتحه او د صاد په سکون سره ) د یو بیمارئ نوم دې چه دیکښې په بدن کښې وړې وړې سرې دانې رااوخی -
حافظ ابن حجر فرمائی : چه دا د چیچك یو قسم دې (۵)
بعضو په اردو کښې د دې ترجمه په " خسره " سره کړیده - (۶)

---

۱) أخرجه أبوداود فی کتاب الترجل ، باب فی صلة الشعر : ۴\۷۸ ( رقم الحدیث : ۴۱۷۰ )
۲) إرشاد الساری : ۱۲\۶۱۵ ، فتح الباری : ۱۰\۴۶۱ ، عمدة القاری : ۲۲\۶۶ )
۳) فتح الباری : ۱۰\۴۶۲ . إرشاد الساری : ۱۲\۶۱۵ )
۴) شرح مسلم للنووی ، کتاب اللباس ، باب تحریم فعل الواصلة : ۲\۲۰۵ )
۵) فتح الباری : ۱۰\۴۶۲ )
۶) القاموس الوحید : ض\۳۴۵ )

قوله: قـال النبی صلی الله علیه وسلم: لعن الله الواشمة ......... یعنی لعن النبی صلی الله علیه وسلم: حافظ ابن حجر فرمائی چه د حدیث په آخر کښې " یعنی لعن النبی صلی الله علیه وسل " تفسیری جمله ښه سمه واضحه نه ده چه ددې څه مطلب دې، هو داسې ویلې کیدې شی چه الله تعالی دا لعنت د نبی ﷺ د ژبې په ذریعه رالیږلې وی یا اوویلې شی چه د الله تعالی د لعنت په وجه رسول الله ﷺ هم لعنت اوویلې - (۱)

په څو مصری نسخو کښې د حدیث عبارت داسې دی " قال النبی الواشمة و المستوشمة ...... یعنی لعن النبی صلی الله علیه وسلم " په دې صورت کښې دا تفسیر بالکل واضح دې چه " د الواشمة ... " نه وړاندې د " لعن " لفظ پاتې شوې دې نو دې وجه نه راوی د دې تصریح اوکړه او " لعن النبی .... "ئې اوویلې -(۲)

## ۸۴=بَابُ الْوَاشِمَةِ

[۵۶۰۰] حَدَّثَنِي يَحْيَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَيْنُ حَقٌّ وَنَهَى عَنِ الْوَشْمِ حَدَّثَنِي ابْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ذَكَرْتُ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ حَدِيثَ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ فَقَالَ سَمِعْتُهُ مِنْ أُمِّ يَعْقُوبَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ مِثْلَ حَدِيثِ مَنْصُورٍ [ر: ۵۳۰۸]

[۵۶۰۱] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ قَالَ رَأَيْتُ أَبِي فَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ وَثَمَنِ الْكَلْبِ وَآكِلِ الرِّبَا وَمُوكِلِهِ وَالْوَاشِمَةِ وَالْمُسْتَوْشِمَةِ [ر: ۱۹۸۰]

## ۸۵=بَابُ الْمُسْتَوْشِمَةِ

[۵۶۰۲] حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أُتِيَ عُمَرُ بِامْرَأَةٍ تَشِمُ فَقَامَ فَقَالَ أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ مَنْ سَمِعَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْوَشْمِ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَقُمْتُ فَقُلْتُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَنَا سَمِعْتُ قَالَ مَا سَمِعْتَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تَشِمْنَ وَلَا تَسْتَوْشِمْنَ [ر: ۵۵۸۹]

[۵۶۰۳] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَعَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ [ر: ۵۵۹۳]

---

(۱) فتح الباری: ۱۰\۶۳۱)
(۲) الابواب و التراجم: ۲\۱۱۱، إرشاد الساری: ۱۲\۶۱۷، عمدة القاری: ۲۲\۶۷)

[۵۶۰۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَعَنَ اللَّهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللَّهِ مَا لِي لَا أَلْعَنُ مَنْ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي كِتَابِ اللَّهِ [ر: ۴۶۰۴]

وَشم خال لګولو ته وائی ، چه په بدن کښې ستن وغیره ننوځ ننوځ وهلې کیږی او بیا دا ځائې د یو رنګ نه ډك کړی ، دې عمل ته وشم ویلې کیږی - (۱) چه کومه ښځه دا عمل کوی هغې ته واشمه وائی چه د کومې ښځې سره دا عمل کیږی هغې ته موشومه وائی چه کوم د دې عمل مطالبه کوی دیته مستوشمه وائی ، وشم د جمهورو عالمانو په نزد حرام دې (۲) ځکه چه الله تعالی او د الله تعالی رسول د دې عمل په کونکو باندې لعنت ویلې دې ، بعض دیته مکروه تحریمی وائی - (۳)

**یو اشکال او ددې جواب** : طبری د قیس بن حازم نه په صحیح سند سره روایت نقل کړیدې هغه فرمائی "دخلت مع أبي على أبي بكر الصديق، فرأيت يد أسماء موشومة" (۴)

د دې یو جواب خو دا ورکړې شویدې چه دا د قبل النهی واقعه ده او دویم جواب دا ورکړې شویدې چه ممکن ده چه د نهی حدیث دوی ته نه وی رارسیدلې - (۵)

**چه په کوم اندام خال یا څه بل نقش لګیدلې وی د هغې د طهارت حکم** : دا خبره باقی پاتې کیږی چه د جسم په کومه حصه باندې نقش شوې وی د هغې په طهارت کښې څه حکم دې؟ امام نووی رحمه الله لیکلې دی چه دا حصه نجس کیږی دې وجه نه دیکښې چه کوم رنګ وغیره لګیدلې وی د هغې صفا کول واجب دی ، خو که د اندام د هلاك کیدو ویره وی نو بیا لرې کول ددې واجب نه دی ، دا د شوافعو مسلك دې - (۶)

د احنافو حضراتو مسلك دا دې چه کله وینه اودریده او زخم جوړ شو او صرف رنګ سور یا شین پاتې شو نو اوس ددې زائله کول واجب نه دی ، بلکه په دې چه اوبه واچولې شی نو دا طهارت به حاصل شی ، چه څنګه په ګیره کښې د خضاب لګولو نه پس چه په ګیره کښې اوبه واچولې شی نو د طهارت حکم حاصلیږی - (۷)

---

۱) إرشاد السارى : ۱۲\۶۱۸ ، فتح البارى : ۱۰\۴۵۵ ، عمدة القارى : ۲۲\۶۳ ، النهاية لابن الاثير : ۱۵\۱۸۹ ، مجمع بحار الانوار : ۵\۵۸ )
۲) شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب تحريم فعل الواصلة الخ : ۲\۲۰۵ )
۳) فتح البارى : ۱۰\۴۶۱ )
۴) فتح البارى : ۱۰\۴۶۱ ، إرشاد السارى : ۱۲\۶۱۳ )
۵) فتح البارى : ۱۰\۴۶۱ ، إرشاد السارى : ۱۲\۶۱۳ )
۶) شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب تحريم فعل الواصلة : ۲\۲۰۵ )
۷) رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الطهارة ، مطلب في حكم الوشم : ۱\۲۴۲ )

# ۸۶ = باب التصاوير

[۵۶۰۵] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ وَلَا تَصَاوِيرُ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ سَمِعْتُ أَبَا طَلْحَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۳۰۵۳]

تصاوير د تصوير جمع ده ، دې باب کښې امام بخارى رحمه الله د تصوير حکم بيانوى -

**قوله: لا تدخل الملائكة بيتا فيه كلب:** دلته د ملائکو په باره کښې دوه قوله دى ، علامه خطابى وغيره څو عالمانو فرمائلې دى چه د ينه هغه فرشتې مستثنى دى چه کومې د انسان عملونه ليکلو باندې مامور دى ځکه چه دوى د انسان نه هيڅ وخت هم نه جدا کيږى ، دې وجه نه دينه د رحمت وغيره فرشتې مراد دى - (۱)

خو علامه قرطبى او د نورو عالمانو دا خيال دې چه لفظ عام دې او ديکښې هيڅ تخصيص نشته دې ، دې وجه نه دينه تمامې فرشتې مراد دى ، هيڅ يو استثناء په کښې نشته دې ، باقى د عملونو د نګرانئ والا فرشتو باره کښې ويلې شې چه دوى د کوره بهر اوسى او الله دوى ته د کور دننه خلقو د عملونو د معلومولو صلاحيت ورکړيدې - (۲)

بيت نه مراد هر هغه ځائې دې چه هلته انسان اوسيږى او کلب نه مراد د هر قسم سپى دى ، علامه خطابى وغيره د ضرورت په وجه د ساتونکى سپى استثناء کړيده ، چه د ښکار او د حفاظت په غرض سره چه کوم سپې اوساتلې شى نو هغه ديکښې داخل نه دې - (۳)

خو د علامه قرطبى او د امام نووى رجحان عموم طرف ته دې ځکه چه حديث کښې داسې د هيڅ څه تخصيص هم نه دې شوې - (۴)

احتياط هم ديکښې دى چه د ضرورت دپاره کوم سپې اوساتلې شى هغه کور کښې دننه ساتلو په ځائې بهر چرته خواوشاه کښې اوساتلې شى -

سپې په خپله هم نجس او نجاستونه خورى هم ، دې وجه نه فرشتې داسې کور ته نه ځى چه کوم ځائې دا نجس وى - (۵)

يو دريم مطلب د دې جملې دا هم بيان شويدې چه ديکښې نفى د مطلق دخول نه ده بلکه د يو خاص صفت والا د دخول نفى ده او مطلب دا دې چه فرشتې داسې کور ته په هغه اطمينان او په رضا نه داخليږى چه کوم اطمينان او رضا سره هغه کور ته ورځى چه هلته

---

(۱) إرشاد السارى : ۱۲\۶۲۱ ، فتح البارى : ۱۰\۴۶۶ ، عمدة القارى : ۲۲\۶۹)

(۲) فتح البارى : ۱۰\۴۶۶)

(۳) إرشاد السارى : ۱۲\۶۲۱ ، فتح البارى : ۱۰\۴۶۶ ، عمدة القارى : ۲۲\۶۰)

(۴) إرشاد السارى : ۱۲\۶۲۱ ، فتح البارى : ۱۰\۴۶۷ ، شرح مسلم للنووى ، كتاب اللباس ، باب تحريم صورة الحيوان : ۱۲\۲۰۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۳\۶۹)

(۵) إرشاد السارى : ۱۲\۶۲۱ ، فتح البارى : ۱۰\۴۶۷ ، عمدة القارى : ۲۲\۶۹)

سپي نه وی - (١)

**قوله: ولا تصاوير:** د لا د نفی اعاده ئې ځکه اوکړه چه چا ته دا وهم رانشی چه د فرشتو د نه راتلو دپاره په کور کښې دننه د سپی او د تصويرونو د دواړو کيدل ضروری دی - ځکه چه کُه عبارت داسې وې " لا تدخل الملائکة بيتا فيه کلب و تصاوير " نو واو به د جمع دپاره اخستې شوې وو او چا ته به دا وهم کيدې شو ، دې وجه نه ئې " ولا تصاوير " اوويل او دا وهم ئې ختم کړو چه فرشتې به داسې کور ته هم نه داخليږی چه هغې کښې تصويرونه وی ځکه چه اوس تقدير د عبارت به داسې وی " ولا تدخل بيتا فيه صورة " - (٢)

**يو اشکال او ددې جواب:** په دې دا اشکال کيدې شی چه قرآن کريم کښې د حضرت سليمان عليه السلام په تذکره کښې دی ، ﴿ يعملون له ما يشاء من محاريب و تماثيل ﴾ د " تماثيل " تفسير په تصويرونو سره شويدې ، کُه تصوير جائز نه وې نو بيا جناتو ولې د حضرت سليمان عليه السلام دپاره تصوير جوړولو ؟

د دې يو جواب خو دا دې چه د دوی په شريعت کښې د دې جواز وو ، اسلام کښې ممنوع دې - (٣)

او دا هم ممکن ده چه د " تماثيل " نه د ذی روح تصوير مراد نه وی بلکه د غير جاندار ځيزونو تصويرونه او نقشونه ترينه مراد وی - (٤)

**قوله: وقال الليث: حدثني يونس......:** دې تعليق کښې د ابن شهاب د عبيد الله بن عبد الله بن عتبه د سماع تصريح ده بره په سند موصول کښې عنعنه ده ، دې وجه نه امام دا تعليق ذکر کړو ، دا ابونعيم په " المستخرج " کښې موصولا نقل کړيدې - (٥)

## ٨٧ = باب عذاب المصورين يوم القيامة

[٥٦٠٦] (٦) حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ مُسْلِمٍ قَالَ كُنَّا مَعَ مَسْرُوقٍ فِي دَارِ يَسَارِ بْنِ نُمَيْرٍ فَرَأَى فِي صُفَّتِهِ تَمَاثِيلَ فَقَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْمُصَوِّرُونَ

[٥٦٠٧] (٧) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ

---

(١) فتح البارى : ١٠\٤٦٧ )

(٢) ٨٠ إرشاد السارى : ١٢\٦٢١ ، فتح البارى : ١٠\٤٦٧ )

(٣) فتح البارى : ١٠\٦٢١ ، عمدة القارى : ٢٢\٦٩ )

(٤) فتح البارى : ١٠\٤٦٧ )

(٥) إرشاد السارى : ١٢\٦٢١ ، فتح البارى : ١٠\٦٦ ، عمدة القارى : ٢٢\٦٩ )

(٦) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم تصوير صورة الحيوان ..... ٣\١٦٧٠ (رقم الحديث : ٢١٠٩ ) و أخرجه النسائى فى الزينة ، باب التصاوير : ٤\٥٠٤ ( رقم الحديث : ٩٧٩٤ )

(٧) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى التوحيد ، باب قول الله تعالى "و الله خلقكم ..." [بقيه برصفحه آئنده....

عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الَّذِينَ يَصْنَعُونَ هٰذِهِ الصُّوَرَ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ [ر: ٧١١٩]

د باب رومبى روايت كښې مسلم بن صبيح فرمائى چه مونږ مسروق بن الاجدع سره د يسار بن نمير په كور كښې وو ، نو دوى د ده د كور دكانچې (د خاورو جوړې شوې دبې) سره تصويرونه اوليدل نو وې ويل ما د عبد الله بن مسعود ﷺ نه اوريدلى دى چه دوى د رسول الله ﷺ يو حديث بيانولو چه د قيامت په ورځ به تصوير جوړوونكو دپاره سخت عذاب وى -

**يسار بن نمير** : نمير (د تصغير سره) دې اصل كښې د مدينې وو او په كوفه كښې اوسيدلو، د حضرت فاروق اعظم وغيره نه دوى احاديث نقل كړيدى ، ثقه دې (١) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى "ولم أر له فى البخارى إلا هذا الموضع" (٢)

**قوله: فرأى في صُفّته: صُفّة** د صاد په ضمه او د فاء په تشديد سره ) دكانچې (د خاورو جوړه شوې دبه د ناستې ځائې) ته وائى، د مسلم په روايت كښې دى كنت مع مسروق فى بيت فيه تماثيل، فقال لى مسروق : هذه تماثيل كسرى، فقلت : لا، هذه تماثيل مريم (٣) ( څه د مسروق سره په يو كور كښې ووم چه هغې كښې تصويرونه ، مانه مسروق تپوس اوكړو دا د كسرى تصويرونه دى ؟ ما اوويل : نه ، دا د مريم تصويرونه دى )

د تصوير جوړوونكو دپاره به د قيامت په ورځ سخت عذاب وى ، سخت عذاب به څو خلقو ته وى قرآن كريم كښې د آل فرعون متعلق دى ( أدخلوا آل فرعون أشد العذاب) (٤)

امام طحاوى رحمه الله د حضرت ابن مسعود ﷺ نه مرفوع روايت نقل كړيدې "إن أشد الناس عذابا يوم القيامة رجل قتل نبيا أو قتله نبى ، وإمام ضلالة ، وممثل من الممثلين" (٥) يعنى د قيامت په ورځ به سخت عذاب د هغه كس وى چه هغه نبى قتل كړې وى يا ده لره نبى عليه السلام قتل كړې وى او امام د ګمراهئ وى او تصوير جوړوونكې وى -

د حضرت عائشه ﷺ يو مرفوع روايت هم امام طحاوى موصولا نقل كړيدې " أشد الناس عذابا يوم القيامة رجل هجا رجلا فهجا القبيلة بأسرها" (٦) يعنى د قيامت په ورځ به سخت عذاب د

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]و ما تعملونه " ( رقم الحديث : ٧١١٩ ) و أخرجه مسلم فى اللباس و الزينة ، باب تحريم تصوير صورة الحيوان ... ١٣\١٦٧٠ ( رقم الحديث : ٢١٠٨ )

(١) عمدة القارى : ٢٢\٧٠ ، فتح البارى : ١٠\٤٦٨ ، تهذيب الكمال : ٣٢\٢٩٨ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٤٦٨ ، عمدة القارى : ٢٢\٧٠ )

(٣) رواه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة ، باب تحريم صورة الحيوان : ١٣\١٦٧٠ ( رقم الحديث : ٢١٠٩ )

(٤) سورة المؤمن : ٤٦ )

(٥) فتح البارى : ١٠\٤٦٩ )

(٦) فتح البارى : ١٠\٤٦٩ )

هغه كس وى چه ده ته يو سړى كنخل اوكړل نو ددې په جواب كښې دې دده پوره قبيلې ته كنخل اوكړل -

امام طحاوى رحمه الله فرمائى " فكل واحد من هؤلاء يشترك مع الآخر فى شدة العذاب " يعنى په شدت د عذاب كښې به دا ټول خلق مشترك وى - (١)

علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه دا اشديت د تمامو خلقو په اعتبار سره به نه وى بلكه سړى ته به چه د كومې ګناه په وجه عذاب وركولې كيږى ، ددې ګناه په عذاب كښې مبتلاء د نورو خلقو په اعتبار سره دا اشديت بيان كړې شوې دې - نو چه كومو خلقو د خدائې دعوى كړيده هغوى كښې به د فرعون عذاب سخت وى چه چا د كافرانو مشرى اوكړه نو دده عذاب به په مقابله د هغه كس كښې سخت وى چه هغه د فاسقانو مشرى كړې وى ، دارنګه چه چا د جاندار ( سا والا ) تصاوير د عبادت دپاره جوړ كړل ، د ده عذاب به سخت وى په مقابله د هغه كس كښې چه ده د سا والا تصاوير دپاره د عبادت نه وى جوړ كړې -

حاصل دا چه دا اشديت د عامو خلقو په اعتبار سره نه دې بلكه چه د دغه ګناه په عذاب كښې كوم خلق مبتلاء دى د هغو په اعتبار سره دې - (٢)

د باب په دويم روايت كښې دى ، چه رسول الله ﷺ اوفرمائل چه كوم خلق تصويرونه جوړوى د قيامت په ورځ به دوى ته عذاب وركړې كيږى او دوى ته به د تعجيز او د توبيخ دپاره اوويلې شى چه تاسو چه كوم تصويرونه جوړ كړى دى دا ژوندى كړئ ( نو دوى خو به ددې په ژوندى كولو قادر نه وى نو دې وجه نه دوى به مسلسل په دې عذاب كښې مبتلاء وى ) (٣)

## ۸۸=بَاب نَقْضِ الصُّوَرِ

[۵۶۰۸] (٤) حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ فَضَالَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ يَحْيَى عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حِطَّانَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا حَدَّثَتْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَتْرُكُ فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فِيهِ تَصَالِيبُ إِلَّا نَقَضَهُ

دې باب كښې د تصويرونو د ماتولو ذكردې رومبى روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ به خپل كور كښې داسې څيزونه نه پريخودل چه په هغې كښې تصويرونه وى ، تر دې چه دا به مات كړل او چورى چورى به ئې كړل -

**تصاليب:** د تصليب جمع ده، تصوير ته وايى ، حافظ ابن حجر فرمائى دا د صليب جمع ده(٥)

---

(١) فتح البارى : ۱۰\۴۶۹ )

(٢) فتح البارى : ۱۰\۴۶۹ ، عمدة القارى : ۲۲\۷۰ )

(٣) فتح البارى : ۱۰\۴۷۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۷۱ ، إرشاد السارى : ۱۲\۶۲۳ )

(٤) ۵۶۰۸ ) الحديث أخرجه أبوداود فى اللباس ، باب فى الصليب فى الثوب : ٤\۷۲ ( رقم الحديث : ٤١٥١ ) و أخرجه النسائى فى الزينة ، باب التصاوير : ٤\۵۰٤ ( رقم الحديث : ۹۷۹۱ )

(٥) فتح البارى : ۱۰\۴۷۱ )

خو علامه عيني د دوى مؤاخذه کړيده - (۱)
علامه کرمانی د تصاليب تشريح کړيده " أى التماوير كالصليب يقال : ثوب مُصَلَّب أى عليه نقش كالصليب الذى للنصارى "يعنى دتصاليب نه دصليب په شان تصويرونه مراد دى ، ثوب مُصَلَّب هغه جامې ته وايى چه په هغې د نصرانيانو د صليب په شان نقش و نګار شوې وى - (۲)

[۵۶۰۹] (۳) حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا عُمَارَةُ حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ دَارًا بِالْمَدِينَةِ فَرَأَى أَعْلَاهَا مُصَوِّرًا يُصَوِّرُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ ذَهَبَ يَخْلُقُ كَخَلْقِي فَلْيَخْلُقُوا حَبَّةً وَلْيَخْلُقُوا ذَرَّةً ثُمَّ دَعَا بِتَوْرٍ مِنْ مَاءٍ فَغَسَلَ يَدَيْهِ حَتَّى بَلَغَ إِبْطَهُ فَقُلْتُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَشَيْءٌ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُنْتَهَى الْحِلْيَةِ [ر: ۷۱۲۰]

ابوزرعه وائى چه څه د ابوهريره رضي الله عنه سره يو کور ته لاړم نو اومې کتل چه په دې باندې يو مصور تصويرونه جوړوى نو دوى اوويل چه ما د رسول الله ﷺ دا فرمان اوريدلې دې چه د هغه کس نه زيات ظالم به څوك وى چه څما د پيدا کولو په شان د پيدا کولو کوشش کوى ( دا ئې د الله تعالى و تبارك قول نقل کړو ) دې خو دې لږه يوه دانه پيدا کړى ، يا ذره خو دې پيدا کړى او اودې ښائى ، بيا ئې د اوبو لوښې را اوغوښتلو او دواړه لاسونه ئې ترخونو پورې اووينځل -
د ابوذرعه نوم هرم بن عمر دې ، دې د مدينې منورې په کوم کور کښې چه پيدا شوې وو ، دا د مروان بن الحكم كور وو ، د مسلم روايت کښې ددې تصريح ده - (۴)

**قوله: فقلت : يا أباهريرة أشيء سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : مُنتهى الحِليَة:** ابوذرعه تپوس اوکړو چه ائى ابوهريره په اوداسه کښې ترخه پورې لاسونو وينځلو متعلق تا د رسول الله ﷺ نه څه اوريدلې دى ؟ حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائل : هم ( د جنت د ) کالى آخرى خائې دې ، علامه عينى رحمه الله د دې معنى بيان کړيده " أى التبليغ إلى الإبط منتهى حلية المؤمن فى الجنة " (۵)

د حلية نه يا خو زيور مراد دې لکه چه د قرآن کريم په آيت کښې دى (يحلون فيها من أساور) او يا دينه د قيامت په ورځ د اوداسه د اثر نه لاسونه او پښې او نور اندامونه د اوداسه پرقيږى

---

۱) عمدة القارى : ۲۲\۷۱ )
۲) شرح الكرمانى : ۲۱\۱۳۵ )
۳) ۵۶۰۹ ) الحديث أخرجه أيضا فى كتاب التوحيد ، باب قول الله تعالى : ".والله خلقكم و ما تعملون " ..... ( رقم الحديث : ۷۱۲۰ ) و أخرجه مسلم فى اللباس و الزينة ، باب تحريم تصوير صورة الحيوان ..... ۱۳ ۱۶۷۰ ( رقم الحديث : ۲۱۱۱ )
۴) رواه مسلم فى كتاب اللباس و الزينة، باب تحريم صورة الحيوان الخ : ۱۳\۱۶۷ ( رقم الحديث : ۲۱۱۱)
۵) عمدة القارى : ۲۲\۷۲ )

مراد دي (۱) چه ديته حديث كښې " غر محجلين " ويلې شويدى (۲)

## ۸۹ = بَاب مَا وُطِئَ مِنَ التَّصَاوِيرِ

[۵۶۱۰\۵۶۱۱] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْقَاسِمِ وَمَا بِالْمَدِينَةِ يَوْمَئِذٍ أَفْضَلُ مِنْهُ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ وَقَدْ سَتَرْتُ بِقِرَامٍ لِي عَلَى سَهْوَةٍ لِي فِيهَا تَمَاثِيلُ فَلَمَّا رَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَتَكَهُ وَقَالَ أَشَدُّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُضَاهُونَ بِخَلْقِ اللَّهِ قَالَتْ فَجَعَلْنَاهُ وِسَادَةً أَوْ وِسَادَتَيْنِ.

[۵۶۱۱] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ وَعَلَّقْتُ دُرْنُوكًا فِيهِ تَمَاثِيلُ فَأَمَرَنِي أَنْ أَنْزِعَهُ فَنَزَعْتُهُ وَكُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ [ر: ۲۴۷]

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ د یو سفر نه تشریف راوړو ما په دکانچه باندې یو پرده رازوړنده کړې وه ، چه دیکښې تصویرونه وو ، رسول الله ﷺ چه دا اوکتله نو وې شلوله ، او وې فرمائل د قیامت په ورځ به د ټولو نه زیات سخت عذاب د هغه خلقو وی چه دوی د الله تعالی د تخلیق نقل کوی ، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما دې نه یوه یا دوه تکیه ګانې جوړې کړې ( او چه تکیه پائمال کیږی او دېته تکیه وهلې کیږی چه دینه معلومه شوه چه تصویرونه به هم داسې پائمال کیدې شی )

**قوله: سترت بقرام لي على سهوة:** قرام ( د قاف په کسره سره ) نقشدارې یا نرئ پردې ته وایی - (۳)

سهوة ( د سین په فتحه او د باء په سکون سره ) دکانچې ته یا ډیوډئ ته یا د کور ګودام ته وائی (۴) مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله د دې ترجمه په طاق سره کړیده - (۵)

**قوله: وعلقت درنوکا فيه تماثيل:** درنوك ( د دال په ضمه او د راء په سکون سره ) پردې ته وائی -(۶)

---

۱) عمدة القاري: ۲۲\۷۲، إرشاد الساري: ۱۲\۶۴۴، فتح الباري: ۱۰\۴۷۳، شرح الكرماني: ۲۱\۱۳۵)

۲) قال أبوهريرة في حديثه : سمعت رسول الله صلى الله عليه و سلم يقول : إن أمتي يأتون يوم القيامة غرا محجلين من أثر الوضوء . أخرجه مسلم في كتاب الطهارة ، باب إستحبا إطالة الغرة : ۱\۲۱۶ ( رقم الحديث : ۲۴۶ )

۳) النهاية لابن الأثير : ۴\۴۹ ، مجمع بحار الأنوار : ۴\۲۵۷ )

۴) النهاية لإبن الأثير : ۲\۴۳۰ ، مجمع بحار الأنوار : ۳\۱۶۱ )

۵) فيض الباري : ۴\۳۸۳ )

۶) النهاية لابن الأثير : ۲\۴۳۰ ، مجمع بحار الانوار : ۳\۱۶۱ )

## ۹۰- بَابُ مَنْ كَرِهَ الْقُعُودَ عَلَى الصُّورَةِ

[۵۶۱۲] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَقُلْتُ أَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مِمَّا أَذْنَبْتُ قَالَ مَا هَذِهِ النُّمْرُقَةُ قُلْتُ لِتَجْلِسَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا قَالَ إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ وَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ الصُّورَةُ [ر: ۱۹۹۹]

[۵۶۱۳] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ صَاحِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ الصُّورَةُ قَالَ بُسْرٌ ثُمَّ اشْتَكَى زَيْدٌ فَعُدْنَاهُ فَإِذَا عَلَى بَابِهِ سِتْرٌ فِيهِ صُورَةٌ فَقُلْتُ لِعُبَيْدِ اللَّهِ رَبِيبِ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَمْ يُخْبِرْنَا زَيْدٌ عَنِ الصُّوَرِ يَوْمَ الْأَوَّلِ فَقَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ أَلَمْ تَسْمَعْهُ حِينَ قَالَ إِلَّا رَقْمًا فِي ثَوْبٍ وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو هُوَ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَهُ بُكَيْرٌ حَدَّثَهُ بُسْرٌ حَدَّثَهُ زَيْدٌ حَدَّثَهُ أَبُو طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۳۰۵۳]

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې په تصویرونو د کښیناستو کراهت بیانوی - حدیث د باب کښې حضرت عائشه فرمائی چه ما یو تکیه واخسته چه هغې باندې تصویرونه وو ، نبی کریم ﷺ په دروازه کښې اودریدو او دننه رانغلو ، ما چه کله دا اولیدلو نو ماوویل ځما توبه کۀ ځما نه څه ګناه شوې وی، حضور ﷺ اوفرمائل دا تکیه څه ده ، ما اوویل دا ما د ستا د ناستې او د تکیه لګولو دپاره اخستې ده - دوی اوفرمائل : دې تصویرونو جوړوونکو ته به د قیامت په ورځ عذاب وی او دوی ته به اوویلې شی چه دیکښې روح واچوه ، چه په کوم کور کښې تصویر وی هغه ته فرښتې نه داخلیږی

**تعارض د روایتونو او ددې دخل توجیهات:** دینه معلومه شوه چه د تصوروالا تکیه استعمالول صحیح نه دی ، دینه ما قبل باب کښې د تصویرونو والا پردې په باره کښې حضرت عائشه فرمائلې وو مونږ دینه تکیه جوړه کړه چه دینه معلومیږی چه دا دوی ﷺ به استعمال کړې وه په روایت د باب کښې دوی ﷺ ددې د استعمال نه انکار اوکړو په ظاهره د دواړو روایتونو مینځ کښې تعارض دې

① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دې باب سره ددې تعارض لرې کولو او د دواړو مینځ کښې تطبیق پیدا کولو ته اشاره کړیده چه د تصویر والا پردې نه د تکیه جوړولو نه دا نه لازمیږی چه حضور ﷺ دا استعمال کړې هم وی ، دې وجه نه دواړو مینځ کښې څه تعارض نشته دې ، ړومبی روایت کښې صرف د تکیه جوړولو ذکر دې ، د استعمال هیڅ وضاحت نشته دې - ( )

---

[1]) فتح الباری : ۱۰\۴۷۷ )

② او دا هم ویلې شي چه حضور ﷺ دا تکیه استعمال کړې وه خو دا پرده ئې د تکیه جوړولو نه وړاندې بالکل په مینځ شلولې وه او تصویرونه شلیدلې وو ، بیا ئې ترینه تکیه جوړه کړه نو دا بغیر د تصویرونو والا تکیه وه - [1]

③ مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله په فیض الباری کښې فرمائی چه رومبې باب کښې د حضرت عائشه قول " فجعلناه وسادتین " نه معلومیږی چه تصویرونه د تکیه وهلو او د پائمال کولو په حالت کښې جائز دی او ددې دویم باب د روایت نه د تصویرونو مطلق عدم جواز معلومیږی ځکه چه حضرت عائشه تصریح کړیده چه دا ما د دوی د کښینا ستو دپاره اخستې وه خو دوي ﷺ دا قبوله نه کړه -

امام بخاری رحمه الله رومبی په دې باندې د جواز او ثانیا په دې باندې د کراهت ترجمه قائم کړیده ، اوس خو به یا دا اوویلې شی چه د امام په نزد د جواز قول راجح دې ، دویمه ترجمه ئې قائم کړه چه ګڼه څوك د عدم جواز قول اختیاروی نو د هغه دپاره هم یوه لاره شته - او یا به دا اوویلې شی چه امام بخاری رحمه الله په ناسته او په پائمال کولو کښې فرق کوی چه د تصویرونو والا تکیه او پرده د ناستې دپاره خو نه شی استعمالولې خو په دې ډډه وهل او ځملاستل او تللو دپاره استعمالیدې شې ځکه چه دیکښې امتهان ( سپکاوې ) او تحقیر زیات دې - [2]

مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله خپله توجیه هم بیانه کړیده ، دې فرمائی چه اصل کښې حضرت عائشه چه کله رسول الله ﷺ ته اوویل چه دا ما د ستا د کښیناستو دپاره اخستې ده ، نو دوی د تصویرونو د مسئلې نه د تصویر جوړولو والا مسئلې ته منتقل شو ، ځکه چه ګڼه دوی په دې موقع خاموشی اختیار کړې وې نو چا ته به دا وهم کیدې شو چه کله دا تصویرونه جائز دی نو تصویرونه جوړول به هم جائز وی - دې وجه نه د دې وهم لرې کولو دپاره دوی تنبیه اوکړه چه تصاویر د امتهان په صورت کښې اګر چه ددې استعمال جائز دې خو د تصویر جوړول قطعا په هیڅ صورت کښې هم جائز نه دی ، هم دا وجه ده چه دوی د تصویرونو باره کښې هیڅ هم اونه فرمائل بلکه " إن أصحاب هذه الصور " سره ئې د تصویر جوړوونکو په باره کښې ئې وعید اوفرمائلو او د حدیث په آخر کښې ئې په " لاتدخل الملائكة بيتا فيه صورة " سره یو عام حکم بیان کړو چه هغې کښې د امتهان دا مخصوص صورت شامل نه وو - [3]

ددې توجیه حاصل دا راووتلو چه حدیث د باب د تصویرونو سره متعلق نه دې ، بلکه دیکښې د تصویر جوړوونکی حکم بیان شویدې، د امتهان یعنی د ډډې وهلو او د ملاستې او د ګرځیدو په صورت کښې د تصویرونو د حکم په باره کښې حدیث دباب خاموش دې ،

---

[1]) إرشاد الساری : ۱۲\ ۶۶۶ )
[2]) فیض الباری : ٤ \ ۳۸۳ ، الابواب و التراجم : ۲\ ۱۱۲ )
[3]) فیض الباری : ٤ \ ۳۸۳ )

او د رومبی باب د حدیث نه ددې جواز معلومیږی ، دې وجه نه داسې صورت کښې دا جائز دې ، والله اعلم

په مسئله د تصویر باندې تفصیلی بحث وړاندې راروان دې

## ۹۱- بَابُ كَرَاهِيَةِ الصَّلَاةِ فِي التَّصَاوِيرِ

[۵۶۱۳] حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ سَتَرَتْ بِهِ جَانِبَ بَيْتِهَا فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمِيطِي عَنِّي فَإِنَّهُ لَا تَزَالُ تَصَاوِيرُهُ تَعْرِضُ لِي فِي صَلَاتِي [ر:۳۶۷]

علامه عینی رحمه الله فرمائی : "أی هذا باب فی بیان کراهیة الصلاة فی البیت الذی فیه الثیاب التی فیها التصاویر، فإذا کرهت فی مثل هذا، فکراهتها وهو لابسها أقوی وأشد" (۱)

یعنی دې باب کښې امام بخاری رحمه الله په هغه کوټه کښې د مونځ کولو کراهت بیان کړیدې چه کومې کښې تصویرونه وی ، نو چه کله دتصویرونو والا په کور کښې مونځ کول مکروه شو نو د تصویر والا لباس کښې خو مونځ کول په طریقه اولی سره مکروه به وی -

د تصویر والا جامو کښې مونځ کول مکروه دی ، امام په باب کښې چه کوم حدیث نقل کړیدې دیکښې دی چه حضرت عائشه یو پرده زوړنده کړې وه حضور ﷺ اوفرمائل دا څما نه لرې کړه ، ځکه چه دا تصویرونه په مانځه کښې څما وړاندې وی ( نو څما په توجه کښې فرق راولی ..... )

**په حدیث د باب اشکال او ددې جواب** : په دې حدیث اشکال کیږی چه د حدیث د باب نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ د تصویرونو والا د پردې په وجود کښې کورته ننوتلو او په تیر شوې باب کښې دې چه دوی د تصویرونو والا پرده چه اولیده نو داخل نه شو -

ددې جواب دا ورکړې شویدې چه دیکښې د روح والا تصویرونه وو او په روایت د باب کښې چه د کومې پردې ذکر دې دیکښې د غیر جاندار تصویرونه وو - (۲)

**د حدیث نه مستنبط اداب** :علامه عینی رحمه الله د حدیث د باب نه څو آداب مستنبط کوی او لیکی : " وفیه من الفقه ینبغی التزام الخشوع فی الصلاة وتفریغ البال لله تعالی، وترک التعرض لما یشتغل المصلی عن الخشوع، وفیه أیضا أن ما یعرض للشخص فی صلاته من الفکرة فی أمور الدنیا لا یقطع صلاته " (۳)

یعنی ددې حدیث نه یو خبره خو دا معلومیږی چه په مانځه کښې خشوع او الله تعالی ته د زړه د توجه التزام کول پکار دی ، دویمه خبره دا معلومیږی چه په مانځه کښې د خضوع نه د غافل کیدونکو څیزونو نه بچ کیدل پکار دی او دریمه خبره ترینه دا معلومیږی چه مانځه کښې دننه څه دنیاوی فکر سره مونځ نه ختمیږی

---

۱) عمدة القاری : ۲۲ \ ۷۴ )

۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۷۴ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۷۴ ، إرشاد الساری : ۱۲ \ ۶۲۸ )

۳) عمدة القاری : ۲۲ \ ۷۴ ).

## ۹۲=باب لا تدخل الملائكة بيتا فيه صورة

[۵۶۱۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ وَعَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلُ فَرَاثَ عَلَيْهِ حَتَّى اشْتَدَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَقِيَهُ فَشَكَا إِلَيْهِ مَا وَجَدَ فَقَالَ لَهُ إِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ [ر: ۳۰۵۵]

په حديث د باب کښې دی چه حضرت جبرئيل عليه السلام رسول الله ﷺ سره د راتلو وعده اوکړه ، خو دوی په راتلو کښې ناوخته کړو ، رسول الله ﷺ ته ددوی ناوخته کولو باندې سختی راغله نو چه کله دوی تشريف راوړو او د جبرائيل عليه السلام سره ئې ملاقات اوشو نو دوی ﷺ ورته د ناوخته کيدو شکايت اوکړو ، نو جبرائيل عليه السلام اوويل : مونږ هغه کور ته نه داخليږو چه کومو کښې تصوير وی او نه هغه کور ته چه په هغې کښې سپې وی -

**قوله: فراث عليه :** " راث روثًا " په معنی د تاخير کول او ناراستی کولو راځی ، دلته روايت کښې اختصار دې ، د حضرت عائشه رضی الله عنها په روايت کښې تفصيل دې په هغې کښې دی .... "

**ثم التفت ، فإذا جرو كلب تحت سريره ، فقال : يا عائشة متى دخل هذا الكلب ، فقالت : وأيم الله ما دريت ، ثم أمر به ، فأخرج ، فجاء جبريل ، فقال : واعدتنى ، فجلست لك فلم تأت ، فقال : منعنى الكلب الذى كان فى بيتك ...."(۱)**

يعنی رسول الله ﷺ چه اوکتل چه دسپی يو بچې د کټ لاندې پروت دې ، نو دوی ﷺ اوفرمائل : " دا کله راغلې دې ، نو دوی اوويل :" والله ما ته نه ده معلومه ، بيا دوی ﷺ ددې د ويستلو حکم اوکړو او دا ئې اوويستلو ، چه حضرت جبرائيل راغلو ، نو دوی ﷺ ورته اوفرمائل :" تا ما سره وعده کړې وه ما د ستا انتظار کولو خو ته رانغلې " نو دوی اوويل : څه د دې سپی د لاسه نه يم راغلې چه کوم کور کښې دننه وو -

## ۹۳=باب من لم يدخل بيتا فيه صورة

[۵۶۱۶] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْبَابِ فَلَمْ يَدْخُلْ فَعَرَفَتْ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتُوبُ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ مَاذَا أَذْنَبْتُ قَالَ مَا بَالُ هَذِهِ النُّمْرُقَةِ فَقَالَتْ اشْتَرَيْتُهَا لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يُعَذَّبُونَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ وَقَالَ إِنَّ الْبَيْتَ الَّذِي فِيهِ الصُّوَرُ لَا تَدْخُلُهُ الْمَلَائِكَةُ [ر: ۱۹۹۹]

---

(۱) أخرجه مسلم فی کتاب اللباس ، باب تحريم تصوير صورة الحيوان : ۲ / ۱۶۶۴ (رقم الحديث : ۲۱۰۴)

**تصويرونو والا كور ته د داخليدو حكم** : چه په كوم كور كښې تصويرونه وى، ديته د داخليدو څه حكم دې؟ ديكښې اختلاف دې-
د احنافو او د مالكيه او د حنابله حضراتو په نزد ديته داخليدل مكروه دى ، حرام نه دى -(۱)
په شوافعو كښې د اكثر عالمانو په نزد ديته داخليدل جائز نه دى (۲) دوى د حديث د باب نه استدلال كوى خو جمهور دا په كراهت محمولوى -

## ۹۴=بَاب مَنْ لَعَنَ الْمُصَوِّرَ

[۵۶۱۷] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى قَالَ حَدَّثَنِي غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ اشْتَرَى غُلَامًا حَجَّامًا فَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الدَّمِ وَثَمَنِ الْكَلْبِ وَكَسْبِ الْبَغِيِّ وَلَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَالْمُصَوِّرَ [ر: ۱۹۸۰]
په تصويرونو جوړوونكى باندې رسول الله ﷺ لعنت ويلې دې لكه چه په حديث د باب كښې دى -

## ۹۵=بَاب مَنْ صَوَّرَ صُورَةً كُلِّفَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا الرُّوحَ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ

[۵۶۱۸] حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا سَعِيدٌ قَالَ سَمِعْتُ النَّضْرَ بْنَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ يُحَدِّثُ قَتَادَةَ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ وَهُمْ يَسْأَلُونَهُ وَلَا يَذْكُرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى سُئِلَ فَقَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَوَّرَ صُورَةً فِي الدُّنْيَا كُلِّفَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنْ يَنْفُخَ فِيهَا الرُّوحَ وَلَيْسَ بِنَافِخٍ [ر: ۲۱۱۲]
په اكثرو نسخو كښې دا ترجمة الباب شته او د اسماعيلى په نسخه كښې نشته دې - (۳)

**قوله: سمعتُ النضربن أنس بن مالك يحدث قتادة**: حافظ بن حجر رحمه الله ددې سند وضاحت كوى او ليكى :

كان سعيد بن أبي عروبة كثير الملازمة لقتادة ، فاتفق أن قتادة و النضر بن أنس اجتمعا ، فحدث النضر قتادة ، فسمعه سعيد و هو معه ... وقد تقدم تصريح البخارى بدن سعيدا سمع من النضر هذا الحديث الواحد (۴)
يعنى سعيد بن ابى عروبه د قتاده خصوصى شاګرد وو او اكثر به ده سره وو ، يو ځل اتفاق

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۴۸۱ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱۲ ، اوجز المسالک ، كتاب الاستيذان ، باب ما جاء في الصور و التماثيل : ۱۵\۱۴۸)
۲) الابواب و التراجم : ۲\۱۱۲ ، شرح مسلم للنووى : ۲\۲۰۰ ، اوجز المسالک ، كتاب الاستيذان ، باب ما جاء في الصور و التماثيل : ۱۵\۱۴۸)
۳) الابواب والتراجم : ۲\۱۱۲ ، فتح البارى : ۱۰\۴۸۲ ، عمدة القارى : ۲۲\۷۵)
۴) فتح البارى : ۱۰\۴۸۲)

سره نضر بن انس او قتاده دواړه يو ځائې ملاو شو ، نضر بن انس قتاده ته دا حديث بيان كړو په دې موقع سعيد هم موجود وو ، ده هم د نضر نه دا حديث واوريدو ، سعيد بن ابى عروبه صرف هم دا يو حديث د نضر بن انس نه اوريدلې دې لكه چه امام بخارى رحمه الله ددې تصريح وړاندې كړيده ، دې حديث اګر چه قتاده ته اوروى خو سعيد ئې هم اورى -

**قوله: وهم يسألونه ولا يذكر النبى ﷺ:** يعنى خلقو د ابن عباس رضي الله عنهما نه د مسائلو تپوس كولو ( او هغه به جواب وركولو خو ) د رسول الله ﷺ ذكر ئې نه كولو يعنى خپله ئې فتوى وركوله ، د حضور ﷺ څه حديث ئې نه ذكر كولو ، د اسماعيلى روايت كښې د دې تفصيل دې "فجعلوا يستفتونه، ويفتيهم ولم يذكر فيما يفتيهم النبى ﷺ" (۱)

**قوله: حتى سئل ، فقال : سمعت ....:** دوى نه د كومې مسئلې تپوس اوشو دې باره كښې دلته ابهام دې ، د ابن ابى عدى په روايت كښې د دې تفصيل دې ، ديكښې دى "....حتى أتاه رجل من أهل العراق ، أراه نجارا ، فقال : إنى أصور هذه التصاوير ، فما تأمرنى ؟ فقال : إذا سمعت ...." (۲) يعنى يو عراقى سړې راغلو غالبا دې تركان وو ، وې ويل : زه دا تصويرونه جوړوم ، د ستا دې باره كښې ما ته څه حكم دې او څه فتوى راكوئ ؟ نو بيا حضرت ابن عباس مرفوع حديث واورولو -

**قوله: من صور صورة فى الدنيا:** دلته صورة عام دې د ساوالا او د غير ساوالا ټولو ته شامل دې ، خو د حديث په آخر كښې " كلف أن ينفخ فيها الروح " نه د غير د ساوالا تخصيص اوشو ، او معلومه شوه چه د " صورة " نه مراد د ساوالا تصوير مراد دې -

**قوله: كلف يوم القيامة أن ينفخ فيها الروح وليس بنافخ:** په روح اچولو به مصور مكلف كړې شى او دې به روح نه شى اچولې ، دې وجه نه دائمى عذاب كښې به مبتلاء وى .... د فاسق عذاب دائمى نه وى ، دې وجه نه داسې نصوص په زجر او توبيخ محمولولې شى ، حقيقى معنى نه وى مراد ، لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى :

والجواب أنه يتعين تأويل الحديث على أن المراد به الزجر الشديد بالوعيد بعقاب الكافر ، ليكون أبلغ فى الإرتداع ، وظاهره غير مراد (۳)

**مسئله د تصوير :** امام بخارى رحمه الله په دې بابونو كښې د تصوير په حرمت باندې څو احاديث بيان كړيدى ، دې وجه نه د جمهورو عالمانو او د فقهاء د اسلام په نزد د ساوالا تصوير جوړول حرام او په كبائرو كښې دې ، برابره خبره ده چه هغه د سورى والا د مجسمې په شكل وى يا د دې سورې نه وى - (۴)

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۴۸۲ )

(۲) فتح البارى : ۱۰\۴۸۲ )

(۳) فتح البارى : ۱۰\۲۸۳ )

(۴) شرح مسلم للنووى، كتاب اللباس، باب تحريم تصوير صورة الحيوان : ۲\۱۹۹...[بقيه برصفحه آئنده....

تصوير جوړول خو مطلقا په تمامو صورتونو كښې حرام دی ، دارنګه د كور په ديوالونو، په جامو او په نورو اوچتو ځايونو باندې تصوير لګول حرام دی ... هو کُه داسې ځائې وی چه هلته سړې كښينی . ګرځی يا ځملی نو چه دا ځايونه د امتهان او د تحقير دی نو دې وجه نه اكثر عالمان دې صورت كښې تصور ساتلو ته حرام نه وائی لكه علامه نووی ليكی :

تصوير صورة الحيوان حرام شديد التحريم و هو من الكبائر، سواء صنعه بما يمتهن أو بغيره فصنعته حرام بكل حال ، لأن فيه مضاهاة لخلق الله ، و أما اتخاذ المصور فيه صورة حيوان ، فإن كان معلقا على حائط أو ثوبا ملبوسا او عمامة ونحو ذالك مما لا يعد ممتهنا ، فهو حرام ، وإن كان في بساط يداس و وسادة ونحوها مما يمتهن فليس بحرام ..... و لا فرق في هذا كله بين ما له ظل و ما لا ظل له ، هذا تلخيص من مذهبنا في المسئلة ، و بمعناه قال جماهير العلماء من الصحابة و التابعين و من بعدهم ، و هو مذهب الثوری و مالك و أبي حنيفة وغيرهم (١)

مرداوی په الانصاف كښې (٢) او ابن قدامه په " المغنی " كښې د حنابله هم دا مسلك نقل كړيدې (٣) د احنافو حضراتو هم دا مسلك دی ، علامه عينی ، علامه شامی ددې تصريح كړيده (٤) امام محمد رحمه الله په موطاء كښې ليكی :

و ما كان فيه من تصاوير من بساط يبسط أو فراش يفترش أو وسادة ، فلا بأس بذلك ، وإنما يكره من ذلك في الستر و ما ينصب نصبا ، و هو قول أبي حنيفة و العامة من فقهائنا (٥)

يعنی بستره او تكيه وغيره باندې تصوير كيدو كښې څه حرج نشته ، او په پردو او په هغه څه چه هغه اودرولې كيږی په هغې تصويرونه مكروه دی ، د امام ابوحنيفه او د عامو فقهاءو هم دا مسلك دې -

د مالكی حضراتو نه مختلف روايتونه دی ،د سوری والا مجسم تصوير په حرمت خو د دوی اتفاق دې ، لكه چه د بعض خلقو مجسمې په طور د يادګار جوړيږی ، داسې مجسمې

---

....بقيه ازحاشيه گذشته] أوجز المسالك ، كتاب الإستيذان ، باب ما جاء فی الصور و التماثيل : ١٥\١٤٠ ، المغنی لابن قدامة ، كتاب الوليمة ، وجوب الإنكار على ما يصنع فی الولائم من المنكرات : ٧\٢١٥ ، ٢١٦ ، شرح الزرقانی : كتاب الاستيذان ، باب ما جاء فی الصور و الشمائل : ٤\٣٦٨ ، البحر الرائق ، كتاب الصلوة ، باب ما يفسد الصلاة و ما يكره فيها : ٢\٢٧ )

(١) شرح مسلم للنووی فی كتاب اللباس ، باب تحريم تصوير صورة الحيوان الخ : ٢\١٩٩ )

(٢) الانصاف : ١\٤٧٤ )

(٣) المغنی لابن قدامة، كتاب الوليمة وجوب الإنكار على ما يصنع فی الولائم من المنكرات: ٧\٢١٥-٢١٦)

(٤) عمدة القاری : ٢٢\٧٠ ، الدر المختار ، كتاب الصلوة ، مطلب مكروهات الصلاة : ١\٤٧٩ ، البحر الرائق ، كتاب الصلوة ، باب ما يفسد الصلوة و ما يكره فيها : ٢\٢٧ ، إكما إكمال المعلم للأبی ، كتاب اللباس ، باب لاتدخل الملائكة .... ٥\٣٩٤ )

(٥) الموطاء لإمام محمد ، كتاب الإستيذان باب التصاوير و الجرس و ما يكره منها ، ص ٣٨٢ )

بالاتفاق حرام دی . خو چه په کاغذ یا په جامو وغیره تصویر وی چه د هغې سورې نه وی .
دیکښې د دوی په نزد اختلاف دې ، ابن القاسم وغیره دا جائز ګرځوی [1] بعض دیته حرام
خو اکثر مالکی عالمان دیته مکروه وائی - [2]
حاصل دا چه د ائمه ثلاثه په نزد تصویر که مجسم وی او که غیر مجسم دا حرام دې ، د
مالکیانو په نزد مجسم خو حرام دې ، خو غیر مجسم د اکثرو مالکیانو په نزد مکروه دې ،
د بعضو په نزد جائز دې -

**د غیر مجسم تصویر د جواز دلائل** چه کوم حضرات غیرمجسم تصویر ته جائز وائی هغوی
په صحیح مسلم کښې د زید بن خالد د روایت نه استدلال کوی چه کوم دوی د بسر بن
سعید وړاندې بیان کړې وو

**إن زيد بن خالد الجهني حدثه و مع بسر عبيد الله الخولاني ، أن أبا طلحة حدثه أن رسول الله صلى الله عليه و سلم قال : لاتدخل الملائكة بيتا فيه صورة ، قال بسر : فمرض زيد بن خالد ، فعدناه ، فإذا نحن في بيته بستر فيه تصاوير ، فقلت لعبيد الله الخولاني : ألم يحدثنا في التصاوير ؟ قال : إنه قال " إلا رقما في ثوب " ألم تسمعه ؟ قلت : لا ، قال : بلى ، قد ذكر ذلك** [3]

دې روایت کښې تصریح ده چه د تصاویرو د حرمت د حکم نه هغه تصویر چه کوم په جامو
کښې وی هغه ترینه مستثنی دې او زید بن خالد په خپل روایت کښې د دې استثناء ذکر
کړیدې
دارنګه یو بل حدیث امام ترمذی رحمه الله په کتاب اللباس کښې د عبید الله بن عبد الله
بن عتبه نه نقل کړیدې چه دې د حضرت ابو طلحه انصاری ﷺ بیمار پرسئ دپاره لاړو ،
هلته سهل بن حنیف هم موجود وو ، حضرت ابو طلحه یو سړې رااوبللو او د لاندینه ئې یو
څادر لرې کولو دپاره اوویل ، سهل اوویل ، دا ولې لرې کوئ ، نو حضرت ابو طلحه اوویل
: " **لأن فيه تصاوير ، وقد قال فيه النبي ﷺ ما قد علمت** " سهل اوویل : " **أولم يقل : إلا ما كان رقما في ثوب** "
یعنی رسول الله ﷺ خو په جامو چه کوم تصویر لګیدلې وی هغه مستثنی کړیدې ، نو
حضرت ابوطلحه اوویل : " **بلى ولكنه أطيب لنفسي** " [4] **أخرجه الترمذي في كتاب اللباس باب ما جاء في الصورة : ۲۳۰/۴ ( رقم الحديث : ۱۷۵ )** یعنی رسول الله ﷺ اګر چه ددې استثنی کړیده خو ما ته دا
ښه لګي چه څه دا لرې کړم
جمهور ددې دواړو روایتونو دا جواب ورکوی چه دیکښې د " رقما فی ثوب " نه د غیر
جاندار تصویرمراد دې ، د جاندارنه دې مراد ، په پرده باندې د ساوالا د تصویر په باره کښې
دلته بخاری کښې روایت تیر شویدې ، چه رسول الله ﷺ دیته د راننوتلو نه انکار اوکړو -

---

[1] إكمال إكمال المعلم . باب لاتدخل الملائكة بيتا فيه صورة و لا كلب : ۱۵/ ۳۹۴ )
[2] إكمال إكمال المعلم . باب لاتدخل الملائكة بيتا فيه صورة و لا كلب : ۱۵/ ۳۹۴ )
[3] رواه مسلم في كتاب اللباس والزينة.باب تحريم تصوير صورة الحيوان ۱: ۱۳/۶۶۶ ( رقم الحديث : ۲۱۰۶ )
[4] اخرجه الترمذي في كتاب اللباس . باب ماجاء في الصورة ۴/ ۲۳۰ (رقم الحديث : ۱۷۵)

**د کيمرې د تصوير حکم**: د نن صبا د کيمرې د تصوير چه ترکومې تعلق دې نو ددې باره کښې اګرچه د مصر بعض عالمانو د جواز فتوی ورکړيده (¹) لکه د مصر يو مفتی علامه الشيخ محمد بخيت د دې په جواز يوه رساله ليکلې ده چه د هغې نوم دې " الجواب الشافي في إباحة التصوير الفوتوغرافي " دارنګه اوګورئ " فقه السنة للسيد سابق، التصوير، الصور التي لا ظل لها: ۳/ ۵۰۱) خو د جمهورو مفتيانو فتوی ددې په عدم جواز ده - (²) خو د ضرورت ځايونه دينه مستثنی دی، مثلاً شناختی کارډ، پاسپورټ وغيره دپاره تصوير يو ضرورت جوړ شويدې، امام محمد رحمه الله په سير کبير کښې فرمائی " وإن تحققت الحاجة له إلى استعمال السلاح الذي فيه تمثال فلا بأس باستعماله " (يعنی کُه د داسې اسلحې ضرورت راپيښ شی چه ديکښې تصوير دې نو دا استعمالولې شی) (³) علامه سرخسی رحمه الله ددې علت بيانوی او ليکی "لأن مواضع الضرورة مستثناة من الحرمة كما في تناول الميتة" (ځکه چه د ضرورت مواقع د حرمت نه مستثنی دی، مثلاً د ضرورت په وخت د مردار ښناور خوراك اجازت شته) (⁴)

**د ټی وي او د ويډيو او د کمپيوټر د تصوير حکم**: اوس پاتې دې د ټيلي ويژن، د ويډيو او د کمپيوټر تصوير دې باره کښې جمهور مفتيان فتوی د عدم جواز ورکوی (⁵) دوی وائی چه په ټی وی باندې د راتلونکی تصوير هم هغه حکم دې چه کوم د نورو عامو تصويرونو دې - خو بعض عالمان وائی چه دا د تصوير په حکم کښې نه دې، بلکه دا عکس دې چه د شعاګانو او د لهرونو په ذريعه په يو جديد تيکنيك سره محفوظ کيږی، دې وجه نه په دې د تصوير وعيدونه به نه جاری کيږی - (⁶)

دا اختلاف په هغه صورت کښې دې چه کله په ټی وی کښې او په ويډيو کښې او په کمپيوټر کښې او په سی ډيز کښې د راتلونکی او محفوظ کيدونکی تصوير کښې څه بل شرعی قباحت نه وی نو جمهور ددې د عدم جواز او بعض عالمان ددې د جواز قائل دی -

---

(¹) د مصر يومفتی علامه الشيخ محمد بخيت ددې په جواز باندې يوه رساله ليکلې ده چه دهغې نوم دې: الجواب الشافی فی اباحة التصوير الفوتوغرافی.، دغسې اوګورئ: فقه السنة للسيد سابق، التصوير، الصور التی لاظل لها: ۳| ۵۰۱.

(²) کفايت المفتی، کتاب الحظر والإباحة، بحث فوتو ګرافی پيشه حرامه ده: ۹\۲۴۳)

(³) السير الکبير مع شرحه: ۲\۲۷۸)

(⁴) شرح السير الکبير: ۲\۲۷۸)

(⁵) فتاوی حقانيه ،باب التصاوير، جديد آلات کا حکم: ۲\۴۳۲، احسن الفتاوی: ۸\۲۸۹، ۳۰۰، فتاوی محموديه: ۵\۱۶۹، النهضة الإصلاحية للشيخ مصطفی الحامی: ۲۶۴، ۲۶۵)

(⁶) خو په دې اشکال شويدې چه په پرده باندې راتلونکې تصوير اګر چه عکس دې خو ددې نيګيټيو ( negative ) تصوير دې دې وجه نه دا د دې خبرې ذريعه جوړيږی چه دې لره په کاغذ باندې د يو شکل په صورت کښې راولی او د ذريعه حکم هم هغه وی چه کوم دينه د حاصليدونکې مقصود وی،ماکان سببا لمحظور فهو محظور، ردالمختارعلی الدرالمختار،کتاب الحظر والإباحة: ۶\۳۵۰)

خو كه ديكښې منكرات وى او د نورو شرعى حدونو خيال نه وى ساتلې شوې نو دا بالاتفاق ناجائز او حرام دى - (۱)

نن صبا په دنيا كښې چه د تى وى څومره چينلې هم دى ، دوى كښې څمونږ د علم مطابق يو هم داسې نشته دې چه ديكښې څه شرعى قباحت نه وى ، د غير محرم د تصوير نه خو يو چينل هم خالى نه دې ، دې وجه دا په هر حال بالاتفاق ناجائز دى ، خو كمپيوټر ، سى ډيز او ويډيو چه اسلامى وى او د نورو شرعى قباحتونو نه پاك په كښې څه پروګرام مرتب كړې شى ، نو د بعضې عالمانو په نزد د دې د جواز لاره شته دې.

## ۹۶=بَابُ الِارْتِدَافِ عَلَى الدَّابَّةِ

[۵۶۱۹] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ عَلَى إِكَافٍ عَلَيْهِ قَطِيفَةٌ فَدَكِيَّةٌ وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ وَرَاءَهُ [ر:۲۸۲۵]

د ارتداف معنى ده يو سړې پسې بنوريدل ، امام بخارى رحمه الله دې باب كښې د دې جوازبيانوى ، حديث دباب كښې دى چه رسول الله ﷺ د خر په كته (الرحل هغه كتې ته وائى چه هغه خالص د ناستې دپاره جوړ وى او لرګى په كښې لګيدلې وى خو پښتو كښې چه په خر اچولې كيږى نو هغې ته كته وائى ځكه ئې مونږ ترجمه په كته سره اوكړه ) سور ناست وو په دوى د فدك څادر وو ، او دوى ځان پسې اسامه كښينولې وو -

إكاف : كتې ته وائى - **قطيفة** : څادر ، **فَدَكية** : فدك ته منسوب دې ، خيبر سره نزدې د يو ځائې نوم دې - (۲)

**د باب د كتاب سره مناسبت** :① كتاب اللباس سره ددې باب د مناسبت په باره كښې علامه قسطلانى رحمه الله ليكى : ولم يظهرلى وجه دخول هذا الباب و ما بعده بكتاب اللباس ، لكن قال فى الكواكب : الغرض منه الجلوس على لباس الدابة ، وإن تعدد أشخاص الراكبين عليها ، و التصريح بلفظ "القطيفة" مشعربذلك كما قال فليتأمل(۳)

---

۱) لكه داسې پروګرامونه چه په ډانسونو ، په مسخرو او بې ضرورته په خنده خوندئ او موسيقئ وغيره باندې مشتمل وى نو ددې كتلو كښې د وخت ضياع هم ده او ارتكاب د حرامو هم او د فقهاء كرامو د تصريح مطابق داسې پروګرامونو كښې شركت كول دا كتل اوريدل ټول ناجائز او حرام دى صاحب د درمختار فرمائى : و فى السراج : و دلت المسئلة أن الملاهى كلها حرام ، و يدخل عليهم بلا إذنهم لإنكار المنكر ... قلت و فى البزازية : استماع صوت الملاهى كضرب قصب و نحوه حرام لقوله عليه الصلوة و السلام : " استماع الملاهى معصية ، و الجلوس عليها فسق و التلذذ بها كفر " أى بالنعمة ، فصرف الجوارح إلى غير ماخلق لأجله كفر بالنعمة لا شكر ، فالواجب كل الواجب أن يجتنب .... ( الدر المختار مع رد المحتار ، كتاب الحظر و الإباحة : ۶\۳۴۹ )

۲) عمدة القارى : ۲۲\۷۶ ، إرشاد السارى : ۱۲\۶۳۲ )

۳) إرشاد السارى : ۱۲\۶۳۲ )

یعنی ددې باب په کتاب اللباس کښې د ذکر کولو څه وجه ما ته ښکاره نه شوه ، خو صاحب د کواکب لیکلي دی ، چه دې باب نه مراد د سورلۍ په جامه باندې کښیناستل دی ، اګر چه ناست کسان زیات وی ، د لفظ د تطیفة نه داخبره په فهم کښې راځی -
علامه کرمانی رحمه الله هم دا خبره لیکلې ده (۱)

② حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ما ته ددې باب دلته روارو کښې اشکال وو ، خو بیا ما ته دا توجیه په فهم کښې راغله چه روستو ناسته کښې د غورزیدو خطره وی نو امام بخاری رحمه الله دې باب سره دیته اشاره کوی چه د غورزیدو احتمال د روستو ناستې دپاره مانع نه دې ، دې وجه نه ددې احتمال سره هم په طور د ردیف ناسته جائز ده ، خو چه کوم په طور د ردیف کښیني نو هغه دې محتاط اوسی ، که اوغورزیږی نو د ستر او د لباس د حفاظت دپاره دې چوکس وی - (۲)

③ حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله په " الابواب و التراجم " کښې فرمائی : و الأوجه عند هذا العبد الضعيف أنه قد تقدم أن المصنف رحمه الله ذكر عدة أبواب في كتاب اللباس مما يتعلق بالزينة كما تقدم في مبدأ هذا الكتاب ، و لما كانت هذه الأبواب على الظاهر مما يخالف الزينة ، فذكرها بعد ذكر أبواب الزينة استطرادا ، فإن الضد أقرب حطورا بالبال مع ضده - (۳)
د دې حاصل دا دې چه امام بخاری رحمه الله په کتاب اللباس کښې څو بابونه د زینت سره متعلق هم ذکر کړیدی ، اوس دلته داسې بابونه ذکر کوی چه کوم د زینت خلاف دی ، دوه درې کسان په یو سورلۍ او په یو څناور باندې کښیناستل د زینت خلاف دی ، او د ضد په ذکر کولو سره په خبره پوهیدل ښه راځی و بضدها تتبین الاشیاء نو ګویا دا ابواب ئې په وجه د نسبت د تضاد سره بیان کړیدی

## ۹۷=بَابُ الثَّلَاثَةِ عَلَى الدَّابَّةِ

[۵۶۳۰] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ اسْتَقْبَلَهُ أُغَيْلِمَةُ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَحَمَلَ وَاحِدًا بَيْنَ يَدَيْهِ وَالْآخَرَ خَلْفَهُ [ر: ۱۷۰۳]
د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه په یو څناور درې کسان هم سوریدې شی ، په شرط د دې چه څناور کښې ددې طاقت او قدرت وی -(۴)
اګر چه بعض روایتونو کښې ددینه منع راغلې ده (۵) خو دا رویتونه متکلم فیها دی ، قابل

---

(۱) شرح الکرمانی : ۲۱\۱۴۱ )
(۲) فتح الباری : ۱۰\۴۸۴ )
(۳) الأبواب و التراجم : ۲\۱۱۲ )
(۴) الابواب والتراجم : ۲\۱۱۲ ، إرشاد الساری : ۱۲\۶۳۳ ، عمدة القاری : ۲۲\۷۷ )
(۵) أخرجه الطبرانی عن جابر : نهی رسول الله صلی الله علیه و سلم أن یرکب ...[بقیه برصفحه آئنده....

د استدلال نه دی او که دا قابل د احتجاج تسلیم هم کړې شي نو بيا به دا په هغه صورت محمولیږي چه کله څناور کښې د درې سړو د اوړلو طاقت نه وي (۱)

**قوله:** استقبله أغيلمة بني عبد المطلب: أغيلمة د غلمة تصغير دې ، غلمة د غلام جمع ده ، دا تصغير خلاف قياس دې د قياس مطابق غليمة كيدل پكار وو (۲) د فتح مكه په موقع باندې د بنو عبد المطلب څو ماشومان د دوی استقبال دپاره راغلل ، رسول الله ﷺ دوی کښې یو وړاندې او بل خان پسې کښینولو ، راتلونکې باب کښې د دوی نومونه هم راغلې دی چه قثم بن عباس ئې وړاندې او فضل بن عباس ئې روستو کښینولو -

## ۹۸=باب حمل صاحب الدابة غيره بين يديه

وقال بعضهم صاحب الدابة أحق بصدر الدابة إلا أن يأذن له

[۵۶۲۱] حدثني محمد بن بشار حدثنا عبد الوهاب حدثنا أيوب ذكر شر الثلاثة عند عكرمة فقال قال ابن عباس أتى رسول الله صلى الله عليه وسلم وقد حمل قثم بين يديه والفضل خلفه أو قثم خلفه والفضل بين يديه فأيهم شر أو أيهم خير

د سورلۍ مالك كه غواړي نو بل وړاندې او په خپله روستو كښيناستې شي ، د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه د سورلۍ مالك د مخكښې ناستې زيات حقدار دې ، خو كه دې په خپله خوشحالۍ سره دا حق بل چا ته وركول غواړي نو وركولې شي -

**قوله:** وقال بعضهم: صاحب الدابة أحق بصدر الدابة إلا أن يأذن له: د بعض نه مراد امام شعبی دې ، ابن ابی شیبه د دوی دا تعلیق نقل کړیدې ، (۳) امام ابوداود او امام ترمذی دا مرفوع هم نقل کړیدې ، دیکښې دی

بينما رسول الله صلى الله عليه و سلم إذ جاءه رجل و معه حمار ، فقال : يا رسول الله ، اركب ، و تأخر الرجل ، فقال : لا أنت أحق بصدر دابتك إلا أن تجعله لي و قال ، قد جعلته لك فركب (۴) يعنى رسول الله ﷺ پياده روان وو چه ديكښې يو سړې راغلو ، ده سره خر وو ، وې ويل اے د الله رسوله په دې سور شئ او په خپله روستو شو ، حضور اوفرمائل : نه ته په خپله سورلۍ باندې د وړاندې زيات حقدار ئې ، خو كه ته په خپله رضامندۍ سره دا حق ما ته راكړې نو بيا صحيح ده ،

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ثلاثة على الدابة : و سنده ضعيف ، و أخرج الطبراني عن أبي سعيد رفعه " لا يركب الدابة فوق اثنين " و في سنده لين ، و أخرج الطبري عن علي قال: " إذا رأيتم ثلاثة على دابة فارجموهم حتى ينزل أحدهم " ( فتح الباري : ۱۰\۴۸۵)

۱) إرشاد الساري : ۱۲\۶۳۳ ، عمدة القاري : ۲۲\۷۷ ، فتح الباري : ۱۰\۴۸۵ )

۲) شرح الكرماني : ۲۱\۱۴۱ ، فتح الباري : ۱۰\۴۸۵ ، عمدة القاري : ۲۲\۷۷ )

۳) فتح الباري : ۱۰\۴۸۵ ، إرشاد الساري : ۱۲\۶۳۳ ، عمدة القاري : ۲۲\۷۷ )

۴) رواه ابوداود : في كتاب الجهاد ، باب رب الدابة أحق بصدرها : ۳\۲۸ ( رقم الحديث : ۲۵۷۲ ) و الترمذي في كتاب الأدب ، باب ما جاء أن الرجل أحق بصدر دابته : ۵\۹۹ ( رقم الحديث : ۲۷۷۳ )

نو ده اوويل ما دا حق تا ته دركړو ، نو بيا دوی سواره شو -
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د كوم سړي په دې روايت كښې ذكر دې هغه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه وو -
ابن العربی په شرح د ترمذی كښې ليكلي دی چه سړې په خپله سوارلئ په وړاندې حصه د سوريدو زيات مستحق څكه دې چه دا يو شرافت دې او دا شرافت د مالك حق دې ، لكه چه د چلولو حق ده ته دې ، چه تيز ئې چلوی او كُه رو ، د تصرف دا اختيار مالك ته وی- (۱)

**قوله: ذكر شرُّ الثلاثة عند عكرمة**: د عكرمه په خوا كښې چه په يو سوارلئ باندې د درې سړو د سوريدو د بد والی ذكر اوكړو چه په يو سوارلئ باندې د دريو سړو سوريدل بده خبره ده ، نو دوی اوويل : چه رسول الله ﷺ د خپل ځان نه وړاندې قُثَم او د ځان نه روستو فضل كښينولې وو يا ئې فضل وړاندې او قُثم روستو كښېنولې وو نو دوی كښې كوم يو ښه دې او كوم يو بد ... عكرمه رد اوكړو چه د دريو ناسته بده نه ده ، د حضور ﷺ نه ثابت ده ، " شرُّ الثلاثة " كښې اضافت لفظيه دې ، دا د الحسن الوجه د قبيلې نه دې ، (۲)
علامه قسطلانی رحمه الله ليكي -

وحاصل المعنى انهم ذكروا عند عكرمة أن ركوب الثلاثة على الدابة شر و ظلم ، و أن المقدم شر أو المؤخر، فأنكر عكرمة ذلك مستدلا بفعله ﷺ ، إذ لا يجوز نسبة الظلم إلى أحدهما ، لأنهما ركبا بحمله إياهما (۳)

يعنی د عكرمه خوا كښې چا په يو سوارلئ باندې د دريو كسانو د سوريدو ذكر اوكړو چه دا ظلم او بد دې او وړاندينئ يا روستنئ بد دې ، نو عكرمه ددې انكار اوكړو ، او استدلال كښې ئې د رسول الله ﷺ عمل پيش كړو ، چه دوی دا دواړه خپل ځان پسې كښينولې وو ، دوی كښې د چا طرف ته هم د ظلم نسبت نه شی كيدې
دا حديث په صحاح سته كښې صرف امام بخاری رحمه الله رانقل كړيدې - (۴)

## ۹۹=بَاب إِرْدَافِ الرَّجُلِ خَلْفَ الرَّجُلِ

[۵۶۲۲] حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَا أَنَا رَدِيفُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلَّا أَخِرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ يَا مُعَاذُ بْنَ جَبَلٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ حَقُّ اللَّهِ

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۴۸۶)
۲) عمدة القاری : ۲۲\۷۸ ، إرشاد الساری : ۱۲\۶۳۴ ، فتح الباری : ۱۰\۴۸۶)
۳) إرشاد الساری : ۱۲\۶۳۴)
۴) عمدة القاری : ۲۲\۷۸ ، إرشاد الساری : ۱۲\۶۳۴)

عَلَى عِبَادِهِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً ثُمَّ قَالَ يَا مُعَاذُ بْنَ جَبَلٍ قُلْتُ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ فَقَالَ هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ إِذَا فَعَلُوهُ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَهُمْ [ر: ٢٧٠١]

سرې په سرې پسې كښيناستې شي په بعضې نسخو كښې دلته باب نشته دې ، په روايت د باب كښې حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائي چه څه د رسول الله ﷺ پسې سور ووم ، څما او د دوى په مينځ كښې د زين د لرگو نه ماسوا بل څيز حائل نه وو ، دوى ﷺ اوفرمائل : اے معاذ ، ما اوويل : لبيك رسول الله و سعديك ، بيا د لږ ساعت تلو نه پس ئې اوفرمائل : اے معاذ ما اوويل : لبيك رسول الله و سعديك ، بيا د لږ ساعت تلو نه پس يې اوفرمائل : اے معاذ ، ما اوويل : لبيك رسول الله و سعديك ، دوى اوفرمائل : تا ته پته شته چه د الله تعالى په خپل بنده څه حق دې ، ما اوويل : " الله و رسوله اعلم " دوى اوفرمائل د الله تعالى حق په بنده دا دې چه د ده عبادت اوكړى او ده سره شرك اونكړى بيا د لږ ساعت تلو نه پس يې اوفرمائل : اے معاذ ، ما اوويل : لبيك رسول الله و سعديك وې فرمائل : تا ته پته شته چه په الله تعالى د بنده څه حق دې چه كله دې دا كار اوكړى ما اوويل : الله و رسوله اعلم ، ( الله او د ده رسول ښه پوهيږى ) دوى اوفرمائل : د بنده حق په الله تعالى دا دې چه دې ده ته عذاب ورنكړى -

**قوله: ما حق العباد على الله:** علامه قسطلانى رحمه الله ليكى "هو من باب المشاكلة، وهو نوع من أنواع البديع الذى يحسن به الكلام، أو المراد به أنه حق شرعى لا واجب بالعقل كما تقول المعتزلة، وكأنه لما وعد به، ووعده الصدق، صار حقا من هذه الجهة،" (١)

حاصل دا دې چه د الله په ذمه د هيڅ چا څه حق نشته دې دى وجه نه " حق العباد على الله " مشاكلتا اوويلې شو چه دېنه وړاندې حق الله على العباد ويلې شوې وو ، نو په كلام كښې ئې ددې شكل برقرار ساتلو دپاره حق العباد على الله اوويلې ، او يا دېنه شرعي حق مراد دې، الله چه ددې وعده كړيده اود الله وعده خو رښتيا وى، خپله وعده په هرحالت كښې پوره كوى، گويا الله تعالى دا په خپله ذمه واجب كړيده ، په دې اعتبار سره ئې ديته حق اوويلې.

## ١٠٠=بَاب إِرْدَافِ الْمَرْأَةِ خَلْفَ الرَّجُلِ ذَا مَحْرَمٍ

[٥٦٢٣] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَيْبَرَ وَإِنِّي لَرَدِيفُ أَبِي طَلْحَةَ وَهُوَ يَسِيرُ وَبَعْضُ نِسَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَدِيفُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ عَثَرَتِ النَّاقَةُ فَقُلْتُ الْمَرْأَةَ فَنَزَلْتُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا أُمُّكُمْ فَشَدَدْتُ الرَّحْلَ وَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

(١) إرشاد السارى : ١٢ \ ٦٣٦)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا دَنَا أَوْرَأَى الْمَدِينَةَ قَالَ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ [ر:٢٩١٩]
ښځه يا محرمه په سورلۍ کښې ځان پسې کښېنولې شي ، دا د شرم او د حيا خلاف نه ده سنت کښې د دې اصل شته دې

قلت : المرأة :" المرأة" په ترکيب کښې منصوب ده " أى احفظ المرأة" او مرفوع هم کيدې شى " أى وقعت المرأة" ( [1] )

## ١٠١= بَاب الِاسْتِلْقَاءِ وَوَضْعِ الرِّجْلِ عَلَى الْأُخْرَى

[٥٦٢٣] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَمِّهِ أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْطَجِعُ فِي الْمَسْجِدِ رَافِعًا إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى [ر:٤٦٣]

استلقاء ستونې ستغ ملاستې ته وائى ، کتاب اللباس سره ددې باب مناسبت بيانولو کښې حافظ ابن حجر رحمه الله ليکى : وجه دخول هذه الترجمة فى كتاب اللباس من جهة أن الذى يفعل ذلك لا يأمن من الإنكشاف ، ولا سيما الإستلقاء يستدعى النوم والنائم لا يتحفظ ، فكأنه أشار إلى أن من فعل ذلك ينبغى له أن يتحفظ لئلا ينكشف ( [2] )

حاصل دا دې چه ستونې ستغ ملاسته کښې د جامو اخوا ديخوا کيدو او د پردې د ښکاره کيدو يره وى ، امام بخارى رحمه الله ستونې ستغ څملاستونکى لره خبردارول غواړى چه د خپلو جامو خيال اوساتى -

**قوله: ووضع الرّجل على الأخرى**: ستونى ستغ ملاستې حالت کښې يو پښه په بله پښه اچول امام بخارى رحمه الله جائز ګڼړى په حديث د باب کښې ددې تصريح ده -

امام مسلم رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه نه حديث نقل کړيدې چه رسول الله ﷺ فرمائلې دى " لا يستلقين أحدكم ثم يضع إحدى رجليه على الاخرى" ( [3] ) دې حديث کښې د ستونې ستغ ملاستې په حالت کښې د پښې دپاسه بله پښې اچولو نه ممانعت راغلې دې ، دا حديث يا خو د امام بخارى رحمه الله په نزد ثابت نه دې او يا ثابت دې خو امام دا منسوخ ګڼړى ، چه لنګ دې وهلې وى او يوه پښه راغونده کړې اودرولې وى نو دې دپاسه بله پښه ايخودل مناسب نه دې ، ديکښې د عورت د ښکاره کيدو ويره شته ، او که پښې خورې وى نو بيا څه باك نشته دې- ( [4] )

.............................

[1] ) عمدة القارى : ٢٢\٧٩ ، إرشاد السارى : ١٢\٦٣٦ )
[2] ) فتح البارى : ١٠\٤٨٩ )
[3] ) رواه مسلم فى كتاب اللباس ، باب فى صنع الإستلقاء على الظهر..... : ٣\١٦٦١ ( رقم الحديث : ٢٠٩٩)
[4] ) فتح البارى : ١٠\٤٨٩ ، عمدة القارى : ٢٢\٧٩ )

# ۸۱=كتاب الأدب

(الأحاديث: ۵۶۲۵-۵۸۶۲)

كتاب الادب په يو سل اته ويشت بابونو باندې مشتمل دې ، چه ديکښې دوه سوه پنځه پنځوست احاديث دی ، پنځه اويا احاديث معلق او باقی موصول دې ، يو دپاسه دوه سوه احاديث مکرر دی او نور په ړومبی خل ذکر شويدی ، کتاب الادب کښې د حضرات اصحابو او د تابعينو او د اسلافو يوولس آثار امام بخاری رحمه الله ذکر کړيدی -

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

# ۸۱--كتاب الادب

ادب نوم دې د ښو او د بهترئ د اختيارولو ، برابره خبره ده چه ددې تعلق د عمل سره وی او که د خبرې سره ، ښه اخلاق کول ، د لويو احترام کول ، وړو سره شفقت کول ، تهذيب او ښه سرېتوب اختيارولو ته ادب وائی - (۱)

مولانا انور شاه کشميری رحمه الله په فيض الباری کښې د ادب ترجمه په تميز ( هوښيارتوب ) سره کړيده - (۲)

محدثين حضرات په " كتاب الادب " کښې د رسول الله ﷺ هغه احاديث ذکر کوی چه انسان ته د معاشرتی ژوند اخلاق او آداب ، د رشتو او د رشته دارانو حقونه او د تعلق ساتونکو سره د سلوك تعليم ورکوی چه کوم سرور کائنات ﷺ انسانيت ته ورکړيدی -

امام بخاری رحمه الله په صحيح بخاری کښې " كتاب الادب " ډير په تفصيل سره پيش کړيدې چه ديکښې دوی د شپږوشلو نه زيات بابونه قائم کړيدی -

## ۱=باب البر والصلة

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا [العنكبوت:۸]

[۵۶۲۵] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ الْوَلِيدُ بْنُ عَيْزَارٍ أَخْبَرَنِي قَالَ سَمِعْتُ أَبَا عَمْرٍو الشَّيْبَانِيَّ يَقُولُ أَخْبَرَنَا صَاحِبُ هَذِهِ الدَّارِ وَأَوْمَأَ بِيَدِهِ إِلَى دَارِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْعَمَلِ أَحَبُّ إِلَى اللَّهِ قَالَ الصَّلَاةُ عَلَى وَقْتِهَا قَالَ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ بِرُّ

(۱) عمدة القاری : ۲۲\۸۱ ، فتح الباری : ۱۰\۴۹۰ ، شرح الکرمانی : ۲۱\۱۴۶ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱۳ ، إرشاد الساری : ۱۲\۱۳ )

(۲) فيض الباری : ۴\۳۸۵ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱۳ )

الْوَالِدَيْنِ قَالَ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي بِهِنَّ وَلَوْ اسْتَزَدْتُهُ لَزَادَنِي [ر: ۵۰۴]

په هندوستانی نسخو کښې د "البر والصلة" الفاظ نشته دې ، امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د مور پلار د تابعدارئ ، د اطاعت او د دوی سره ښه سلوك او د صله رحمئ بیان کړیدې -

**ترجمة الباب** کښې امام بخاری رحمه الله د قرآن کریم آیت ( ووصینا الانسان بوالدیه حسنا ) ذکر کړیدی ، دارنګه الفاظ په درې سورتونو کښې واقع دې سورت عنکبوت کښې دی ( و وصینا الانسان بوالدیه حسنا و ان جاهداك لتشرك بی مالیس لك به علم ) [1] په سورت لقمان کښې دی ( و وصینا الانسان بوالدیه حملته امه وهنا علی وهن ) [2] او سورت احقاف کښې دی ( و وصینا الانسان حسنا حملته امه کرها و وضعته کرها ) [3]

دلته د سورت عنکبوت والا آیت کریمه مراد دې چه کوم د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د واقعه متعلق نازل شوې وو ، چه د دوی مور خوراك ښکاك پریخودې وو چه د حضرت سعد نه ئې مطالبه وه چه دین اسلام پریږده ، حضرت سعد د دې دا مطالبه نه منله نو د سورت عنکبوت دا آیت نازل شو [4] چه د هغې حاصل دا دې چه د مور پلار اطاعت واجب دې ، خو په شرك او په خلاف شریعت امورو کښې د دوی اتباع نه دی کول پکار -

د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د مور نوم حمنه لیکلې شویدې ، او په هیڅ روایت کښې هم ددې د اسلام د راوړو ذکر نه ملاویږی ، ابن حجر رحمه الله لیکی "ولم أرفي شيء من الأخبار أنها أسلمت" [5]

**قوله: الوليد بن عيزار أخبرني:** دیکښې د راوی نوم په صیغه مقدم کړې شویدې او دا جائز دې ، د عام اسلوب مطابق " اخبرني الوليد .... " کیدل پکار وو خو دلته " اخبرني " ئې د نوم نه پس ذکر کړیدې ، شعبه دا اسلوب په کثرت سره استعمال کړیدې [6] د دوی شیخ ابو عمرو شیبانی دې ، د دوی نوم سعد بن ابی ایاس دې ، دې وائی ما ته ددې کور اوسیدونکی خبر راکړو او د حضرت عبد الله بن مسعود کور ته ئې اشاره اوکړه ، چه دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه کوم عمل افضل دې ؟ نو وے فرمائل : مونځ په خپل وخت کښې کول، تپوس ئې اوکړوبیا کوم یو؟ نووے فرمائل، د مور او پلار تابعداری کول او دوی سره ښه سلوك کول ، تپوس ئې اوکړو ، بیا کوم یو ؟ نو وے فرمایل : جهاد فی سبیل الله -

---

[1] سوره عنکبوت ۸)
[2] سوره لقمان ۱۴)
[3] سورت احقاف ۱۵)
[4] عمدة القاری : ۲۲ \ ۸۱)
[5] فتح الباری : ۱۰ \ ۴۹۱)
[6] فتح الباری : ۱۰ \ ۴۹۱ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۸۱ ، إرشاد الساری : ۱۳ \ ۴)

دا حديث هم دې متن او سند سره په "كتاب الصلاة" كښې په "باب فضل الصلاة لوقتها" كښې تير شويدې-

## ۲=بَابٌ مَنْ أَحَقُّ النَّاسِ بِحُسْنِ الصُّحْبَةِ

[۵۶۲۶] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ شُبْرُمَةَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَحَقُّ النَّاسِ بِحُسْنِ صَحَابَتِي قَالَ أُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ أُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ أُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ أَبُوكَ وَقَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ وَيَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ حَدَّثَنَا أَبُو زُرْعَةَ مِثْلَهُ

د ښه ملګرتيا او د ښه سلوك د ټولو نه زيات حقدار څوك دى ، امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د دوى ذكر كړيدې

**د مور حق د اطاعت او د خدمت زيات دې** : روايت كښې دي چه يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او عرض ئې اوكړو اے د الله رسوله ، څما د ښه سلوك څوك زيات حقدار دى ؟ نو وې فرمائل : د ستا مور ، عرض ئې اوكړو : بيا څوك ؟ نو وې فرمائل : د ستا مور ، ده تپوس اوكړو : بيا څوك ؟ نو وې فرمائل : د ستا مور ، ده بيا تپوس اوكړو ، بيا څوك ؟ ..... نو وې فرمائل : د ستا پلار ،

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا راتلونكې سړې شايد حضرت معاويه بن حَيده وو ، څكه چه امام بخارى رحمه الله په " الادب المفرد " كښې د دوى هم يو داسې حديث رانقل كړيدې - (۲)

خو علامه عينى د حافظ ددې خبرې سره اتفاق نه دې كړې ، دوى وائى چه د داسې څو واقعاتو ذكر په روايتونو كښې راغلې دې ، دې وجه نه دا ويل چه " الادب المفرد " په روايت كښې كوم نوم راغلې دې هغه د بخارى د باب په روايت كښې هم مراد دې څه معتمد خبره نه ده - (۳)

په روايت د باب كښې درې څله رسول الله ﷺ د مور ذكر كړيدې چه دا زياته حقداره ده او په څلورم څل ئې د پلار ذكر كړيدې - د بچى درې مراحل داسې دي چه ددې مشقت صرف مور تيروى ، يو حمل ، دويم وضع د حمل ، او دريم رضاعت ، قرآن مجيد دې درې واړو مراحلو ته اشاره كړيده ﴿وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ

---

۱) ۵۶۲۶) الحديث أخرجه مسلم فى البر و الصلة و الآداب ، باب بر الوالدين و أنهما أحق به : ۴\۱۹۷۴ ( رقم الحديث : ۲۵۴۸ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الوصايا ، باب النهى عن الإمساك فى الحياة و التبذير عند الموت : ۲\۹۰۳ ( رقم الحديث : ۲۷۰۶ )

۲) فتح البارى : ۱۰\۴۹۲ ، ارشاد السارى : ۱۳\۵ )

۳) عمدة القارى : ۲۲\۸۲ )

ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا﴾ مور څو مياشتې د حمل بوج اوچتوى ، د ولادت سختې تيروى ، بيا ورته پئې وركوى او په زمانه د رضاعت كښې ئې نګهبانى كوى ، دې آيت كښې د درې واړو مرحلو ذكر دې - (١)

ددې حاصل هم دا دې چه د مور پلار په حق د اطاعت او د خدمت كښې كُه څه مقابله راشى نو د مور حق به مقدم وى او دېته به ترجيح وركولې كيږى

قاضى عياض فرمائى چه دجمهورو عالمانو مسلك هم دا دې چه اطاعت كښې د مور حق ته د پلار په حق ترجيح وركولې كيږى (٢) بلكه حارث محاسبى په دې اجماع نقل كړيده(٣)

خو دبعض عالمانو مسلك دا دې چه د دواړو حق برابر دې ، حافظ ددې نسبت بعض شوافعو ته كړيدې - (٤)

شارح د بخارى ابن بطال نقل كړې دى چه د امام مالك نه تپوس اوشو چه پلار دې رابلى او مور دې منع كوى ، داسې كښې څه حكم دې ، وې فرمائل :" د پلار اطاعت اوكړه او د مور د نافرمانۍ نه بچ شه " - (٥)

هم دا مسئله چه كله د ليث نه اوپوښتلې شوه نو دوى اوويل :" د مور خبره دې اومنى څكه چه ددې د اطاعت حق زيات دې " - (٦)

امام احمد او نسائى د حضرت عائشه يو روايت رانقل كړيدې او حاكم د دې تصحيح كړيده - حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى ما تپوس اوكړو " په ښځې د ټولو نه زيات حق د چا دې ؟ نو وې فرمائل : د خاوند ، بيا ما تپوس اوكړو په سړى زيات حق د چا دې ؟ نو وې فرمايل : د مور - (٧)

**قوله: وقال ابن شبرمة ويحي بن أيوب: حدثنا أبوزرعة مثله:** عبد الله بن شبرمه د كوفې يو مشهور فقيه او قاضى دې ، د دوى او د يحي روايت امام بخارى رحمه الله په " الادب المفرد " كښې موصول نقل كړيدې - (٨)

...

(١) سورت احقاف ١٥\ )

(٢) فتح البارى : ٤٩٢\١٠ ، الابواب والتراجم : ١١٣\٢ )

(٣) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ١٩١\٩ ، فتح البارى : ٤٩٣\١٠ ، عمدة القارى : ٨٣\٢٢ ، الابواب و التراجم : ١١٣\٢ )

(٤) فتح البارى : ٤٩٢\١٠ ، الابواب و التراجم : ١١٣\٢ ، ارشاد السارى : ٥\١٣ )

(٥) شرح البخارى لابن البطال : ١٩٠\٩ ، فتح البارى : ٤٩٣\١٠ )

(٦) شرح البخارى لابن بطال : ١٩٠\٩ )

(٧) فتح البارى : ٤٩٣\١٠ )

(٨) فتح البارى : ٤٩٣\١٠ )

## ۳=بَاب لَا يُجَاهِدُ إِلَّا بِإِذْنِ الْأَبَوَيْنِ

[۵۶۲۷]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ وَشُعْبَةَ قَالَا حَدَّثَنَا حَبِيبٌ قَالَ ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُجَاهِدُ قَالَ لَكَ أَبَوَانِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ [ر:۲۸۴۲]

**جهاد ته تلو دپاره د مور پلار اجازت ضروری دې:** عام حالاتو کښې د مور پلار د اجازته بغير جهاد ته تلل صحيح نه دی ، خو کۀ نفير عام وی نو بيا د مور پلار د اجازت ضرورت نشته دې ، د امام بخاری رحمه الله مقصود د مور پلار اهميت بيانول مقصود دې - چه د جهاد په شان اهم فريضه ادا کولو دپاره هم د مور پلار د اجازت ضرورت دې -

امام بخاری رحمه الله په کتاب الجهاد کښې داسې يو باب په " باب الجهاد باذن الابوين " په عنوان سره قايم کړيدې -

**قوله: ففيهما فجاهد:** اى ان كان لك ابوان ، فأبلغ جهدك فى برهما و الاحسان اليهما ، فان ذلك يقوم لك مقام قتال العدو - (۱) يعنی کۀ د ستا مور پلار ژوندی وی نو د دوی خدمت او اطاعت کښې ښه محنت اوکړه هم دا د ستا دپاره د شمن سره د جهاد قائم مقام دې -

## ۴=بَاب لَا يَسُبُّ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ

[۵۶۲۸](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ أَنْ يَلْعَنَ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ يَلْعَنُ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ قَالَ يَسُبُّ الرَّجُلُ أَبَا الرَّجُلِ فَيَسُبُّ أَبَاهُ وَيَسُبُّ أُمَّهُ

رسول الله ﷺ فرمايلې دی چه د ټولو نه لويه ګناه دا ده چه سړې په خپل مور پلار لعنت اووائی ، اوويلې شو : اے د الله رسوله يو سړې به څنګه په خپل مور پلار لعنت اووائی ؟ وې فرمايل :" چه يو سړې د بل سړی مورپلار ته کنځل اوکړی او هغه دده په جواب کښې د ده پلار ته کنځل اوکړی " -

اګر چه داسې دده خپل مور پلار ته کنځل نه دی کړې د بل مور پلار ته ئې کنځل اوکړل خو د ده کنځل کول ، د بل سړی د جوابی کنځلو دپاره سبب جوړ شو مقصد دا دې چه داسې حرکت نه دی کول پکار چه د مور پلار د کنځلو دپاره سبب اوګرځی -

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۴۹۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\۶ )

(۲) ۵۶۲۸ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الإيمان ، باب بيان الكبائر و أكبرها : ۱\۹۲ ( رقم الحديث : ۹۰ ) و اخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب بر الوالدين : ۴\۳۳۶ ( رقم الحديث : ۵۱۴۱ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب البر والصلة ، باب ما جاء فى عقوق الوالدين : ۴\۳۱۲ ( رقم الحديث : ۱۹۰۲ )

علامه عينى رحمه الله ليكلي دى چه څمونږ په زمانه كښې څه كمينه قسم خلق داسې هم اوليدلې شو چه په خپله مور پلار ته كنځل كوى او دوى وهى ، فرمائى چه دا وباء په مصرى ښارونو كښې ډيره عامه شويده - (۱)

**قوله: إن من أكبر الكبائر:** كبائر لويو ګناهونو ته وائى ، لوې ګناهونه هم په شدت او په بد والى كښې د يو بل نه جدا او مختلف دى ، بعض ګناهونه د نورو بعضو ګناهونو نه زيات بد وى ، د جمهورو عالمانو هم دا مسلك دې - (۲)

**د لويو ګناهونو شمار:** علامه عينى رحمه الله " اكبر الكبائر " يعنى چه كوم په لويو ګناهونو كښې زيات لوې دى د هغې شماره څورلس خودلې ده ، شرك ، د مور پلار نافرمانى ، د دروغو ګواهى ، د ضرورت او د حاجت نه د زياتو اوبو نه منع كول ، ( د ميښې او د غوا د مال كولو دپاره ) دپاره نر ساندہ ( څخې او كټې ) نه وركول ، د دروغو قسم ، په ناحق قتل كول ، د جهاد د ميدان نه تيخته كول ، په پاك دامن باندې تهمت لګول ، جادو ازده كول ، د يتيم مال خوړل ، شراب څكل ، د دروغو حديث بيانول ..... دا رنګه دا څورلس ګناهونه دى چه ديته ئې په مختلف روايتونو كښې " اكبر الكبائر " ويلې دى - (۳)

د بخارى او د مسلم په يو روايت كښې د سبع موبقات نه د بچ كيدو حكم وركړې شويدې يعنى د اووه هلاك كوونكو ګناهونو نه حضور ﷺ منع كړيده :

**إجتنبوا السبع الموبقات ، قالوا : يا رسول الله ، ماهى ؟ قال : الشرك بالله ، والسحر ، وقتل النفس التى حرم الله إلا بالحق ، وأكل الربا ، وأكل مال اليتيم ، والتولى يوم الزحف ، وقذف المحصنات الغافلات المؤمنات** " (۴)

دې حديث كښې رسول الله ﷺ د شرك ، جادو ، قتل ناحق ، سود خوړل ، د يتيم مال خوړل ، د ميدان د جهاد نه تيخته كول او په پاكدامنو مؤمنانو ښځو باندې تهمت لګول ..... دا اووه ګناهونه ئې مهلك ګرځولې دى -

حضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه يو سړى سوال اوكړو چه كبائر اووه دى وې فرمائل : **هى إلى السبعمائة أقرب منها إلى السبع غير أنه لا كبيرة مع استغفار ، ولا صغيرة مع إصرار** (۵) يعنى دا د اووو په ځائې اووه سوو ته نزدې دى ، خو استغفار او توبه چه سړې اوكړى نو يو كبيره كبيره نه پاتې كيږى او دا رنګه د اصرار سره صغيره ګناه صغيره نه پاتې كيږى بلكه كبيره جوړيږى - كبائر يعنى د لويو ګناهونو تعداد بعضو څلويښت او بعضو اويا خودلې دې - (۶)

---

(۱) عمدة القارى : ۲۲\ ۸۴)

(۲) عمدة القارى : ۲۲\ ۸۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\ ۱۳)

(۳) عمدة القارى : ۲۲\ ۸۳ - ۸۴)

(۴) رواه مسلم فى كتاب الإيمان ، باب بيان الكبائر و أكبرها : ۱\ ۹۲ ( رقم الحديث : ۸۹ ) رواه البخارى فى كتاب الوصايا ، باب قول الله تعالى : (إن الذين يأكلون أموال اليتامى) : ۲\ ۵۸۳ ( رقم الحديث : ۲۷۶۶)

(۵) عمدة القارى : ۲۲\ ۸۴ ، شرح ابن بطال : ۹\ ۱۹۸ )

(۶) عمدة القارى : ۲۲\ ۸۴)

بعض حضراتو د ګناهونو كبائرو او صغائرو ته تقسيم كولو نه انكار كړيدې او ويلې دي چه الله تعالى د كوم څيز نه منع كړيده هغه كبيره ده هيڅ ګناه صغيره نشته دې ، لكه چه ابو اسحاق اسفرائينى وائى : "ليس في الذنوب صغيرة، بل كل مانهى الله عنه كبيرة" دوى، د حضرت ابن عباس نه دا نقل كړيدې او قاضى عياض دا د محققينو نه رانقل كړيدې (۱) شارح ابن بطال اشاعره ته ددې قول نسبت كړيدې ، چه دوى وائې چه يو ګناه ته كبيره د بلې ګناه په نسبت ويلې كيږى ، ګنى فى نفسه هره ګناه كبيره ده - (۲)

خو د جمهورو مسلك دا دې چه په معاصى كښې صغائر او كبائر دواړه شته (۳) قرآن مجيد كښې دى (اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ) (۴) د يكښې د لمم نه صغائر مراد دى ، يو بل آيت كريمه كښې دى (ان تجتنبوا كبائر ما تنهون عنه نكفر عنكم سيئاتكم) (۵) دې آيتونو كښې د كبائر او د صغائر دواړو ذكر شته دې -

**د كبيره ګناه تعارفى ضابطه** : كومه ګناه كبيره ده ؟ دې دپاره بعضې عالمانو څه ضابطې بيان كړيدى ، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما او د حضرت حسن بصرى رحمه الله نه روايت دې هره هغه ګناه كبيره ده چه د هغې په سزا كښې د جهنم ، د الله د غضب ، د لعنت يا د عذاب وعيد ذكر شوې وى - (۶)

د امام احمد او په شوافعو كښې د ماوردى نه منقول دى چه هره هغه ګناه چه د هغې په وعيد كښې په آخرت كښې د جهنم ذكر وى او په دنيا كښې پرې حد واجبيږى - (۷)

ابن عبد السلام فرمائى چه دې سلسله كښې چه څومره ضابطې هم بيان شويدى ديكښې يو هم د اعتراض نه خالى نه ده ، بيا خپله ضابطه بيانوى او فرمائى :

والاولى ضبطها بما يشعر بتهاون مرتكبها بدينه اشعارا دون الكبائر المنصوص عليها - (۸)

ددې حاصل دا دې چه په نصوصو كښې د څومره ګناهونو د كبيره كيدو ذكر دې هغه خو كبائر دى ، دينه علاوه هره هغه ګناه كبيره ده چه دينه معلوميږى چه ګناه كوونكى دا معمولى او سپكه اوګنړله او وې كړله او د دې بد والى ته ئې هيڅ اهميت ورنكړو -

حافظ ابن حجر دا ضابطه بهترين ګرځولې ده - (۹)

بعض عالمان وائى چه كومه ګناه كبيره ده او شريعت ددې باره كښې د ګناه كبيره تصريح

---

۱) ارشاد السارى : ۱۳\۱۲ ، فتح البارى : ۱۰\۵۰۱)

۲) شرح صحيح البخارى لابن البطال : ۹\۱۹۸ ، فتح البارى : ۱۰\۵۰۱)

۳) فتح البارى : ۱۰\۵۰۲ ، عمدة القارى : ۲۲\۸۳ )

۴) سورت النجم : ۳۲)

۵) سورت النساء : ۳۱)

۶) شرح صحيح البخارى لابن البطال : ۹\۱۹۸ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۳ ، فتح البارى : ۱۰\۵۰۳)

۷) فتح البارى : ۱۰\۵۰۳)

۸) فتح البارى : ۱۰\۵۰۳)

۹) فتح البارى : ۱۰\۵۰۳)

نه وى كړې نو دې دپاره څه ضابطه نه شى مقرر كيدې - (١)

حديث د باب په سد د ذرائع باره كښې اصل دې

شارح بخارى علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه دا حديث د باب په باره د سد د ذرائع كښې اصل دې ، دې ليكى :

"هذا الحديث أصل فى قطع الذرائع ، وأن من آل فعله إلى محرم وإن لم يقصده ، فهو كمن قصده و تعمده فى الإثم ، ألا ترى أنه عليه السلام نهى أن يلعن الرجل والديه ؟ فكان ظاهر هذا أن يتولى الإبن لعنهما بنفسه ، فلما أخبر النبى عليه السلام أنه إذا سب أبا الرجل ، و سب الرجل أباه و أمه ، كان كمن تولى ذلك بنفسه ، وكان ما آل إليه فعل ابنه كلعنه فى المعنى ، لأنه كان سببه و مثله قوله تعالى : (ولا تسبوا الذين يدعون من دون الله فيسبوا الله عدوا بغير علم) (٢)

يعنى دا حديث د باب په باره د قطع د ذرائع كښې اصل دې او دا چه كوم كار نتيجتاً حرامو ته رسيږى ، اګر چه سړى په دې سره د حرامو قصد او اراده نه وى كړې ، بيا هم دا كار په ګناه كښې د قصداً حرامو كولو برابر دې ، اوګوره په حديث كښې رسول الله ﷺ په خپل مور پلار د لعنت ليږلو نه منع كړيده ، او ددې په وضاحت كښې ئې اوفرمائل په والدينوباندې د لعنت ليږلو صورت دا دې چه سړې دبل په مور پلار باندې لعنت اووائى او هغه دده په جواب كښې د ده مور پلار ته بد رد اووائى نو ګويا ده په خپله خپل مور پلار ته بد رد اوويلې ځکه چه د دې سبب په خپله د ده عمل اوګرځيدو ، د قرآن كريم په يو آيت كښې هم د داسې كنځلو او د بدو ردو ويلو نه منع شويده ، ارشاد دې " تاسو د دوى باطل خدايانو ته بد رد مه وائې چه د كومو دوى عبادت كوى چه هسې نه دوى ددې په جواب كښې الله تعالى ته بد رد اووائى ..... "

## ٥- بَابُ إِجَابَةِ دُعَاءِ مَنْ بَرَّ وَالِدَيْهِ

[٥٦٢٩] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا ثَلَاثَةُ نَفَرٍ يَتَمَاشَوْنَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ فَمَالُوا إِلَى غَارٍ فِي الْجَبَلِ فَانْحَطَّتْ عَلَى فَمِ غَارِهِمْ صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ انْظُرُوا أَعْمَالًا عَمِلْتُمُوهَا لِلَّهِ صَالِحَةً فَادْعُوا اللَّهَ بِهَا لَعَلَّهُ يَفْرُجُهَا فَقَالَ أَحَدُهُمُ اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ لِي وَالِدَانِ شَيْخَانِ كَبِيرَانِ وَلِي صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ أَرْعَى عَلَيْهِمْ فَإِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ فَحَلَبْتُ بَدَأْتُ بِوَالِدَيَّ أَسْقِيهِمَا قَبْلَ وَلَدِي وَإِنَّهُ نَاءَ بِيَ الشَّجَرُ فَمَا أَتَيْتُ حَتَّى أَمْسَيْتُ فَوَجَدْتُهُمَا قَدْ نَامَا فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ أَحْلُبُ فَجِئْتُ بِالْحِلَابِ فَقُمْتُ عِنْدَ رُءُوسِهِمَا أَكْرَهُ أَنْ أُوقِظَهُمَا مِنْ نَوْمِهِمَا وَأَكْرَهُ أَنْ أَبْدَأَ بِالصِّبْيَةِ قَبْلَهُمَا وَالصِّبْيَةُ يَتَضَاغَوْنَ

---

١) فتح البارى : ١٠\٥٠٣)

٢) شرح البخارى لابن بطال : ٩\١٩٢ ، ١٩٣ ، فتح البارى : ١٠\٤٩٤ ، الابواب و التراجم : ٢\١١٣)

عِندَ قَدَمَيَّ فَلَمْ يَزَلْ ذَلِكَ دَأْبِي وَدَأْبَهُمْ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرَى مِنْهَا السَّمَاءَ فَفَرَجَ اللَّهُ لَهُمْ فُرْجَةً حَتَّى يَرَوْنَ مِنْهَا السَّمَاءَ وَقَالَ الثَّانِي اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَتْ لِي ابْنَةُ عَمٍّ أُحِبُّهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ فَطَلَبْتُ إِلَيْهَا نَفْسَهَا فَأَبَتْ حَتَّى آتِيَهَا بِمِائَةِ دِينَارٍ فَسَعَيْتُ حَتَّى جَمَعْتُ مِائَةَ دِينَارٍ فَلَقِيتُهَا بِهَا فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا قَالَتْ يَا عَبْدَ اللَّهِ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تَفْتَحِ الْخَاتَمَ فَقُمْتُ عَنْهَا اللَّهُمَّ فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي قَدْ فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا مِنْهَا فَفَرَجَ لَهُمْ فُرْجَةً وَقَالَ الْآخَرُ اللَّهُمَّ إِنِّي كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ قَالَ أَعْطِنِي حَقِّي فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ فَتَرَكَهُ وَرَغِبَ عَنْهُ فَلَمْ أَزَلْ أَزْرَعُهُ حَتَّى جَمَعْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَرَاعِيَهَا فَجَاءَنِي فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تَظْلِمْنِي وَأَعْطِنِي حَقِّي فَقُلْتُ اذْهَبْ إِلَى ذَلِكَ الْبَقَرِ وَرَاعِيهَا فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تَهْزَأْ بِي فَقُلْتُ إِنِّي لَا أَهْزَأُ بِكَ فَخُذْ ذَلِكَ الْبَقَرَ وَرَاعِيَهَا فَأَخَذَهُ فَانْطَلَقَ بِهَا فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ مَا بَقِيَ فَفَرَجَ اللَّهُ عَنْهُمْ [ر: ٢١٠٢]

دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د والدينو د اطاعت کوونکی د دعاء د قبليدو ذکر کړيدې ، او ددې لاندې ئې د درې سړو هغه مشهوره واقعه نقل کړيده چه هغې کښې دا درې واړه په يو غار کښې دننه بند شی او د خپلو نيکو اعمالو په وسيله سره دعا کوی او آزادی حاصله کړی....دا حديث په " كتاب البيوع، باب اذا اشترى لغيره.... " کښې تير شويدې -

رُحتُ عليهم: رُحتُ: د رواح نه دې ، د ماښام په وخت راتلل - نأى بي الشجر: اونو خه لرې بوتلم ، يعنى چيلئ څرولو څرولو کښې لرې اووتلم - نأى نأيا دباب د فتح نه دې ، ددې معنى د لرې کيدو راځی - الحلاب : د محلوب په معنى کښې دې يعنى پئې ، بعض وائی چه کوم لوښی کښې پئې لشلې کيږی ، هغه لوښې ته حلاب وائی - (۱)

يتضاغون: شور ئې کولو ژړل ئې ، فرق أرز: ارز روژو ته وائی ، او فرق ( د راء په فتحه سره ) د يو پيمانې نوم دې چه ديکښې شپاړلس رطل راځی - (۲)

دلته اشکال کيږی چه داولاد نفقه د والدينو د نفقه نه مقدم ده ، ددې رعايت اونه شو بلکه دا نيکی شمار کړې شوه -

ددې جواب کښې ويلې شويدی چه ممکن ده چه د دوی په دين کښې د والدينو نفقه مقدم وی .... او دا هم ممکن ده چه اولاد ته ئې په قدرد ضرورت نفقه ورکړې وی ، دينه پس دوی د قدر د ضرورت نه د زياتو مطالبه کوله - (۳)

---

[1]) عمدة القاری : ۲۲\۸۶ ، ارشاد الساری : ۱۳\۸)
[2]) عمدة القاری : ۲۲\۸۶ ، ارشاد الساری : ۱۳\۹)
[3]) عمدة القاری : ۲۲\۸۶)

# ٦- بَابُ عُقُوقِ الْوَالِدَيْنِ مِنَ الْكَبَائِرِ

قَالَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٦٢٩٨]

[٥٦٣٠] حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ وَرَّادٍ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ وَمَنْعًا وَهَاتِ وَوَأْدَ الْبَنَاتِ وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ وَإِضَاعَةَ الْمَالِ [ر: ١٤٠٧]

[٥٦٣١] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْوَاسِطِيُّ عَنِ الْجُرَيْرِيِّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ قُلْنَا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الْإِشْرَاكُ بِاللَّهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ أَلَا وَقَوْلُ الزُّورِ وَشَهَادَةُ الزُّورِ أَلَا وَقَوْلُ الزُّورِ وَشَهَادَةُ الزُّورِ فَمَا زَالَ يَقُولُهَا حَتَّى قُلْتُ لَا يَسْكُتُ [ر: ٢٥١١]

[٥٦٣٢] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَبَائِرَ أَوْ سُئِلَ عَنِ الْكَبَائِرِ فَقَالَ الشِّرْكُ بِاللَّهِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ فَقَالَ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِأَكْبَرِ الْكَبَائِرِ قَالَ قَوْلُ الزُّورِ أَوْ قَالَ شَهَادَةُ الزُّورِ قَالَ شُعْبَةُ وَأَكْثَرُ ظَنِّي أَنَّهُ قَالَ شَهَادَةُ الزُّورِ [ر: ٢٥١٠]

عقوق ( د عین په ضمه سره ) نافرمانئ ته وائی ، دحضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ روایت وړاندې په " کتاب الایمان و النذور ، باب الیمین و الغموس " کښې موصولاً راروان دې - چه هغه دلته امام تعلیقًا ذکر کړیدې ، دیکښې دی " **الکبائر : الإشراك بالله ، وعقوق الوالدين ، وقتل النفس واليمين الغموس** "(١)

د ړومبی روایت په سند کښې د منصور نه مراد منصور بن المعتمر دې او د مسیب نه مسیب بن رافع مراد دې ، د دوی شیخ وراد دې چه د حضرت مغیره بن شعبه کاتب وو .... رسول الله ﷺ فرمائی .... " الله تعالی د میندو نافرمانی ، حقدارو ته د دوی حق نه ورکول ، او لونړه ژوندئ خخول حرام کړیدی ، او د ستاسو دپاره ئې قیل و قال ، زیات سوال کول او د مال ضائع کول ناخوښه کړې دی -

**الأمهات:** دا د أمهة جمع ده ، مور ته وائی ، لفظ د أم ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړو دپاره استعمالیږی ، او أمهة صرف د ذوی العقول دپاره استعمالیږی - (٢)

**ومَنْعًا وهات:** بعض روایتونو کښې " ومنع وهات " راغلې دې ، مَنْع خو واضح ده چه مصدر د

---

١) فتح الباری : ١٠\٤٩٧ ، عمدة القاری : ٢٢\٨٦ )
٢) فتح الباری : ١٠\٤٩٨ )

منع يمنع دي ، منع کول ، بندول ؛ دلته د منع کولو نه د هغه حقونو منع کول مراد دی ، چه دهغي د اداء کولو حکم راغلي دي ، مثلاً زکات ، صدقات او معمولی څيزونه بل ته د ورکولو نه بندول ، د هات معنی ده :راوړه ، ورکړه ، خليل نحوی فرمائی دا اصل کښې " آت " وو همزه په هاء سره بدله شوه - (۱)

" هات " نه مراد د هغه څيز طلب او غوښتل دی چه د هغې سړې مستحق نه وی ، حاصل دا دې چه په خپله ذمه کوم حقوق دی د هغې د اداء کولو نه بې فکره اوسيدل او د خپل ځان دپاره د نورو د دې حقونو مطالبه کول چه دې د هغې د سره مستحق نه دې - (۲)

**ووأد البنات:** وَأْدٌ ( د همزې په سکون سره ) مصدر دې د دې معنی ده ژوندې خخول ، لونړه ژوندۍ خخول يو خراب رسم په عربو کښې په زمانه د جاهليت کښې شروع شوې وو ، قيس بن عاصم تميمی په باره کښې ويلې کيږی چه ده د ټولو نه وړاندې خپله لور ژوندۍ خخه کړې وه ، د ده يو دښمن په ده حمله اوکړه او د ده لور ئې اونيوله او بوئې تلله ، روستو بيا دوی کښې صلح اوشوه او جينۍ ته اختيار ورکړې شو چه د ستا خوښه که ته پلار سره څې او که خاوند سره اوسيږې ، جينۍ د خاوند سره اوسيدل خوښ کړل ، په دې باندې ده قسم اوخوړو چه د ده چه بيا کله هم لور پيدا کيږی نو دې به دا ژوندۍ دفن کوی ، او ده په دې عمل اوکړو او بيا دا رسم عام شو -(۳)

**د جينکو د ژوندې خخولو صورتونه** : د ژوندې خخولو يوصورت به دا وو چه دښځې به د وضع د حمل زمانه رانزدې شوه نو دا به ئې د يو کندې سره پريخودله ، نو د وضع د حمل نه پس به که هلك وو خودا به ئې راوړو ، که جينۍ به وه نودا به ئې هم په دغه کنده کښې دفن کړو - دويم صورت به دا وو چه جينۍ به کله د پنځو شپږو کالو شوه نو خاوند به ښځې ته اوويل چه رشته دارانو کره ځو ، دا تياره کړه ، چه دې به دا تياره کړه نو پلار به دا د رشته دارانو په ځائې صحراء ته د يو کوهی خوا ته بوتلله ، ديته به ئې ويل ، ديکښې اوګوره ، نو دې به چه په کوهی کښې اوکتل نو پلار به ورته د شا نه ديکه ورکړه او په کوهی کښې به ئې اوغورزوله - (۴)

د جينکو د ژوندی ښخولو په شان د هلکانو د ژوندی خخولو هم رواج وو ، بعض خلقو به په ميراث کښې دحصه اخستويا دخرچې د يرې نه خپل اولاد پيدا کولو سره ژوندې خخولو(۵)

قرآن کريم کښې د دې ذکر په څو آيتونو کښې راغلې دې ، يو ځائې کښې دی ( ولا تقتلوا أولادكم خشية إملاق نحن نرزقهم وإياكم إن قتلهم كان خطئا كبيرا )(۶)

---

۱) فتح الباري : ۱۰\٤۹۸ ، عمدة القاری : ۲۲\۸۷)
۲) شرح الکرمانی : ۲۱\۱۵۱ ، فتح الباری : ۱۰\٤۹۸ ، عمدة القاری : ۲۲\۸۷)
۳) فتح الباری : ۱۰\٤۹۸ ، عمدة القاری : ۲۲\۸۷)
٤) فتح الباری : ۱۰\٤۹۸ )
۵) عمدة القاری : ۲۲\۸۷ ، فتح الباری : ۱۰\۹۸)
۶) سورة الأسراء : ۳۱)

**قوله: وكره لكم قيل وقال:** په قيل او قال كښې درې اقوال دى
① دا دواړه اسم دى ،جوهرى په صحاح كښې هم دا اختيار كړيدې او دليل ئې دا وركړيدې چه په دوى الف لام داخليږى چه كوم د اسم په علاماتو كښې دې ، وائى " فلان كثير القيل و القال " (۱)
دې صورت كښې د حديث مطلب دا دې چه زيات بحث او خبرې اترې كول مكروه دى ځكه چه كثرت د كلام بهر حال د نقصان او د خطاء ذريعه جوړيږى -
② قال فعل ماضى معروف او قيل ماضى مجهول دې او ديكښې اشاره ده چه سړى د خلقو اقوال او قصې په كثرت سره نقل كړى او اووائى چه قال فلان كذا و قيل كذا ... فلان دا اوويل ، او دا خبره اوويلې شوه نو د داسې اقوالو په كثرت سره نقل كول مكروه دى ..... ځكه چه دارنګه څه خبرې به غلطې او د حقيقت نه خلاف نقل كړى - (۲)
③ دينه دينى معاملاتو كښې د اختلافى اقوالو ذكر مراد دې چه فلانى دې مسئله كښې دا ويلې دى او د فلانئ مسئله ئې دا حكم بيان كړيدې ، قال فلان كذا و قيل كذا فى هذه المسئلة ..... نو دارنګه په كثرت سره اقوال رانقل كول مكروه دى ځكه چه ديكښې د غلط قول نقل كولو امكان زيات وى - خو كُه څوك په تحقيق سره خبره كوى نو هغه ديكښې داخل نه دې ، خو ظاهره ده چه خلقو كښې د محققينو تعداد ډير كم وى - (۳)
په دې آخرى دوه صورتونو كښې " قيل و قال " فعل دې او حكايتًا ددې ذكر دې خو رومبې قول راجح معلوميږى -

**قوله: وكثرة السؤال:** زيات سوال كول .... د سوال كولو نه غوښتل هم مراد كيدې شى او د مسئلو متعلق سوال كول هم مراد اخستې شى ، بعض عالمان وائى چه دينه د خلقو د حالاتو متعلق زيات سوالونه كول مراد دى ، دارنګه د يو معين سړى په باره كښې زيات سوالونه او تجسس كول هم صحيح نه دى - (۴)
عام حالاتو كښې غوښتل هم جائز نه دى ، د ابوداود روايت دې :
"إن المسئلة لا تصلح إلا لثلاثة : لذى فقر مدقع ، أو لذى غرم مفظع أو لذى دم موجع" (۵)
يعنى درې قسمه سړى سوال كولې شى يو فقير چه د هغه سره څه هم نه وى ، دويم سخت نقصان اوچتوونكې او دريم هغه قاتل چه دده په ذمه ديت دې كُه دې ديت وركړى نو دې به په قصاص كښې قتل كړې شى -

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۹۸) -
(۲) عمدة القارى : ۲۲\۸۷ ، فتح البارى : ۱۰\۴۹۹)
(۳) فتح البارى : ۱۰\۴۹۹ ، عمدة القارى : ۲۲\۸۷ ، شرح الكرمانى : ۲۱\۱۵۱ )
(۴) عمدة القارى : ۲۲\۸۷ ، فتح البارى : ۱۰\۴۹۹ ، شرح الكرمانى : ۲۱\۱۵۱ )
(۵) أخرجه أبوداود فى كتاب الزكاة ، باب ماتجوز فى المسئلة : ۲\۱۲۰ ( رقم الحديث : ۱۶۴۱ ) ، بذل المجهود : ۸\۱۸۳ )

مشهور حديث دي، رسول الله ﷺ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته اوفرمائل "إذا سألت فاسئل الله"[1] د سنن ابى داود روايت كښې دى "إن كنت لابد سائلا، فاسئل الصالحين"[2] كه د غوښتو نه دې بله څه چاره نه وى نو بيا د نيكانو نه اوغواړه -

**د غوښتلو حكم** : بغير د ضرورته غوښتل خو بالاتفاق جائز نه دى ، خو چه كوم سړې ضرورتمند وى او په ګټلو قادر نه وى نو ده دپاره غوښتل جائز دى او كه نه ؟ په دې باره كښې دوه قوله دى د تحريم او د جواز سره د كراهته خو د كراهت سره د جواز دپاره درې شرطونه ذكر شويدى چه په غوښتو كښې اصرار نه وى ، د خپل ځان تذليل نه وى او چه د چا نه غواړي هغه تنګ نه كړى .... د دې درې شرطونو سره د غوښتو اجازت وركړې شويدې - ([3]) دلته حديث كښې كثرت سوال يعنى زيات غوښتلو ته مكروه ويلې دى ، دينه معلومه شوه چه په قدر د ضرورت غوښتل مكروه نه دى -

ياد اوساتئ چه دلته د غوښتلو نه دخپل ځان دپاره غوښتل مراد دى ، كه يو كس د نورو دپاره غواړي ، چه اهل خير او مالداران د محتاجانو او د بې وسو امداد ته متوجه كوى يا لكه چه څنګه د مدرسو منتظمين د دينى علمونو حاصلوونكو طالبانو د خرچې برداشت كولو دپاره اهل خير مسلمانان متوجه كوى نو دوى په ديكښې داخل نه دى بلكه دا خو په خپله يو زبردست د اجر او د ثواب والا عمل دې ..... خو ددې د جواز او په دې باندې اجر او ثواب ګټلودپاره شرط دا دې چه د دين او د عالمانو د وقار پوره پوره رعايت اوساتلې شى څه داسې طريقه اختيار نه كړې شى چه هغې سره د عالمانو وقار او استغناء مجروح شى يا دا د اهل علم د ذلت ذريعه جوړه شى -([4])

**قوله: وإضاعة المال** :د مال ضائع كول جائز نه دى د مال ضائع كولو نه مراد دا دې چه مال داسې خرچ كول چه ديكښې نه د آخرت فائده وى او نه د دنيا څه جائز نفع او فائده وى، د آخرت او د دنيا د فائدې نه بغير د مال خرچ كولو ته د مال ضائع كول وائى او دا جائز نه دې - ([5])

**د انفاق جائز او ناجائز صورتونه** : حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حاصل دا ليكلې دى چه د كثرت انفاق درې صورتونه دى :

① په ناجائز امورو كښې د مال خرچ كول ، دا بالاتفاق ممنوع دى -

② د نيكئ او د ښيګړې په لاره كښې مال خرچ كول .... دا بالاتفاق جائز او مطلوب دې -

③ مباح كارونو كښې مال خرچ كول ..... ددې دوه صورتونه دى يو دا چه سړې د خپل وس

---

[1] أخرجه الترمذي ، كتاب صفة القيامة ، باب بلا ترجمة : ٤\٦٦٦ ( رقم الحديث : ٢٥١٦ )

[2] أخرجه أبوداود فى كتاب الزكاة ، باب فى الاستعفاف : ٢\١٢٢ ( رقم الحديث : ٦١٤٦ )

[3] فتح البارى : ١٠\٥٠٠ ، شرح مسلم للنووى ، كتاب الزكاة باب النهى عن المسئلة : ١\٣٣٣ )

[4] رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الزكاة ، مطلب فى الحوائج الاصلية : ٢\٧٦ )

[5] فتح البارى : ١٠\٥٠٠ ، ارشاد السارى : ١٣\١١ ، عمدة القارى : ٢٢\٨٧ )

او د حالت او د عرف مطابق مال خرچ کړي ، نو دا په اسراف کښې داخل نه دې او دا جائز دې ، دويم دا چه د عرف او د معمول نه زيات خرچ کړي ، نو جمهور عالمان ديته اسراف وائي ، او بعض شوافع ديته اسراف نه وائي "لأنه تقوم به مصلحة البدن وهو غرض صحيح، وإذا كان في غير معصية فهو مباح له ...." (١) ځکه چه ديکښې د انساني جسم فائده او مصلحت دې او دا يو صحيح مقصد دې نو چه کله ده په غير دمعصيت کښې د معمول نه ئې زياته خرچه اوکړه نو دا مباح ده ) خو امام غزالي ، ابن دقيق العيد ، امام رافعي او امام نووي دا صورت په اسراف کښې داخل کړيدې - (٢)

حافظ ابن حجر ليکي : "والذي يترجح أنه ليس مذموما لذاته ، لكنه يفضي غالبا إلى ارتكاب المحذور كسؤال الناس وما أدى إلى المحذور ، فهو محذور" (٣)

يعني راجح خبره دا ده چه داسې خرچ کول في نفسه مذموم نه دې خو عموما دا ناجائز او محذور عمل ته رسول کوي ، مثلاً چه د خرچ کولو نه پس به احتياج راشي نو د خلقو نه به سوال کول راشي اوچه کوم عمل مفضي الى المحذور وي هغه په خپله محذور اوممنوع وي.

شارح د مشکاة علامه طيبي رحمه الله ددې حديث باره کښې فرمائي -

هذا الحديث أصل في معرفة حسن الخلق الذي هو منبع جميع الأخلاق الحميدة ، والخلال الجميلة" (٤)

يعني دا حديث د " حسن خلق " په معرفت کښې اصل او بنياد دې ، چه کوم د تمام حميده اخلاقو او د حسنه خصائلو منبع او سر چينه ده -

**فقال ألا وقول الزور أو قال : شهادة الزور ، فمازال يقولها حتى قلت : لا يسكت**

د دروغو خبره او د دروغو ګواهي ذوي په کبائر کښې شميرله او دوي مسلسل دا تکراروله ، تر دې چه ما اوويل چه دوي به خاموش نه شي ..... د بشر بن الفضل په روايت کښې دي.

**فقال : ألا وقول الزور ، فمازال يكررها حتى قلنا : ليته سكت** (٥)

د دروغو شهادت او ګواهي ورکول ډير اسان دي او ددې نقصانات او مضرات ډير زيات دي ، دې وجه نه رسول الله ﷺ ددې شناعت ته توجه راوستو دپاره بيا بيا د تکرار دا بليغ اسلوب اختيار کړو - (٦)

د قول الزور نه هم مراد د دروغو ګواهي ده ځکه چه هر دروغ کبيره ګناه نه ده - (٧)

---

١) فتح الباري : ١٠\٥٠٠)
٢) فتح الباري : ١٠\٥٠٠)
٣) فتح الباري : ١٠\٥٠٠)
٤) شرح المشكاة للطيبي ، كتاب الأدب ، باب البر و الصلة : ١٥٠\٩ ( رقم الحديث : ٤٩١٦ )
٥) فتح الباري : ١٠\٥٠٤)
٦) فتح الباري : ١٠\٥٠٤)
٧) فتح الباري : ١٠\٥٠٤ ، عمدة القاري : ٢٢\٨٨)

**قوله: قال شعبة: فأكثر ظني أنه قال: شهادة الزور:** يعني قول الزور او شهادة الزور كښې شك دې ، شعبه وائي چه ځما غالب گمان دا دې چه "شهادة الزور" ئې فرمائلې وو. "شهادات" كښې هم دا روايت راغلې دى هلته "شهادة الزور" بغير د شك دې - (١)

**د احاديثو نه مستنبط اداب:** حافظ ابن حجر رحمه الله ددې احاديثو نه آداب مستنبط كوى او ليكي : "وفى هذا الحديث و الذى قبله استحباب إعادة الموعظة ثلاثا لتفهم ، وانزعاج الواعظ فى وعظه ، ليكون أبلغ فى الوعى عنه والزجر عن فعل ما ينهى عنه ، و فيه غلظ أمر شهادة الزور ..... وفيه التحريض على مجانبة كبائر الذنوب ليحصل تكفير الصغائر بذلك كما وعد الله عزو جل ، وفيه إشفاق التلميذ على شيخه منزعجا ، و تمنى عدم غضبه لما يترتب على الغضب من تغير مزاجه " (٢)

يعنى ددې حديث او دينه وړاندينى حديث نه څو خبرې معلومې شوې :

① په وعظ او نصيحت كښې يو خبرې لره درې ځله تكرارول د پوهولو په غرض مستحب دى - ② د وعظ ويونكى بعض خبرې د اضطراب ، پريشانۍ او د وارخطائي په حالت كښې هم ويلې شى په داسې بليغ انداز سره د منكراتو نه د بچ كيدو اظهار كيږى -

③ دينه د دروغو د شهادت د سخت والى اظهار هم كيږى

④ د كبائرو نه د بچ كولو اهتمام كول پكار دى ، چه د كبائرو نه بچ شې نو دا بچ كيدل د صغائرو دپاره خپله كفاره جوړيږى څنگه چه الله تعالى وعده كړيده ( ان تجتنبوا كبائر ما تنهون عنه نكفر عنكم سيئاتكم )

⑤ شيخ او استاذ چه په حالت د پريشانۍ او د وارخطائى كښې اووينى نو شاگردلره په ده ترس خوړل پكار دى او دا آرزو كول پكار دى چه دې په غصه نه شى ځكه چه د غصې په وجه مزاج په اعتدال نه پاتې كيږى -

## ٧= بَاب صِلَةِ الْوَالِدِ الْمُشْرِكِ

[٥٦٣٣] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ أَخْبَرَنِي أَبِي أَخْبَرَتْنِي أَسْمَاءُ بِنْتُ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَتْ أَتَتْنِي أُمِّي رَاغِبَةً فِي عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آصِلُهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى فِيهَا لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنْ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ [ر: ٢٤٧٧]

د مشرك مور پلار سره د صله رحمۍ حكم دې باب كښې بيان كړې شويدې ، حديث د باب كښې حضرت اسماء بنت ابى بكر ﷺ د رسول الله ﷺ نه د خپلې مور سره د حسن سلوك باره كښې تپوس اوكړو نو دوى اوفرمائل چه هو دې سره ښه سلوك كوه -

---

(١) فتح البارى : ١٠\٥٠٥ ، ارشاد السارى : ١٣\١٤)

(٢) فتح البارى : ١٠\٥٠٥)

أتتنى راغبة فى عهد النبى صلى الله عليه وسلم كښې دوه روايتونه دى :

① يو راويت " راغبة " په باء سره دې ، يعنى ځما مور په عهد نبوى كښې رغبت سره ما ته راغله ، چه اسلام كښې ئې رغبت او مينه لرله يا ئې په صله رحمئ كښې مينه لرله " أى راغبة فى الإسلام أو راغبة فى صلتى .... "(١)

خو ږومبى صورت كښې به دا اشكال وى چه كله دې په اسلام قبلولو كښې رغبت او مينه لرله او دې دپاره راغله نو بيا د حضرت اسماء په دې صورت كښې د حسن سلوك كولو باره كښې د تپوس كولو څه ضرورت وو ، ځكه چه دا د مسلمانيدو دپاره راغلې وه او داسلام قبلوونكو سره حسن سلوك كول څه داسې مسئله نه ده چه د هغې متعلق تپوس اوكړې شى - (٢) ته دا ويلې شې چه احتياطًا به ئې تپوس كړې وى -

② دويم روايت " راغمة " په ميم سره دې " أى كارهة للإسلام .... " يعنى ما ته راغله خو اسلام ئې نه خوښولو - (٣)

دينه معلومه شوه چه كه والدين كافر او مشرك هم وى نو بيا هم دوى سره حسن سلوك او صله رحمئ كول پكار دى ، نظريات كښې اختلاف او دشرك او د كفر په وجه دوى سره د بدسلوكئ كولو اجازت شريعت نه دې وركړې -

## ٨=بَاب صِلَةِ الْمَرْأَةِ أُمَّهَا وَلَهَا زَوْجٌ

وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ أَسْمَاءَ قَالَ قَدِمَتْ أُمِّي وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ وَمُدَّتِهِمْ إِذْ عَاهَدُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ ابْنِهَا فَاسْتَفْتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ وَهِيَ رَاغِبَةٌ أَفَأَصِلُهَا قَالَ نَعَمْ صِلِي أُمَّكِ [ر:٢٤٧٧]

[٥٦٣٥] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ فَقَالَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْعَفَافِ وَالصِّلَةِ [ر:٧]

ښځې ته د خپلې مور سره د صله رحمئ او د حسن سلوك حكم دې ، اګر چه د دې خاوند وى او دا واده شوې وى .... ولها زوج مرجع كښې دوه احتماله دى .... ديكښې ضمير " المرأة " ته هم راجع كيدې شى او أم ته هم ... دويم صورت كښې ئې مطلب دا دې چه اګر چه د مور خاوند وى ( د مور خاوند سكه پلار وى يا ميرنې ) بيا هم دې سره صله رحمى كول پكار دى -

په حديث د باب كښې دواړه صورتونه شته دې ، حضرت اسماء واده شوې وه ، د دوى

---

(١) عمدة القارى : ٢٢ \ ٨٩ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٠٦ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٤ )
(٢) عمدة القارى : ٢٢ \ ٨٩ ، فتح البازى : ١٠ \ ٥٠٦ )
(٣) عمدة القارى : ٢٢ \ ٨٩ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٠٦ )

خاوند حضرت زبير بن العوام رضي الله عنه وو ، د دوی مور دیته راغله " مع ابيها " د خپل پلار سره چه د حضرت اسماء رضي الله عنها نیکه وو او يا ضمير اسماء ته راجع دې یعنی د حضرت اسماء مور دوی ته راغله د حضرت اسماء د میرنی پلار سره چه ددې موجوده خاوند وو -

**قوله: في عهد قريش ومدتهم:** دینه زمانه دصلح مراد ده ، رسول الله ﷺ د قریشو سره د صلح چه کومه معاهده کړې وه ، دا هم په دغه زمانه د صلح کښې راغلې وه ، علامه ابن بطال ليکی :

" وفقه هذه الترجمة من حديث أسماء أن النبي صلى الله عليه و سلم أباح لأسماء أن تصل أمها و لم يشترط في ذلك مشاورة زوجها " (۱)

يعنى د حضرت اسماء د حديث نه واضحه ده چه دوی ﷺ حضرت اسماء ته د مور سره د صله رحمئ کولو حکم ورکړې وو او خاوند سره ئې دې باره کښې دمشورې کولو شرط نه وو لګولې ، معلومه شوه چه د مور پلار سره صله رحمئ کولو کښې د چا سره د مشورې کولو ضرورت نشته دې - د باب بل روایت کښې د صله رحمئ ذکر دې " فيؤخذ حكم الترجمة من عمومها " (۲) چه اګر چه روايت کښې صله عامه ده خو ديکښې د ښځې د خپلې مور سره صله رحمی کول هم داخل دی -

## ۹= بَاب صِلَةِ الْأَخِ الْمُشْرِكِ

[٥٦٣٦] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا يَقُولُ رَأَى عُمَرُ حُلَّةَ سِيَرَاءَ تُبَاعُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ابْتَعْ هَذِهِ وَالْبَسْهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَإِذَا جَاءَكَ الْوُفُودُ قَالَ إِنَّمَا يَلْبَسُ هَذِهِ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا بِحُلَلٍ فَأَرْسَلَ إِلَى عُمَرَ بِحُلَّةٍ فَقَالَ كَيْفَ أَلْبَسُهَا وَقَدْ قُلْتَ فِيهَا مَا قُلْتَ قَالَ إِنِّي لَمْ أُعْطِكَهَا لِتَلْبَسَهَا وَلَكِنْ تَبِيعُهَا أَوْ تَكْسُوهَا فَأَرْسَلَ بِهَا عُمَرُ إِلَى أَخٍ لَهُ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمَ [ر: ٨٤٦]

**د مشرك رور سره د صله رحمئ کولو حکم :** د مشرك رور سره صله رحمی او حسن سلوك کول امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې بیان کړیدې ، " صله " مصدر دې او ددې اضافت " الاخ " مفعول به ته دې ، فاعل ئې نه دې ذکر کړې - علامه عینی رحمه الله لیکی :

" أي هذا الباب في بيان صلة المسلم لأخيه المشرك ، و الإضافة في صلة الأخ إضافة إلى المفعول و طوى ذكر الفاعل " (۳)

روايت د باب وړاندې تير شويدې ، رسول الله ﷺ حضرت فاروق اعظم ته ريښمی جوړا

---

۱) شرح ابن بطال : ۹ \ ۲۰۱ ، فتح الباری : ۱۰ \ ۵۰۷ ، ارشاد الساری : ۱۳ \ ۱۶ )

۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۵۰۶ ، ارشاد الساری : ۱۳ \ ۱۶ )

۳) عمدة القاری : ۲۲ \ ۸۹ ، ارشاد الساری : ۱۳ \ ۱۶ )

وركړه ، دوى داجوړا مکې مکرمې ته د خپل رور دپاره اوليږله چه هغه لا تر اوسه اسلام نه وو قبول کړې ، معلومه شوه چه د کافر او د مشرك رور سره صله رحمى کولې شي -
د حضرت فاروق اعظم ددې رور په باره کښې ويلې شى ، چه دا عثمان بن حکيم بن اميه وو ، چه د مشهورې صحابيې خوله بنت حکيم رور وو ، دا د حضرت عمر نه بلکه د حضرت فاروق اعظم زيد بن الخطاب د مور خوې وو ، د زيد بن الخطاب د مور نوم اسماء بنت وهب او د حضرت فاروق اعظم د مور نوم حنتمه ( د حاء په فتحه او د نون په سکون او د تاء په فتحه سره ) بنت هاشم دې - ([1])
امام نسائى رحمه الله فرمائى چه دې د حضرت فاروق اعظم د مور خوې وو ([2])
خوعلامه عينى رحمه الله ړومبى قول ته زيات صحيح ويلې دې - ([3])

## ١٠=بَاب فَضْلِ صِلَةِ الرَّحِمِ

[٥٦٣٧] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ مُوسَى بْنَ طَلْحَةَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ وحَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ وَأَبُوهُ عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُمَا سَمِعَا مُوسَى بْنَ طَلْحَةَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ فَقَالَ الْقَوْمُ مَا لَهُ مَا لَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَبٌ مَا لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْبُدُ اللَّهَ لَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصِلُ الرَّحِمَ ذَرْهَا قَالَ كَأَنَّهُ كَانَ عَلَى رَاحِلَتِهِ [ر:١٣٣٢]

**د صله رحمۍ فضيلت** : دې باب کښې د صله رحمۍ فضيلت او ددې اهميت امام بخارى رحمه الله بيان کړيدې ، روايت کښې دى چه يو سړى رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه اے د الله رسوله ما ته داسې عمل اوښايه چه ما جنت ته داخل کړى ، خلقو اوويل : په ده څه اوشو ، په ده څه اوشو ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائل : د ده يو ضرورت دې ، بيا ئې اوفرمائل : د الله تعالى عبادت کوه شرك مه کوه ، مونځ کوه ، زکات ورکوه ، او صله رحمى کوه ، اوس دا ( سوارلى ) پريږده ، راوى وائى : ګويا دې په سوارلۍ باندې سور وو ( حضور ﷺ اوفرمائل : د ستا د سوال جواب اوشو اوس سورلى پريږده )

**قوله: مَالَهُ مَالَهُ؟ فَقَالَ : أَرَبٌ مَالَهُ:** خلقو ته د دې سړى په سوال کولو تعجب اوشو ، حضور اوفرمائل چه دده څه ضرورت دې أَرَب حاجت او ضرورت ته وائى " ما " د عموم دپاره

---

[1]) عمدة القارى : ٢٢\١٢٢ ٩٠)
[2]) عمدة القارى : ٢٢\١٢٢ ٩٠)
[3]) عمدة القارى : ٢٢\١٢٢ ٩٠)

ده ، "أرب ما" څه حاجت ، څه ضرورت - (١)

**قوله: ذرها، قال: كأنه كان على راحلته:** ذرها يعنى دا سوارلي پريږده ، ديكښې دوه صورته كيدې شى يا خو دا سړې په خپلې سوارلۍ باندې سور وو او رسول الله ﷺ نه ئې په سوارلۍ او په تندۍ كښې ئې دا تپوس اوكړو ، نو چه كله دوى ﷺ دا جواب وركړو نو ورته ئې اوفرمائل اوس خپله سوارلى پريږده او روان شه -

دويم صورت دا كيدې شى چه خپله رسول الله ﷺ په سوارلۍ باندې سور وو او دا سائل راغلو او د دوى ﷺ د سوارلۍ واږې ئې اونيولې او دوى ئې اودرول او دا تپوس ئې اوكړو ، نو حضور ﷺ چه كله جواب وركړو نو وې فرمائل چه اوس ځما سوارلۍ ته لاره وركړه چه ځى - (٢)

دا حديث په كتاب الزكات كښې تير شويدې - (٣)

## ١١= باب إثم القاطع

[٥٦٣٨] (٤) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ إِنَّ جُبَيْرَ بْنَ مُطْعِمٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ

دې باب كښې د قطع رحمى كوونكى د ګناه او د سزا ذكر شويدې ، حديث كښې دى ، قطع رحمى كوونكې به جنت ته نه داخليږى ... قطع رحمى كول ګناه كبيره ده او مرتكب د ګناه كبيره به د اهل سنت و الجماعت په نزد تحت المشيت داخليږى او د تحت المشيت داخليدو مطلب دا دې چه يا خو به ابتداءً حق تعالى دې معاف كړى او دې به هډو دوزخ ته نه ځى ، او يا به دوزخ ته لاړ شى او د خپلې سزا تيرولو نه پس به جنت ته لاړ شى ، دې وجه نه حديث كښې ئې اوفرمائل چه قطع رحمى كوونكې به جنت ته نه ځى ، د دې مطلب دا دې چه دې به ابتداءً جنت ته د داخليدو مستحق نه وى ، دا خو يا په زجر او توبيخ محمول دې او يا دا وعيد دې په حق د هغه كس كښې چه هغه قطع رحمى جائز ګڼړى او داسې سړې كافر كيږى - (٥)

---

١) عمدة القارى : ٢٢\٩١ ، ارشاد السارى : ١٣\١٨ ، شرح الكرمانى : ٢١\١٥٦)

٢) عمدة القارى : ٢٢\٩١ ، ارشاد السارى : ١٣\١٨ ، شرح الكرمانى : ٢١\١٥٦)

٣) صحيح البخارى ، كتاب الزكاة باب وجوب الزكاة ( رقم الحديث : ١٣٣٢ )

٤) ٥٦٣٨ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الأدب ، باب صلة الرحم و تحريم قطيعتها : ٤\١٩٨٠ ( رقم الحديث:٢٥٥٦) وأخرجه الترمذى فى كتاب البروالصلة باب ما جاء فى صلة الرحم: ٤\٣١۶ ( رقم الحديث : ١٩٠٩ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الزكاة ، باب فى صلة الرحم : ٢\١٣٣ ( رقم الحديث : ١۶٩۶ )

٥) عمدة القارى : ٢٢\٩١ ، ارشاد السارى : ١٣\١٨ )

## ۱۲= بَاب مَنْ بُسِطَ لَهُ فِي الرِّزْقِ بِصِلَةِ الرَّحِمِ

[۵۶۳۹] (1) حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْنٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَأَنْ يُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ

[۵۶۴۰] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ [ر: ۱۹٦۱]

په صله رحمئ سره په رزق او په عمر دواړو کښې برکت او اضافه راځي ، رسول الله ﷺ فرمائی چه څوك دا خوښوی چه دده رزق دې فراخه شی او دده عمر دې دراز وی نو ده لره پکار دی چه دې صله رحمی اوکړی -

**قوله: يُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ:** نسأ په معنی د مؤخر کولو ده ، د اثر نه اجل مراد دې ، یعنی دده په اجل کښې تاخیر اوکړې شی ، او عمر کښې ئې اضافه اوشی - (2) او یا د اثر نه نخې د قدم مراد دی ، او د قدمونو د نخو مؤخر کیدل کنایه ده د عمر د اوږدیدو نه چه د قدم نخې دیکښې تر ډیر وخته پورې جاری وی -

**په ایت او حدیث کښې تعارض اوددې جواب:** په قرآن کریم کښې دی ﴿فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ (3) .... او دلته حدیث کښې دی چه دده عمر زیاتیږی ، په ظاهره دواړو کښې تعارض دې -

① ددې یو جواب دا ورکړې شویدې چه په آیت کریمه کښې د تقدیر مبرم ذکر دې او حدیث کښې د تقدیر معلق ذکر دې ، دې وجه نه دواړو کښې هیڅ تعارض نشته دې ، دې جواب ته اشاره کوی او شارحین لیکی :

"أو المراد به بالنسبة إلى ما يظهر للملائكة في اللوح المحفوظ ، أن عمره ستون سنة ، إلا أن يصل رحمه ، فإن وصلها ، زيد له أربعون سنة ، وقد علم الله سبحانه وتعالى بما سيقع من ذلك ، وهو من معنى قوله تعالى (يمحو الله ما يشاء ويثبت) فبالنسبة إلى علم الله ، وما سبق به قدرته ، لا زيادة ، بل هي مستحيلة ، بالنسبة إلى ما ظهر للمخلوقين تتصور الزيادة ، وهو مراد الحديث" (4)

حاصل دا دې چه د الله تعالی د علم او د تقدیر مبرم په اعتبار سره کوم عمر مقرر دې ،

---

1) ۵۶۳۹) هذا الحديث من إفراد الإمام البخاري ، عمدة القاري : ۲۲\۹۱)

2) عمدة القاري: ۲۲\۹۱ ارشاد الساري: ۱۳\۱۹ ، شرح ابن بطال: ۹\۲۰۳ ، فيض الباري: ٤\۳۸٦)

3) سورة الأعراف : ۳٤)

4) ارشاد الساري : ۱۳\۱۹ ، عمدة القاري : ۲۲\۹۱ ، فتح الباري : ۱۰\۵۱۰)

دیکښې خو هیڅ قسم اضافه نه شی کیدې ، د قرآن کریم آیت فإذا جاء أجلهم.... کښې هم دا اجل مراد دې ، خو لوح محفوظ کښې د فرشتو وړاندې یو تقدیر معلق وی ، مثلاً داسې لیکلې شوې وی چه دفلانی سړی عمر خو به شپیته کاله وی خو که ده صله رحمی اوکړه نو څلویښت کاله به ورسره نور هم زیات کړې شی ، اوس الله تعالی ته خو معلومه ده چه دا سړې به صله رحمی کوی او که نه ، چه دې به شپیته کاله ژوندې وی او که سل کاله ، خو فرشتو ته نه وی معلوم ، د دوی وړاندې هم دا خبره وی چه که ده صله رحمی اوکړه نو دده عمر کښې به څلویښت کاله اضافه اوشی نو دا اضافه په تقدیر معلق کښې د مخلوق وړاندې د ظاهریدو په اعتبار سره ده ، د الله تعالی د ازلی علم او تقدیر مبرم په اعتبار سره نه ده - ② دویم جواب دا ورکړې شویدې چه دده عمر کښې د اضافه نه مراد په مُده د عمر کښې اضافه مراد نه ده ، بلکه هم دې عمر کښې د نیکو او د اطاعتونو او د آثار صالحه اضافه مراد ده ..... د ده اولاد به نیك وی چه ده دپاره به دعاګانې کوی - (۱) لکه چه په معجم طبرانی کښې د حضرت ابوالدرداء نه روایت دې چه دې فرمائی :

"ذکر عند رسول الله صلی الله علیه و سلم من وصل رحمه أنسئ له فی أجله ، فقال : لیس زیادة فی عمره ، قال الله تعالی : (فإذا جاء أجلهم .....) ولکن الرجل یکون له الذریة الصالحة یدعون له من بعده" (۲)

او دینه په برکت سره هم تعبیر کیدې شی چه دده عمر چه سره د دې چه دې به مختصر وی داسې برکتمند وی چه د اوږدو عمرونو والا په مقابله کښې به ئې یا خو هم ددوی پشان ډیر زیات ښه کارونه کولو والا به وی په شان د مولانا عبد الحی لکهنوی رحمه الله چه دده تول عمر یو کم څلویښت کاله وو ، او کار ئې ډیر کړې وو یا د مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله په شان چه د ده ټول عمر یو کم پنځوست کاله وو او کارونه ئې لوې لوې کړې وو -

**محمد بن معن** : صحیح بخاری کښې د ده صرف هم دا یو حدیث دې (۳) یحي بن معین ، محمد بن سعد ابوحاتم دوی ته ثقه ویلې دې ، ابن حبان د ده تذکره په کتاب الثقات کښې کړیده ، ابن سعد وایی دې قلیل الحدیث وو یعنی ده نه ډیر کم روایتونه مروی دی - (۴)

سفیان بن عیینه د وفات سره نزدې نزدې دده هم وفات شوې وو ، د دوی عمر څه کم سل کاله وو د نوی نه بره بره وو (۵) د سفیان بن عیینه وفات رجب سن ۱۹۸ھ کښې شوې وو (۶) د صحاح سته مصنفینو کښې امام بخاری ، ابوداود ، ترمذی او ابن ماجه د دوی روایتونه نقل کړیدی - (۷)

---

۱) عمدة القاری : ۲۲\۹۱ ، ارشاد الساری : ۱۳\۱۹ ، فتح الباری : ۱۰\۵۱۰)
۲) ارشاد الساری : ۱۳\۹۱ ، فتح الباری : ۱۰\۵۱۰)
۳) عمدة القاری : ۲۲\۹۱ ، فتح الباری : ۱۰\۵۰۹)
۴) تهذیب الکمال : ۲۶\۴۸۹ ، و طبقات ابن سعد : ۵\۴۳۶ )
۵) تهذیب الکمال : ۲۶\۴۸۹ ، تاریخ البخاری الکبیر : ۱\۱ الترجمة : ۷۱۹ )
۶) تهذیب الکمال : ۲۶\۴۹۰ )
۷) تهذیب الکمال : ۲۶\۴۹۰ )

## ۱۳= بَاب مَنْ وَصَلَ وَصَلَهُ اللَّهُ

[۵۶۴۱\۵۶۴۲] حَدَّثَنِي بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي مُزَرِّدٍ قَالَ سَمِعْتُ عَمِّي سَعِيدَ بْنَ يَسَارٍ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ الْخَلْقَ حَتَّى إِذَا فَرَغَ مِنْ خَلْقِهِ قَالَتْ الرَّحِمُ هَذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنْ الْقَطِيعَةِ قَالَ نَعَمْ أَمَا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ وَأَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلَى يَا رَبِّ قَالَ فَهُوَ لَكِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاقْرَءُوا إِنْ شِئْتُمْ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ

[۵۶۴۲] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الرَّحِمَ شَجْنَةٌ مِنْ الرَّحْمَنِ فَقَالَ اللَّهُ مَنْ وَصَلَكِ وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَكِ قَطَعْتُهُ [ر: ۴۵۵۲]

[۵۶۴۳] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي مُزَرِّدٍ عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّحِمُ شِجْنَةٌ فَمَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَهَا قَطَعْتُهُ

الله جل شانه فرمائی چه څوك تا سره جوړ ساتی خه به هغه سره جوړ لرم او چه څوك تا ماتوی ( پریږدی ) نو خه به هغه مات کړم ( پریږدم ) ... مقصد دا دې چه کوم کس صله رحمی کوی نو الله تعالی به خپل فضل او احسان په ده باندې کوی او چه څوك قطع رحمی کوی نو الله تعالی به ده لره د خپل فضل اواحسان نه محروم اوساتی او دې به مصيبتونو او تکليفونو ته وروراندې کړی .... لکه چه ابن ابی حمزه فرمائی " الوصل من الله كناية عن عظيم إحسانه .... و القطع منه هو كناية عن حرمان الإحسان " (١)

**قوله: إن الرحم شجنة من الرحمن :** رَحِم ( د راء په فتحه او د حاء په کسره سره ) رشتې ته وائی او " ذو رحم " رشته دار ته وائی برابره خبره ده چه وراثت دوی کښې جاری کيږی او که نه جاری کيږی (٢)

شجنة د شين په کسرې او د جيم په سکون سره مشهور دې او د شين په ضمه او په فتحه سره ويل ئې هم جائز دی ، د ګورې اونې ګور ښاخ ته ويلې کيږی (٣)إن الرحم شجنة من الرحمن " معنی دا ده چه " رحم " د رحمن " نه مشتق دې ده سره د ده تعلق دې

(١) فتح البارى : ١٠\٥١٢ ، عمدة القارى : ٢٢\٩٣ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٢ )
(٢) فتح البارى ، كتاب الأدب ، باب فضل صلة الرحم : ١٠\٥٠٧ ، عمدة القارى ، باب فضل صلة الرحم : ٢٢\٩٠ ، ارشاد السارى باب فضل صلة الرحم : ١٣\١٧ )
(٣) عمدة القارى : ٢٢\٩٣ ، فتح البارى : ١٠\٥١٢ ، ارشاد السارى : ١٣\٢١ )

## ۱۴- بَاب تُبَلُّ الرَّحِمُ بِبَلَالِهَا

[۵۶۴۴] (۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ أَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِهَارًا غَيْرَ سِرٍّ يَقُولُ إِنَّ آلَ أَبِي قَالَ عَمْرٌو فِي كِتَابِ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ بَيَاضٌ لَيْسُوا بِأَوْلِيَائِي إِنَّمَا وَلِيِّيَ اللَّهُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ

زَادَ عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ عَنْ بَيَانٍ عَنْ قَيْسٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنْ لَهُمْ رَحِمٌ أَبُلُّهَا بِبَلَاهَا يَعْنِي أَصِلُهَا بِصِلَتِهَا

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ بِبَلَاهَا كَذَا وَقَعَ وَبِبَلَالِهَا أَجْوَدُ وَأَصَحُّ وَبِبَلَاهَا لَا أَعْرِفُ لَهُ وَجْهًا

رشته دارئ لره د رشتې په لوندوالي سره لوندول پکار دی ، د لوندوالی نه صله رحمی مراد ده يعنی د رشته دارئ حقونه اداء کول پکار دی او رشته دارانو سره حسن سلوك او صله رحمی کول پکار دی -

**قوله: سمعت النبی صلی الله علیه وسلم جهاراً غیرسر:** ما د نبی کریم ﷺ نه په قلار نه بلکه په اوچت اواز دا ويل اوريدلې دی او دا د ضمير د متكلم نه هم حال جوړيدې شی يعنی دا حديث څه پټ نه بلکه علانيه ئې بيانوم - (۲) **يقول: "إن آل أبي- قال عمرو: فی کتاب محمد بن جعفر بیاض- لیسوا بأولیائی.....**"

رسول الله ﷺ فرمائلې دی چه آل د ابی ( د عمرو بن عباس بيان دې چه د محمد بن جعفر په کتاب کښې د " آل ابی " نه پس بياض دې يعنی څه ځائې پريخودې شويدې ) څما دوستان نه دی بلکه څما دوستان خو الله او نيك مومنان دی -

د محمد بن جعفر په کتاب کښې د " آل ابی " نه پس مضاف اليه نشته دې ، بلکه بياض دې ، د مستملی په روايت کښې " آل ابی فلان " دې او په يو روايت کښې " آل ابی طالب " دې - (۳)

**قوله: ولکن لهم رحم أبلها ببلالها یعنی أصلها بصلتها:** حاصل چه آل ابی طالب څما دوستان نه دی ، خو دوی سره څما رشته داری ده چه څه به دا د دې په لوند والی سره لوندوم يعنی څه به دوی سره صله رحمی کوم -

**قوله: قال ابو عبد الله: ببلاها، کذا وقع وببلالها اجود واصح، وببلاها لا اعرف له وجها:** بعض نسخو کښې دا عبارت شته او بعضو کښې نشته دې -امام بخاری رحمه الله

---

۱) ۵۶۴۴ ) الحديث أخرجه مسلم فی کتاب الإيمان ، باب موالاة المؤمنين و مقاطعه غيرهم و البراءة منهم : ۱۱۹۷/۱ (رقم الحديث : ۲۱۵)

۲) عمدة القاری : ۹۳/۲۲ ، فتح الباری : ۵۱۲/۱۰ ، ارشاد الساری : ۲۱/۱۳ )

۳) عمدة القاری : ۹۴/۲۲ ، فتح الباری : ۵۱۵/۱۰ ، ارشاد الساری : ۲۳/۱۳ )

فرمائی " ببلاها " هم واقع دي ، خو ببلالها " زيات عمده او صحيح دي او " ببلاها " په باره كښې فرمائي چه څه د دې معنی او وجه نه پيژنم - بلال ( په كسره د باء سره ) لوندوالی ته وائی ، بلا : آزمائش ته وائی ، مولانا انور شاه كشميری رحمه الله فرمائی چه " يبل ببلالها " محاوره ده اوپه اردو كښې سينچنا يعنی " تازه كول " راځی - (۱)

داروايت امام مسلم په خپل صحيح كښې په كتاب الايمان كښې ذكر كړيدي - (۲)

## ١٥=بَاب لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ

[۵۶۳۶] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ وَالْحَسَنِ بْنِ عَمْرٍو وَفِطْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سُفْيَانُ لَمْ يَرْفَعْهُ الْأَعْمَشُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَفَعَهُ حَسَنٌ وَفِطْرٌ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ وَلَكِنْ الْوَاصِلُ الَّذِي إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا [ر:۱۳۶۹]

بدله وركوونكې صله رحمی كوونكې نه دې . صله رحمی كوونكې هغه كس دې چه كله ده سره رشته داری بنده كړی شی نو دې دا جوړه كړی ، مقصد دا دې چه رشته دارانو كښې درسره چا حسن سلوك اوكړو او د دې په بدله كښې هم حسن سلوك اوشی نو دا د ښو په بدله كښې ښه دی ، او دا په خپل ځائې په كار دی - ﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ خو صله رحمی دا ده چه سړې د رشته دارانو سره په هغه حالت كښې هم ښه سلوك اوكړی او د دوی د حقونو اداء كولو دې فكر اوكړی چه كله د دوی د طرفه قطع تعلق او قطع رحمی بيا راشی روايت د باب كښې د سفيان ثوری دري شيخان دی ، سليمان اعمش ، حسن بن عمرو ، فطر بن خليفه ، فطر ( د فاء په زير او د طاء په سكون سره ) د پلار نوم خليفه دې ، سفيان ثوری رحمه الله فرمائی ، اعمش دا حديث مرفوع نه دې بيان كړې ، خو حسن بن عمرو او فطر بن خليفه دا مرفوع بيان كړيدې -

## ١٦=بَاب مَنْ وَصَلَ رَحِمَهُ فِي الشِّرْكِ ثُمَّ أَسْلَمَ

[۵۶۳۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَأَيْتَ أُمُورًا كُنْتُ أَتَحَنَّثُ بِهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ مِنْ صِلَةٍ وَعَتَاقَةٍ وَصَدَقَةٍ هَلْ لِي فِيهَا مِنْ أَجْرٍ قَالَ حَكِيمٌ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْلَمْتَ عَلَى مَا سَلَفَ مِنْ خَيْرٍ وَيُقَالُ أَيْضًا عَنْ أَبِي الْيَمَانِ أَتَحَنَّثُ وَقَالَ مَعْمَرٌ وَصَالِحٌ

---

(۱) فيض الباری : ۴\۳۸۶)

(۲) صحيح مسلم ، كتاب الإيمان ، باب موالاة المؤمنين و مقاطعة غيرهم و البراء منهم : ۱\۱۹۷ ( رقم الحديث : ۲۱۵ )

(۳) الحديث أخرجه أبوداود فی كتاب الزكاة ، باب فی صلة الرحم : ۲\۱۳۳ ( رقم الحديث : ۱۶۹۷) وأخرجه الترمذی فی كتاب البروالصلة،باب ما جاء فی صلة الرحم: ۴\۳۱۶ ( رقم الحديث : ۱۹۰۸)

وَابْنُ الْمُسَافِرِ أَتَحَنَّثُ وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ التَّحَنُّثُ التَّبَرُّرُ وَتَابَعَهُمْ هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ [ر:١٣٦٩]

چه چا د كفر او د شرك په حالت كښې صله رحمي اوكړه او بيا ئې اسلام روارو نو د زمانې د كفر د صله رحمئ به ده ته ثواب ملاويږي او كه نه ؟ ديكښې اختلاف دې ، د دې تفصيلى بحث په كتاب الايمان كښې د حضرت ابوسعيد خدرى دحديث " إذا أسلم العبد فحسن اسلامه " تر لاندې تير شويدې - (١) حديث د باب نه معلوميږى چه ده ته به اجر ملاويږى روايت دباب كښې دى"حكيم بن حزام عرض اوكړو، اے د الله رسوله ، د هغې امورو متعلق ما ته بيان اوكړئ چه كوم به ما په زمانه د جاهليت كښې كول يعنى صله رحمى كول ، غلامان ازادول او صدقه وغيره وركول شو ، آيا ددې به ما ته اجر ملاويږى ؟ رسول الله ﷺ اوفرمائل : ته خو هم ددې نيكو د وجه نه مسلمان شوې وې چه په تير شوى وخت كښې تا كړيدى اويا د"اسلمت على ما سلف من خير" معنى داده چه ددې نيكوبه تا ته اجر ملاويږى.

**قوله: ويقال ايضا عن ابى اليمان : أتحنت":** بره د ابو اليمان حكم بن نافع چه كوم روايت امام بخارى رحمه الله ذكر كړيدې ، ديكښې " اتحنث " په ثاء سره راغلې دې ، امام بخارى رحمه الله چه ده نه " اتحنت " په تاء سره هم منقول دې ، " يقال " د مجهول صيغه ئې راوړه نو د دې ضعف ته ئې اشاره اوكړه -

**قوله: وقال معمر، وصالح، وابن المسافر: اتحنث:** معمر بن راشد ، صالح بن كيسان او عبد الرحمن بن خالد بن مسافر هم " اتحنث " ثاء سره نقل كړيدې .... د معمر روايت امام بخارى رحمه الله په كتاب الزكات كښې " باب من تصدق فى الشرك ثم اسلم " تر لاندې ، د صالح روايت امام مسلم او د ابن المسافر روايت طبرانى موصولاً نقل كړيدې - (٢)

**قوله: وقال ابن اسحاق : التحنث : التبرر:** محمد ابن اسحاق فرمائى چه د تحنث معنى نيكى سر ته رسول او تقرب الى الله حاصلول دى ، علامه ابن اثير په النهايه كښې ددې معنى ليكى "....كنت أتحنث بها فى الجاهلية "أى أتقرب بها إلى الله" (٣)

تر څو چه د " اتحنث " تعلق دې نو ابن التين فرمائى چه د دې معنى ما ته نه ده معلومه ، اسماعيلى دا تصحيف ګرځولې دې ، (٤) حافظ ابن حجر فرمائى : " وبالمثلثة أصح رواية و معنى" (٥) يعنى أتحنث ( ثاء سره ) د روايت او دمعنى په دواړو اعتبارو سره زيات صحيح دې

**قوله: وتابعه هشام عن أبيه :** يعنى محمد بن اسحاق د تحنث چه كوم تفسير بيان كړيدې ديكښې د دوى متابعت هشام بن عروه د خپل پلار حضرت عروه نه كړيدې ، دا

---

١) كشف البارى و كتاب الايمان ، باب حسن اسلام المرء : ٢\٤٠٣ )
٢) عمدة القارى : ٢٢\٩٦ ، فتح البارى : ١٠\٥٢٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٥ )
٣) النهاية لابن الاثير : ١\٤٤٩ )
٤) فتح البارى : ١٠\٥٢٠ ، عمدة القارى : ٢٢\٩٦ )
٥) فتح البارى ، كتاب الزكات ، باب من تصدق فى الشرك ثم آسلم : ٣\٣٠٢ )

متابعت امام بخاری رحمه الله په " کتاب العتق " کښې موصولاً نقل کړېدې - ([1])
بعض نسخو کښې " تابعهم " د ضمير د جمع سره دې ، دې صورت کښې به مطلب وی چه د معمر ، صالح او د ابواليمان وغيره متابعت هشام کړيدې -

## ۱۷= بَاب مَنْ تَرَكَ صَبِيَّةَ غَيْرِهِ حَتَّى تَلْعَبَ بِهِ أَوْ قَبَّلَهَا أَوْ مَازَحَهَا

[۵۶۴۷] حَدَّثَنَا حِبَّانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ قَالَتْ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَبِي وَعَلَيَّ قَمِيصٌ أَصْفَرُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَنَهْ سَنَهْ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ وَهِيَ بِالْحَبَشِيَّةِ حَسَنَةٌ قَالَتْ فَذَهَبْتُ أَلْعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ فَزَبَرَنِي أَبِي قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهَا ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْلِي وَأَخْلِقِي ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَبَقِيَتْ حَتَّى ذَكَرَ يَعْنِي مِنْ بَقَائِهَا [ر: ۲۹۰۶]

د بل ماشومه لوبول ، دا خکلول دې سره ټوقې ټقالې کول جائز دی او د رسول الله ﷺ نه ثابت دی ، حديث د باب کتاب اللباس کښې تير شويدې ([2]) او ددې مناسبت د باب سره ښه واضح دې -

**قوله: فبقيت حتى ذكر يعني من بقائها:** يعنی حضرت ام خالد دېنه پس ژوندئ پاتې شوه ، تر دې چه راوی ډير اوږد وخت ذکر کړو .... بقيت که د مؤنث صيغه وی نوضميربه حضرت ام خالد ته راجع وی او مطلب به دا وی چه رسول الله ﷺ " ابلی و أخلقی " په الفاظو سره دوی دپاره د اوږد عمر دعا اوکړه ، د دې دعا اثر دا شو چه دې ډير عمر بيا موندلو - حتى ذكر يعنى ذكر الراوى زمنًا طويلاً ([3])

خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه اکثر نسخو کښې د " فبقى " مذکر صيغه راغلې ده ، " أى فبقى ذلك الثوب المذكور " يعنی دا جامه ډير مودې پورې پاتې شوه ([4]) دې صورت کښې به په من بقائها کښې ضمير " الخميصة " ته راجع وی -

علامه کرمانی رحمه الله د " حتى ذكر " ترجمه کړېده " المعنى: صار القميص مذكورا عند الناس بخروج بقائه عن العادة " ([5]) د دې معنی په صورت کښې به " ذُكِر " صيغه د مجهول شی ، او د ذال به ضمه وی ، يعنی ددې قميص د خلقو مينځ کښې ډيره چرچه وه -

---

[1]) صحيح البخاری ، كتاب العتق ، باب عتق المشرک ( رقم الحديث : ۲۵۳۸
[2]) صحيح البخاری ، كتاب اللباس ، باب الخميصة السوداء ( رقم الحديث : ۵۸۲۳ )
[3]) ارشاد السارى : ۱۳\۲۶ وفتح البارى : ۱۰\۵۲۱ ، و فى فيض البارى : بقيت تلک الإبنة حيا ، و بقى ذلک الثوب أيضا : ۴\۳۸۴ )
[4]). فتح البارى : ۱۰\۵۲۱ )
[5]) شرح الكرمانى : ۲۱\۱۶۲ ، عمدة القارى : ۲۲\۹۷ ، فتح البارى : ۱۰\۵۲۱ )

## ١٨= بَاب رَحْمَةِ الْوَلَدِ وَتَقْبِيلِهِ وَمُعَانَقَتِهِ

وَقَالَ ثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ أَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِبْرَاهِيمَ فَقَبَّلَهُ وَشَمَّهُ

د بچو سره شفقت کول ، د دوی خکلول او دوی راترغاړه ویستل د رسول الله ﷺ نه ثابت دی . امام بخاری رحمه الله د ثابت ابن اسلم البنانی روایت ذکر کړیدې چه امام بخاری په " باب مناقب الحسن و الحسین " کښې موصولاً نقل کړیدې چه رسول الله ﷺ خپل خوی ابراهیم خکل کړو او دې ئې بوئی کړو - (١)

[٥٦٣٨] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي يَعْقُوبَ عَنْ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ قَالَ كُنْتُ شَاهِدًا لِابْنِ عُمَرَ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ عَنْ دَمِ الْبَعُوضِ فَقَالَ مِمَّنْ أَنْتَ فَقَالَ مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ قَالَ انْظُرُوا إِلَى هَذَا يَسْأَلُنِي عَنْ دَمِ الْبَعُوضِ وَقَدْ قَتَلُوا ابْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ هُمَا رَيْحَانَتَايَ مِنْ الدُّنْيَا [ر: ٣٥٤٣]

ابن ابی نعیم بیان کړیدې چه څه د ابن عمر سرهووم چه دوی نه یو سړی د ماشی د وژلو ( د دم ) متعلق تپوس اوکړو ( یعنی په حالت د احرام کښې د ماشی وژل څنګه دې ؟ ) نو دوی اوویل : ته د کوم ځائې اوسیدونکې ئې ؟ نو ده اوویل : د عراق اوسیدونکې یم . ابن عمر اوفرمائل : دې سړي ته اوګورئ دې د ماشي د وژلو ( د دم ) تپوس کوی حال دا دې چه دې خلقو د حضور ﷺ خوی ( حضرت حسین رضي الله عنه ) قتل کړیدې . حال دا دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی چه دا دواړه په دنیا کښې ځما دوه ګلونه دی -

د ابن ابی نعیم نوم عبدالرحمن دې . رسول الله ﷺ د حضرت حسن او د حضرت حسین په باره کښې فرمائی چه " **هما ریحانتای من الدنیا** " -

ابن تین فرمائی چه " ریحان " معنی دلته رزق دې (٢) " **أی هما من رزق الله الذی رزقنیه** " یعنی دا دواړه ما ته د الله تعالی د طرفه راکړې شوې " رزق او هدیه " ده ، علامه زمخشری په " الفائق " کښې هم دا معنی لیکلې ده - (٣)

دویمه معنی ئې دګل ده ، ریحانه دیو مشهور او خوشبوداره ګل نوم دې ، او مطلب ئې دا دې چه دا دواړه په دنیا کښې مادپاره ګلونه دی . چه څنګه ګلونه بویولې کیږی ، رسول الله ﷺ به هم دوی دواړه بویول - (٤)

[٥٦٣٩] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَتْهُ قَالَتْ جَاءَتْنِي امْرَأَةٌ

---

١) صحیح البخاری . کتاب فضائل اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم . باب مناقب الحسن و الحسین (رقم الحدیث : ٣٥٤٣)

٢) عمدة القاری : ٢٢\٩٨ . فتح الباری : ١٠\٥٢٤ . ارشاد الساری : ١٣\٢٨ )

٣) عمدة القاری : ٢٢\٩٨ . فتح الباری : ١٠\٥٢٤ )

٤) عمدة القاری : ٢٢\٩٨ . فتح الباری : ١٠\٥٢٤ . ارشاد الساری : ١٣\٢٨ )

مَعَهَا ابْنَتَانِ تَسْأَلُنِي فَلَمْ تَجِدْ عِنْدِي غَيْرَ تَمْرَةٍ وَاحِدَةٍ فَأَعْطَيْتُهَا فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ مَنْ يَلِي مِنْ هَذِهِ الْبَنَاتِ شَيْئًا فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِنَ النَّارِ [ر: ١٣٥٢]

حضرت عائشه فرمائی چه یو ښځه د دوه لونړو سره ما کره څه غوښتو دپاره راغله ، نو دې دپاره ما سره د یو کجور نه ماسوا نور څه ملاو نه شو ، نو ما دې ته دا ورکړه ، دې دا یو کجوره د خپلو دواړو لونړو په مینځ کښې تقسیم کړه ، بیا پاڅیده او روانه شوه ، رسول الله ﷺ چه راغلو نو ما دوی ته د دې ښځې قصه بیانه کړه نو وې فرمائل :" چه کوم کس په دې جینکو کښې د څه څیز والی جوړ شو پس ده د دوی سره ښه سلوك اوکړو نو دا جینکۍ به ده لره د جهنم پرده شی " -

**قوله: من یلی من هذه البنات شیئًا :** اکثر نسخو کښې " یلي " دې چه د ولایت نه دې ، بره ترجمه ددې مطابق شویده . د ترمذی وغیره روایت کښې " من یبتلي " دې [1]
امام نووی رحمه الله فرمائی چه خلقو به چه په دغه زمانه کښې جینکۍ یو آزمائش او مصیبت گنړلو ، دې وجه نه د ابتلاء لفظ د خلقو ددې عادت په وجه استعمال کړې شو - [2]
علامه قسطلانی رحمه الله ددې حدیث په باره کښې فرمائی :

وفیه تاکید حقوق البنات لما فیهن من الضعف غالبا عن القیام بمصالح انفسهن بخلاف الذکور " [3]
یعنی دې حدیث نه د جینکو د حقونو تاکید معلومیږی ځکه چه دوی طبعًا او فطرتًا کمزورې او ضعیفانې وی ، خپل ذاتی ضروریات په ښه شان نه شی پوره کولې -

**د حدیث نه مستنبط اداب :** علامه ابن بطال لیکی : " **وفیه جواز سؤال المحتاج ، و سخاء عائشة لکونها لم تکن إلا تمرة فاثرت بها ، و أن القلیل لا یمتنع التصدق به لحقارته ، بل ینبغي للمتصدق أن یتصدق بما تیسر له وإن قل ، وفیه جواز ذکر المعروف إن لم یکن علی وجه الفخر ولا المنة** [4]
یعنی دې حدیث نه یو خو دا خبره معلومیږی چه کُه سړې محتاج او ضرورتمند وی نو ده دپاره سوال کول جائز دی - د حضرت عائشه رضي الله عنها سخاوت هم دینه معلومیږی چه صرف یو کهجوره وه ورسره هغه ئې هم ورکړه ، دریمه ترینه دا خبره معلومیږی چه لږ او معمولی څیز هم صدقه کولې شې ، دا معمولی گنړل او صدقه نه کول صحیح نه دی ، بلکه د وس او د توفیق مطابق چه څه هم وی صدقه کول پکار دی -
څلورمه خبره ترینه دا معلومه شوه چه د خپلې یو نیکۍ ذکر اوشی نو دا جائز دی خو په دې شرط چه دا د فخر او د احسان زباتلو (وریادولو) په نیت نه وی -

---

[1] جامع الترمذی ، کتاب البر والصلة ، باب ما جاء فی النفقة علی البنات و الأخوات : ٤ \ ٣١٩ ( رقم الحدیث : ١٩١٣ )
[2] صحیح مسلم ، کتاب البر و الصلة ، باب فضل الإحسان إلی البنات : ٢ \ ٣٣٠ )
[3] ارشاد الساری : ١٣ \ ٢٩ )
[4] فتح الباری : ١٠ \ ٥٢٩ )

دلته د بخاری په روایت کښې د یو کهجورې او د صحیح مسلم په روایت کښې د درې کجورو ذکر دې ، دواړو کښې تطبیق داسې کیدې شی چه ابتداء یو کجوره حضرت عائشه ته ملاوه شوه او روستو ورته دوه نورې هم ملاو شوې - (۱)

[۵۶۵۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ سُلَيْمٍ حَدَّثَنَا أَبُو قَتَادَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمَامَةُ بِنْتُ أَبِي الْعَاصِ عَلَى عَاتِقِهِ فَصَلَّى فَإِذَا رَكَعَ وَضَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَفَعَهَا [ر: ۴۹۴]

[۵۶۵۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَبَّلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ وَعِنْدَهُ الْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ التَّمِيمِيُّ جَالِسًا فَقَالَ الْأَقْرَعُ إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ مَا قَبَّلْتُ مِنْهُمْ أَحَدًا فَنَظَرَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ حضرت حسن لره خکل کړو ، او دوی ﷺ سره اقرع بن حابس ناست وو ، اقرع چه دا اولیدل نو وې ویل خما لس بچی دی ما دوی کښې یو هم کله هم نه دې خکل کړې ، رسول الله ﷺ ده ته اوکتل ، او بیا ئې اوفرمائل چه کوم سړې په نورو شفقت او رحم نه کوی نوپه ده به هم رحم نه کیږی -

**قوله: مَن لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ:** دیکښې دوه صورتونه دی :

① من موصوله دې ، دا دواړه صیغې په حالت رفعی کښې دی او دا کلام از قبیل خبر دې ، ترجمه ئې ده چه کوم سړې رحم نه کوی په ده هم رحم نه کیږی -

② من شرطیه جازمه دې ، " لا يَرْحَم او " لا يُرْحَم " دواړه مجزوم دی ، ړومبې شرط او دویم جزاء ده ، ترجمه دا ده چه کوم سړې رحم نه کوی نو په هغه به هم رحم نه کیږی - (۲)

علامه سهیلی فرمائی چه ړومبې صورت د سیاق د کلام سره زیات موافق دې (۳)

[۵۶۵۲] (۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ تُقَبِّلُونَ الصِّبْيَانَ فَمَا نُقَبِّلُهُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَ أَمْلِكُ لَكَ أَنْ نَزَعَ اللَّهُ مِنْ قَلْبِكَ الرَّحْمَةَ

حضرت عائشه فرمائی چه یو بانډیچی رسول الله ﷺ ته راغلو ، او وې ویل تاسو خلق بچو لره خکلوئ خو مونږ ئې نه خکلوو ، دا بانډیچی یا خو اقرع بن حابس وو ، چه د هغه ذکر په تیر شوی حدیث کښې راغلې دې ، یا قیس بن عاصم تمیمی وو او یا عیینه بن حصن وو ،

(۱) عمدة القاری : ۲۲\۹۹ ، فتح الباری : ۱۰\۵۲۴ ، ارشاد الساری : ۱۳\۲۸ )
(۲) عمدة القاری : ۲۲\۱۰۰ فتح الباری : ۱۰\۵۲۶ ، ارشاد الساری: ۱۳\۳۰ ، شرح الکرمانی : ۲۱\۱۶۴)
(۳) عمدة القاری : ۲۲\۱۰۰ ، فتح الباری : ۱۰\۵۲۶ ، ارشاد الساری : ۱۳\۳۰ )
(۴) ۵۶۵۲ ) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب الفضائل ، باب رحمته صلی الله علیه وسلم الصبیان و العیال ، ۴\۱۸۰۸ ( رقم الحدیث : ۲۳۱۷ )

په روايتونو کښې په دارنګه واقعه کښې د دې دواړو ذکر هم راغلې دې -

**قوله**: أو أملك لك أن نزع الله من قلبك الرحمة: يعنى الله تعالى که د ستا زړه نه شفقت او نرمى ويستلې ده نو څه څه کولې شم -

أَوَأملك کښې همزه د استفهام انکارى دپاره ده "أى لا أملك، أى لا أقدر أن أجعل الرحمة فى قلبك بعد أن نزعها الله منه..." (١) أن نزع..... ترکيب کښې د " أملك " دپاره مفعول به دې -

[٥٦٥٣] حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْيٌ فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ السَّبْيِ قَدْ تَحْلُبُ ثَدْيَهَا تَسْقِي إِذَا وَجَدَتْ صَبِيًّا فِي السَّبْيِ أَخَذَتْهُ فَأَلْصَقَتْهُ بِبَطْنِهَا وَأَرْضَعَتْهُ فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتُرَوْنَ هَذِهِ طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ قُلْنَا لَا وَهِيَ تَقْدِرُ عَلَى أَنْ لَا تَطْرَحَهُ فَقَالَ لَلَّهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ هَذِهِ بِوَلَدِهَا (٢)

**په بندګانو باندې د الله تعالى مهربانى څومره ده؟**: حضرت فاروق اعظم فرمائى چه نبى کريم ﷺ ته يو څو قيديان راوستې شو ، دې قيديانو کښې يوه ښځه وه .... دا د تى نه پئې رااوباسى د څکلو دپاره ، نو چه کله دا کوم ماشوم په قيد کښې وينى نو دا ده لره رانيسى او خپلې ګيډې سره ئې لګوى او ده ته پئې ورکوى ، نو نبى کريم ﷺ مونږ ته اوفرمائل : آيا تاسو دا سوچ کولې شئ چه دا ښځه دا خپل بچې اور کښې اچولې شى " مونږ اوويل : نه چه لګه دا په نه غورزولو قادره وى ، نو دوى ﷺ اوفرمائل : چه الله په خپلو بندګانو د دينه هم زيات مهربان دې چه څومره دا ښځه په خپل بچى مهربان ده

**قوله**: قد تحلب ثديها تسقى: ① تَحلّبُ د باب د تفعل نه د واحد مذکر غائب فعل ماضى معلوم صيغه ده " ثَدْىَ " ددې فاعل دې يعنى د دې تې پئې ورکوى ، د پيو نه ډك وو

② تَحْلُبُ د باب د نصر نه دې " ثدي " ددې مفعول به دې يعنى دې ښځې د تينو نه پئې راويستل " تسقى " ددينه حال واقع کيږى (٣) په بعض روايتونو کښې " تسعى " دې ، يعنى دې د اضطراب په حالت کښې اخوا ديخوا منډې وهلې (٤) او د مسلم شريف په روايت کښې " تبتغى " دې يعنى دې يو بچې تلاش کولو - (٥)

حاصل دا چه ددې ښځې بچې په قيديانو کښې روك شوې وو او ددې تينه د پيو نه ډك

---

(١) عمدة القارى: ٢٢\١٠٠ فتح البارى: ١٠\٥٢٧ ، ارشاد السارى: ١٣\٣١ ، شرح الکرمانى : ٢١\١٦٤)

(٢) ٥٦٥٣ ) الحديث أخرجه مسلم فى کتاب التوبة . باب فى سعة رحمة الله تعالى و أنها سبقت غضبه : ٤\٢١٠٩ ( رقم الحديث : ٢٧٥٤ )

(٣) عمدة القارى : ٢٢\١٠٠ . ارشاد السارى : ١٣\٣١ )

(٤) فتح البارى : ١٠\٥٢٨ )

(٥) أخرجه مسلم فى کتاب التوبة . باب فى سعة رحمة الله و أنها سبقت غضبه : ٤\٢١٠٩ (رقم الحديث ٢٧٥٤ '

شوې وو ، دې وجه نه دې د پریشانی او د اضطراب په حالت د يو بچی په تلاش کښې اخوا ديخوا گرځيدله ، چه دې ته څوك بچې ملاو شی او دا ده ته پښې ورکړی ..... ديکښې ديته خپل بچې ملاو شو نو دې دا د خپلې سينې سره اولگولو ... (١) رسول الله ﷺ په دې موقعه اوفرمائل الله جل شانه دينه هم زيات په خپلو بندگانو مهربانه دې -

" عباد " نه مؤمنان مراد دی ، ابو محمد بن ابی حمزه فرمائی چه " لفظ العباد عام و معناه خاص بالمؤمنين " (٢)

**د حديث نه مستنبط آداب:** حافظ ابن حجر رحمه الله د دې حديث آداب او مسائل ذکر کوی او ليکی : وفيه اشارة إلى أنه ينبغي للمرء أن يجعل تعلقه فی جميع الأمور بالله وحده ، و أن كل من فرض أن فيه رحمة ما حتى يقصد لأجلها ، فالله سبحانه و تعالى أرحم منه ، و فيه جواز نظر النساء المسبيات ، و فيه ضرب المثل بما يدرك بالحواس لما لا يدرك بها لتحصيل معرفة الشيء على وجهه ، وإن كان الذی ضرب به المثل لا يحاط بحقيقته ، لأن رحمة الله لا تدرك بالعقل ، و مع ذلك ، فقربها النبی صلى الله عليه و سلم للسامعين بحال المرأة المذكورة ...." (٣) يعنى دې حديث نه څو خبرې معلومې شوې :

① سړی لره پکار دی چه په تمامو امورو کښې خپل تعلق د الله تعالى سره جوړ اوساتی ، الله تعالى چه کوم احکام فرض کړيدی ، ديکښې هر يو باعث د رحمت دی ، او هم د يو رحمت د وجه نه ددې حکم ورکړې شويدې -

② د جنگی قيديانو ښځو ته کتل جائز دی -

③ چه د کوم څيز ادراك په حواسو سره نه کيږی ، د دې د پوهولو دپاره او د خلقو ذهن ته د نزدې راوستو دپاره د محسوس څيزونو مثال ورکولې شی ، د الله تعالى د رحمت مکمل ادراك په عقل او حواسو سره نه شی کيدې خو حضور اکرم ﷺ د ښځې محسوس حالت باندې خلق د الله تعالى په رحمت پوهولو دپاره سعی اوکړه -

## ١٩= بَاب جَعَلَ اللَّهُ الرَّحْمَةَ مِائَةَ جُزْءٍ

[٥٦٥٤] (٤) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ الْبَهْرَانِيُّ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ جَعَلَ اللَّهُ الرَّحْمَةَ مِائَةَ جُزْءٍ فَأَمْسَكَ عِنْدَهُ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ جُزْءًا وَأَنْزَلَ فِي الْأَرْضِ جُزْءًا وَاحِدًا فَمِنْ ذَلِكَ الْجُزْءِ

---

١) عمدة القارى : ٢٢\١٠١ ، فتح البارى : ١٠\٥٢٨ ، ارشاد السارى : ١٣\٣١ )

٢) عمدة القارى : ٢٢\١٠١ ، فتح البارى : ١٠\٥٢٩ )

٣) فتح البارى : ١٠\٥٢٩ )

٤) ٥٦٥٤ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فی كتاب الرقاق ، باب الرجاء مع الخوف ( رقم الحديث : ٦١٠٤ ) و أخرجه مسلم فی كتاب التوبة ، باب فی سعة رحمة الله تعالى و أنها سبقت غضبه : ٤\٢١٠٨ (رقم الحديث : ٢٧٥٢ )

يَتَرَاحَمُ الْخَلْقُ حَتَّى تَرْفَعَ الْفَرَسُ حَافِرَهَا عَنْ وَلَدِهَا خَشْيَةَ أَنْ تُصِيبَهُ [ر: ٦١٠٤]

حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائلي دی چه الله تعالى د رحمت سل حصې كړيدى ، ديكښې ئې يو كم سل حصې د ځان سره ساتلې دی او يو حصه ئې په زمكه راكوزه كړه او هم د دې يوې حصې نه مخلوق په يو بل رحم كوى تر دې چه اسپه چه خپله نوكه اوچتوى د خپل بچى نه د دې يرې نه چه هسې نه ده پورې اونه لګى ( دا هم ددې يو حصې په سبب سره دې )

**قوله**: فمن ذلك الجزء يتراحم الخلق : الله جل شانه دنيا ته د رحمت صرف يوه حصه رالیږلې ده او يو كم سل ئې د ځان سره ساتلې دى ، آخرت كښې به دا يو حصه هم دې سره ملاو شى نو د سلو عدد به پوره شى او په دنيا كښې د خلقو مينځ كښې چه دا كومه مهربانى او رحمت دې نو دا د دغه يو حصې په سبب دې ، نو آخرت كښې به د سلو حصو په سبب وى ، نو يو بل به هم ددې وجه په آخرت كښې معاف كوى -

او دا مطلب هم كيدې شى چه الله جل شانه د رحمت دا حصې اختيار كړې د دې وجه نه د خلقو به مغفرت او بخشش كوى ..... يو خو د الله تعالى هغه رحمت دې چه كوم د الله تعالى په صفات ذاتيه كښې دې ، نو دا رحمت به دينه علاوه وى - (١)

علامه قرطبى رحمه الله ددې يو بل مطلب بيان كړيدې چه د الله تعالى د نعمتونو سل انواع دى ، ديكښې يو نوع په دنيا كښې ده او باقى انواع الله تعالى د آخرت دپاره د خپل ځان سره ساتلې دې .... په آخرت كښې به د دنيا والا نوع هم ورسره ملاو شى نو سل واړه انواع به مكمل مؤمنانو ته ملاوشى - (٢)

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه د سلو شماره د خلقو د پوهې دپاره په طور د تمثيل ذكر شويده ، چه د الله تعالى سره نعمتونه ډير زيات دى او د مخلوق سره كم دى - (٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله د سلو د شمير تخصيص ذكر كوى او فرمائى چه جنت كښې به سل درجې وى ، د سلو رحمتونو ذكر د دغه درجاتو په مناسبت سره دې ، د هر يوې درجې دپاره به يو رحمت وى ځكه چه جنت محل د رحمت دې او ديكښې هم د الله تعالى په رحمت سره داخله ممكن كيدې شى ، دې وجه نه چه كوم كس ته د رحمت يو حصه هم ملاو شى هغه به ادنى جنتى وى ، چه چا ته ټول رحمتونه ملاو شى هغه به اعلى جنتى وى ، لكه چه ليكى : "فيحتمل أن تكون مناسبة هذا العدد الخاص لكونه مثل عدد درج الجنة ، و الجنة هى محل الرحمة ، فكان كل رحمة بإزاء درجة ، وقد ثبت أنه لا يدخل أحد الجنة إلا برحمة الله تعالى ، فمن نالته منها رحمة واحدة كان أدنى أهل الجنة منزلة ، و أعلاهم منزلة من حصلت له جميع الأنواع من الرحمة" (٤)

---

١) فتح البارى : ١٠\٥٣٠)

٢) عمدة القارى : ٢٢\١٠١ ، فتح البارى : ١٠\٥٣١)

٣) شرح الكرمانى : ٢١\١٦٥)

٤) فتح البارى : ١٠\٥٣١)

## ٢٠=بَاب قَتْلِ الْوَلَدِ خَشْيَةَ أَنْ يَأْكُلَ مَعَهُ

[٥٦٥٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ شُرَحْبِيلَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيُّ الذَّنْبِ أَعْظَمُ قَالَ أَنْ تَجْعَلَ لِلَّهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ قُلْتُ ثُمَّ أَيُّ قَالَ أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ أَنْ يَأْكُلَ مَعَكَ قَالَ ثُمَّ أَيُّ قَالَ أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ وَأَنْزَلَ اللَّهُ تَصْدِيقَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ الْآيَةَ [ر: ٤٢٠٧]

اولاد ددې يرې نه قتل كول چه دوى به ده سره خوراك كوى حرام او گناه كبيره ده ، حديث د باب په كتاب التفسير د سورة فرقان د تفسير لاندې تير شويدې - (١)

## ٢١=بَاب وَضْعِ الصَّبِيِّ فِي الْحِجْرِ

[٥٦٥٦] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَضَعَ صَبِيًّا فِي حَجْرِهِ يُحَنِّكُهُ فَبَالَ عَلَيْهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَأَتْبَعَهُ [ر: ٢٢٠]

حجرد حاء په فتح او په كسره سره غيږې ته وائى او بچى په غيږه كښې اوچتول په سنت سره ثابت دې ، لكه چه حديث د باب كښې دى ، تحنيك كهجوره چه اوچيچلې شى او په تالو كښې كيخودې شى ديته وائى ،روايت دباب "كتاب الطهارة، باب بول الصبيان "كښې تيرشويدې

## ٢٢=بَاب وَضْعِ الصَّبِيِّ عَلَى الْفَخِذِ

[٥٦٥٧] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَارِمٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا تَمِيمَةَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ يُحَدِّثُهُ أَبُو عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُنِي فَيُقْعِدُنِي عَلَى فَخِذِهِ وَيُقْعِدُ الْحَسَنَ عَلَى فَخِذِهِ الْأُخْرَى ثُمَّ يَضُمُّهُمَا ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُمَّ ارْحَمْهُمَا فَإِنِّي أَرْحَمُهُمَا وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ التَّيْمِيُّ فَوَقَعَ فِي قَلْبِي مِنْهُ شَيْءٌ قُلْتُ حَدَّثْتُ بِهِ كَذَا وَكَذَا فَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْ أَبِي عُثْمَانَ فَنَظَرْتُ فَوَجَدْتُهُ عِنْدِي مَكْتُوبًا فِيمَا سَمِعْتُ [ر: ٣٥٢٨]

بچى په پتون كښينول په سنت سره ثابت دې ، روايت د باب معتمر د خپل پلار سليمان بن طرفان نه نقل كوى ، د ده شيخ ابوتميمه دې ، د ابو تميمه نوم طريف بن مجالد دې ( طريف په وزن د فعيل دې ) د ده شيخ ابوعثمان دې چه د هغه نوم عبد الرحمن دې - (٢)

---

١) صحيح البخارى ،كتاب التفسير ، باب قول الله تعالى ، و الذين لا يدعون مع الله إلهًا آخر ... الفرقان : ٦٨ ( رقم الحديث : ٤٧٦١ )

٢) فتح البارى : ١٠\٥٣٢ ، عمدة القارى : ٢٢\١٠٣ )

حضرت اسامه بن زيد فرمائى چه رسول الله ﷺ څه په يو پتون او حضرت حسن په بل پتون كښينولي وو . بيا ئې دواړه پيوسته كړو او دعا ئې اوكړه " اللهم ارحمهما ، فإنى أرحمهما " د رسول الله ﷺ دوفات په وخت د حضرت اسامه عمر د يو روايت مطابق شل كاله او د بل روايت مطابق نورلس كاله وو - (١)

او د حضرت حسن عمر دغه وخت زيات نه زيات اته كاله وو ، د دواړو عمرونو كښې ډير فرق دې ، دا واقعه شايد د هغه وخت ده چه كله حضرت حسن د يو يا د دوه كالو وو او حضرت اسامه به قريب البلوغ وو ، دارنګه لوئ بچى هم په غيږه كښې اخستې كيږى او په پتون باندې كښينولې كيږى ، خاص كر چه كله دوى بيمار شى او دې وجه نه د دواړو په عمرونو كښې د فرق سره بيا هم د دوى په پتونونو كښينول څه بعيد خبره نه ده ن- (٢)

**قوله: وعن على ، قال حدثنا يحى ، حدثنا سليمان ......:** " على " نه على بن عبد الله مدينى مراد دې په " عن على " كښې دوه احتماله دى

① يو دا چه چه ددې عطف په سابقه سند " حدثنا عبد الله بن محمد " باندې دې ، او عبد الله بن محمد د امام بخارى شيخ دې ، دې صورت كښې مطلب دا دې چه امام بخارى رحمه الله دا روايت د دوه حضراتو نه رانقل كړيدې يو د عبد الله بن محمد نه او بل د على بن المدينى نه -

② دويم صورت دا دې چه ددې عطف دې په " حدثنا عارم " باندې وى ، نو دې صورت كښې به دا مطلب شى چه امام بخارى رحمه الله د عبد الله بن محمد په واسطه سره دا حديث د على بن المدينى نه هم نقل كړيدې يعنى عبدالله سره دا حديث په واسطه د عارم هم دې او د على بن المدينى په واسطه هم ، امام بخارى رحمه الله دواړو واسطو سره دا رانقل كړيدې - (٣)

**قوله: قال التيمى : فوقع فى قلبى منه شيئ ، قلت : حدثت به كذا وكذا ، فلم أسمعه من أبى عثمان ، فنظرت فوجدته عندى مكتوبا فيما سمعت :** سليمان تيمى فرمائى چه دا حديث كله ما بيان كړو نو څما زړه كښې شك راغلو چه ايا دا حديث ما د ابو عثمان نه بلاواسطه اوريدلې دې او كه د ابوتميمه په واسطه مې اوريدلې دې ، يعنى دې حديث كښې څما شيخ ابوعثمان دې او كه ابو تميمه دې ، چه ما ته شك راغلو نو ما په خپل كتاب كښې اوكتل نو ما په ديكښې بيا موندل چه دا ما د ابوتميمه نه اوريدلې دې يعنى د ابوعثمان نه مې بې د واسطې نه دې اوريدلې ، حديث د باب كتاب المناقب ، باب مناقب الحسن و الحسين رضى الله عنهما كښې تير شويدې -

**ابو تميمه طريف بن مجالد** : د ابو تميمه طريف بن مجالد په بخارى كښې صرف دوه

---

(١) فتح البارى : ١٠\٥٣٣ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٥٣٣ ، عمدة القارى : ٢٢\١٠٣ )

(٣) فتح البارى : ١٠\٥٣٣ ، عمدة القارى : ٢٢\١٠٣ )

روایتونه دی یو دا او بل په کتاب الاحکام کښې راغلی - ([1])
یحي بن معین ، محمد بن سعد وغیره ائمه د جرح او د تعدیل د دوی توثیق کړیدې ([2]) ابن حبان په کتاب الثقات کښې د ده ذکر کړیدې - ([3])
د ده تره ده لره په یو یمنی باندې خرڅ کړې وو ، چه د چا په لاس دې خرڅ کړې شوې وو ، د دې سړی ښځې یو ورځ ده ته بد رد اوویلې نو ده خپل تعارف اوکړو چه څه عرب یم ، ښځې خاوند ته اوویل ، خاوند ده نه تپوس اوکړو نو ده ورته پوره حقیقت ښکاره کړو چه په ما باندې څه خپل تره خرڅ کړې یم څه غلام نه یم بلکه څه اصلاً ازاد یم ، دې اخستونکی یمنی ورته اوویل : چه ته دا اوښه او زاد راه واخله او واپس خپل قوم ته لاړ شه خو ده انکار اوکړو او وې ویل چه کوم قوم څه خرڅ کړې یم ، څه به اوس کله هم دوی سره نه ملاویږم - ([4])
د دوی وفات په پنځه نوی ، اووه نوی یا نهه نوی سن هجریٔ کښې شویدې - ([5])
د امام مسلم نه علاوه باقی حضراتو د ده روایتونه ذکر کړیدی - ([6])

## ۲۳=بَاب حُسْنُ الْعَهْدِ مِنَ الْإِيمَانِ

[۵۶۵۸] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى امْرَأَةٍ مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيجَةَ وَلَقَدْ هَلَكَتْ قَبْلَ أَنْ يَتَزَوَّجَنِي بِثَلَاثِ سِنِينَ لِمَا كُنْتُ أَسْمَعُهُ يَذْكُرُهَا وَلَقَدْ أَمَرَهُ رَبُّهُ أَنْ يُبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ وَإِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَذْبَحُ الشَّاةَ ثُمَّ يُهْدِي فِي خُلَّتِهَا مِنْهَا [ر:۳۶۰۵]

**د تعلق لحاظ کول** : د عهد څو معنی راځی ، زمان ، مکان ، یمین ، ذمه ، صحبت ، میثاق ، امان ، نصیحت ، وصیت ([7]) دلته دینه احترام او لحاظ کول مراد دی - ([8]) د حقونو احترام کول او د تعلقاتو لحاظ کول ، په ایمانی عملونو کښې یو عمل دې -
روایت د باب کښې حضرت عائشه فرمائی چه څه یوې ښځې ته هم نه یم پسخیدلې چه څومره خدیجه ته پسخیدلې یم ، حال دا دې چه هغه څما د نکاح نه درې کاله وړاندې وفات شوې وه ، ځکه چه ما به د رسول الله ﷺ نه د دوی ذکر کول اوریدل ، او په تحقیق سره دوی ﷺ ته خپل رب حکم کړې وو چه دیته زیرې ورکړه د جنت په محل کښې د ملغلرو ، چه کله به دوی یو بکریٔ حلاله کړه نو د حضرت خدیجه ملګرو ته به ئې هم څه لیږل -

---

[1]) فتح الباری : ۱۰\۵۳۳)
[2]) الجرح و التعدیل : ٤\الترجمة : ۲۱٦٤ ، طبقات بن سعد : ۷\۱۵۲)
[3]) کتاب الثقات لابن حبان : ٤\۳۹۵)
[4]) تهذیب الکمال : ۱۳\۳۸۱ (رقم الترجمة ۲۹٦۲)
[5]) تهذیب الکمال : ۱۳\۳۸۱ (رقم الترجمة ۲۹٦۲)
[6]) تهذیب الکمال : ۱۳\۳۸۱ (رقم الترجمة ۲۹٦۲)
[7]) فتح الباری : ۱۰\۵۳٤ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۳)
[8]) فتح الباری : ۱۰\۵۳٤ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۳)

د حضرت خديجه ملګرو ته د بكرئ غوښه ليږل " حسن عهد " او د دوی د تعلقاتو د لحاظ ساتلو په طور وه ، هم ددې مناسبت په وجه امام بخاری رحمه الله دا حديث دلته ذكر كړو .
لكه چه د مستدرك حاكم او د شعب الايمان بيهقى كښې د حضرت عائشه په روايت كښې دده تصريح ده ، هغه فرمائى :

" جاءت عجوز إلى النبي صلى الله عليه و سلم ، فقال : كيف أنتم حالكم ، كيف كنتم بعدنا ؟ قالت : بخير ، بأبي أنت و أمي يا رسول الله ، فلما خرجت ، قلت : يا رسول الله ، تُقْبِلُ على هذه العجوز هذا الإقبال ، فقال : يا عائشة ، إنها كانت تأتينا زمان خديجة ، وإن حسن العهد من الإيمان " (١)

حضرت عائشه فرمائى : يوبوډئ ښځه رسول الله ﷺ ته راغله ، حضور ﷺ دينه د حال احوال تپوس اوكړو او ديته ئې ډيره توجه وركړه ، دې اوويل : خما مور پلار دې په تا قربان وی ، خه روغه يم ، نو چه كله دا اووتله نو ما تپوس اوكړه ، اے د الله رسوله ! تا دې بوډئ ته دومره توجه وركړه ؟ نو حضور ﷺ اوفرمائل : عائشه دا به مونږ كره د خديجه په دور كښې راتله او تعلقاتو كښې احترام او لحاظ كول د ايمان حصه ده -

من قَصَب : قصب اصل كښې بانس ته وائى ، دلته ترينه " قصب الدرر " د ملغلرو بانس مراد دې ، علامه عينى رحمه الله فرمائى ، د جوهريانو په اصطلاح كښې ويلې كيږى " قصب من اللؤلؤ ، قصب من الجوهر " ..... (٢)

فى خُلتها : خُلّة ( د خاء په ضمه او د لام په تشديد سره ) مصدر دې ، دوستئ ته وائى - دلته ترينه ملګرې مراد دی ، مصدر جمع او اسم دپاره هم استعماليږى - (٣)

بعضو ويلې دى دلته مضاف محذوف دې أى يهدى إلى أهل خلتها (٤)

## ٢٤= بَاب فَضْلِ مَنْ يَعُولُ يَتِيمًا

[٥٦٥٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي قَالَ سَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ فِي الْجَنَّةِ هَكَذَا وَقَالَ بِإِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى [ر: ٤٩٩٨]

دې باب كښې د يتيم د پالنې او د كفالت فضيلت او اهميت بيان شويدې ، يَعُول په معنى دپالنې او د تربيت كولو دې (٥) په حديث د باب كښې رسول الله ﷺ فرمائى : خه او د يتيم پالنه كوونكې به په جنت كښې داسې يو او دوی ﷺ په مسواكه او په مينځه ګوته اشاره

---

(١) المستدرک للحاكم ، كتاب الإيمان وباب حسن العهد من الإيمان : ١\١٦)
(٢) عمدة القارى : ٢٢\١٠٤)
(٣) فتح البارى : ١٠\٥٣٤ ، عمدة القارى : ٢٢\١٠٤ ، النهاية لابن الاثير : ٢\٧٢)
(٤) فتح البارى : ١٠\٥٣٤)
(٥) فتح البارى : ١٠\٥٣٥)

اوکړه او دديې نزدي والې ئې اوخودلو يعنی چه څومره لږه فاصله د دی دوه ګوتو مينځ کښې ده دومره فاصله به څما او د يتيم پالنه کوونکی مينځ کښې وی ، لکه يو بل حديث کښې دی بعثت أنا و الساعة کهاتين يعنی څما د بعثت او د قيامت مينځ کښې دومره فاصله ده چه څومره د دې دوه ګوتو مينځ کښې ده - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی :" وفيه إشارة إلى أن بين درجة النبی و کافل اليتيم قدر تفاوت ما بين السبابة و الوسطی ، وهو نظير قوله : بعثت أنا و الساعة کهاتين "(١)

حافظ ابن حجر د خپل شيخ په حواله سره د دې تشبيه حکمت داليکلې دې چه رسول الله ﷺ يو داسې قوم ته راليږلې شوې وو چه جاهل او د دين نه بيګانه وو . دوی ﷺ دوی ته د دينی امورو معلم او کفيل رااوليږلې شو ، د يتيم کفالت کوونکې هم د يو داسې بچی پالنه او تربيت کوی چه هغه د خپلې دنيا او د دين دواړو نه بيګانه دې - (٢)

## ٢٥=بَابُ السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ

[٥٦٦٠] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ يَرْفَعُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ كَالَّذِي يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ الدِّيلِيِّ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ مَوْلَى ابْنِ مُطِيعٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ [ر:٥٠٣٨]

أرملة ( د راء په سکون او د ميم په فتحه سره ) هغه ښځې ته وايی چه د هغې خاوند نه وی، برابره خبره ده چه دې واده کړې وی او که ئې نه وی کړې (٣)

حديث د باب په کتاب النفقات، باب فضل النفقة على الأهل کښې تير شويدي

## ٢٦=بَابُ السَّاعِي عَلَى الْمِسْكِينِ

[٥٦٦١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِي الْغَيْثِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَحْسِبُهُ قَالَ يَشُكُّ الْقَعْنَبِيُّ كَالْقَائِمِ لَا يَفْتُرُ

---

١) فتح الباری : ١٠\٥٣٥)

٢) فتح الباری : ١٠\٥٣٦)

٣) إرشاد الساری : ١٣\٣٨ . وقال إبن الأثير : الأرامل : المساكين من رجال و نساء و يقال لكل واحد من الفريقين على إنفراده : أرامل . و هو بالنساء أخص و أكثر استعمالا . و الواحد أرمل و أرملة . و قد تكرر ذكر الأرمل و الأرملة فی الحديث . فالأرمل الذی ماتت زوجته . و الرملة التی مات زوجها . و سواء كانا غنيين او فقيرين . النهاية لابن الأثير : ٢\٢٦٦ . و هكذا فی مجمع بحار الأنوار : ٢\٣٨١)

وَكَالصَّائِمِ لَا يُفْطِرُ [ر:٥٠٣٨]

على المسكين أى لأجل المسكين ، على د سببيت دپاره دي ، ساعى : محنت كوونكى او گټونكى ته وائى " القائم لا يفتر " مركب توصيفى دي ، لا يفتر د القائم صفت دي - " القائم " باندې الف لام د عهد ذهنى دپاره دي لكه چه "ولقد أمر على اللئيم يسبّنى" كښې دي - (١)

**قوله:** وأحسبه قال - يشك القعنبي - : كالقائم.... : د امام بخارى رحمه الله شيخ عبد الله بن مسلمه فرمائى چه ځما خيال دي چه امام مالك د " كالقائم لا يفتر ... " الفاظ هم ويلي وو - " احسبه " كښې ضمير منصوب " مالك " ته راجع دي " يشك القعنبى " جمله معترضه ده يعنى عبد الله بن مسلمه قعنبى ته شك دي -

## ٢٧= بَاب رَحْمَةِ النَّاسِ وَالْبَهَائِمِ

[٥٦٦٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَبِي سُلَيْمَانَ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ شَبَبَةٌ مُتَقَارِبُونَ فَأَقَمْنَا عِنْدَهُ عِشْرِينَ لَيْلَةً فَظَنَّ أَنَّا اشْتَقْنَا أَهْلَنَا وَسَأَلَنَا عَمَّنْ تَرَكْنَا فِي أَهْلِنَا فَأَخْبَرْنَاهُ وَكَانَ رَفِيقًا رَحِيمًا فَقَالَ ارْجِعُوا إِلَى أَهْلِيكُمْ فَعَلِّمُوهُمْ وَمُرُوهُمْ وَصَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي وَإِذَا حَضَرَتْ الصَّلَاةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ أَحَدُكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ [ر:٦٠٢]

**د الله په مخلوق د رحمت كولو فضيلت** : دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د خلقو او د خناورو سره د رحمت او د مهربانئ سلوك كولو اهميت بيان كړيدې ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى شايد د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دې روايت ته اشاره كړيده چه كوم دوى مرفوع نقل كړيدې چه د هغې الفاظ دى "لن تؤمنوا حتى ترحموا، قالوا: كلنا رحيم يا رسول الله، قال إنه ليس برحمة أحدكم صاحبه، ولكنها رحمة للناس رحمة العامة" (٢)

يعنى تاسو تر هغه مؤمن نه شئ جوړيدئ چه تر څوتاسو رحم اونكړئ نو خلقو اوويل : اے د الله رسوله مونږ ټول رحم كوونكې يو ، دوى ﷺ اوفرمائل : په خپل يو ملګرى رحم كول مراد نه دى ( د ملګرى سره د رحمت او د شفقت معامله خو هر يو كوى ) بلكه هغه رحمت مراد دې چه تمامو خلقو دپاره عام وى -

طبرانى دا حديث نقل كړيدې او حافظ فرمايى چه ددې رجال ثقه دى (٣)

د باب روميې روايت "كتاب الصلاة باب من قال ليؤذن فى السفر مؤذن واحد" كښې تير شويدې ،

**شببة:** د شاب جمع ده لكه چه د بار جمع بررة ده ، متقاربون يعنى مونږ يو بل سره قريب العمر وو : أى متقاربون فى السن - فظن أنا اشتقنا أهلنا: رسول الله ﷺ ته خيال اوشو چه مونږ د

---

١) ارشاد السارى : ١٣\٣٨)

٢) فتح البارى : ١٠\٥٣٨)

٣) فتح البارى : ١٠\٥٣٨)

خپل كور د خلقو اشتياق لرو - وسألنا عمن تركنا في أهلنا فأخبرناه: رسول الله ﷺ مونږ نه تپوس اوكړو چه مونږ په كور كښې څوك څوك پريخودي دي -

د رسول الله ﷺ دوى نه د اهل وعيال متعلق تپوس كول او بيا دوى ته اجازت وركول د تللو د شفقت او د همدردئ په وجه وو ، هم دې مناسبت سره امام دا حديث دلته ذكر كړو -

[٥٦٦٣] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يَمْشِي بِطَرِيقٍ اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْعَطَشُ فَوَجَدَ بِئْرًا فَنَزَلَ فِيهَا فَشَرِبَ ثُمَّ خَرَجَ فَإِذَا كَلْبٌ يَلْهَثُ يَأْكُلُ الثَّرَى مِنَ الْعَطَشِ فَقَالَ الرَّجُلُ لَقَدْ بَلَغَ هَذَا الْكَلْبَ مِنَ الْعَطَشِ مِثْلُ الَّذِي كَانَ بَلَغَ بِي فَنَزَلَ الْبِئْرَ فَمَلَأَ خُفَّهُ ثُمَّ أَمْسَكَهُ بِفِيهِ فَسَقَى الْكَلْبَ فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ فَغَفَرَ لَهُ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا فَقَالَ نَعَمْ فِي كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ [ر: ١٧١]

**د څناورو سره د مهربانئ سلوك كولو فضيلت** : د باب دويم روايت " كتاب المساقات ، باب فضل سقي الماء " كښې تير شويدې ، حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى ، رسول الله ﷺ فرمائلي دى چه يو خل سړې روان وو نو ده ته په لاره كښې سخته تنده اولګيدله نو ده ته يو كوهي په نظر راغلو ، نو دې ديته كوز شو او اوبه ئې اوڅكلې او را اووتلو نو ده اوليدلو چه يو سپې ږبې او د تندې د لاسه په ختيو ژبه راكاږي ، دې سړي سوچ اوكړو چه دې سپي ته به هم هغه تكليف د تندې په وجه رسيدلې وى چه كوم ما ته رارسيدلې وو ، دا سوچ ئې اوكړو او كوهي ته كوز شو او خپله موزه ئې د اوبو نه ډكه كړه ، بيا ئې په خپله خُله كښې اونيوله ( او بره رااووختلو ) او دا ئې سپي باندې اوڅكله ، الله تعالى دده دا عمل قبول كړو او د ده ئې بخنه اوكړه . خلقو تپوس اوكړو ، اے د الله رسوله آيا د څناورو په باره كښې به هم مونږ ته اجر ملاويږي ؟ نو دوى ﷺ اوفرمائل : د هر لوند ځيګر لرونكي ( يعنى د هر څناور ) متعلق به اجر ملاويږي -

**كل ذات كبد رطبة** : رطبة د كبد صفت دې ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي : **الرطوبة كناية عن الحياة** [1]

[٥٦٦٤] [2] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةٍ وَقُمْنَا مَعَهُ فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تَرْحَمْ مَعَنَا أَحَدًا فَلَمَّا سَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْأَعْرَابِيِّ لَقَدْ حَجَّرْتَ وَاسِعًا يُرِيدُ رَحْمَةَ اللَّهِ

روايت كښې دى چه يو بانديچى راغلو ( دا ذوالخويصره يمانى وو يا اقرع بن حابس وو ) [3]

---

[1] ) ارشاد السارى : ١٣\٣٩ . فتح البارى : ١٠\٥٣٨ ، عمدة القارى : ٢٢\١٠٦ )

[2] ) ٥٦٦٤ ) هذا الحديث من إفراد الإمام البخاري ، عمدة القاري : ٢٢\١٠٦ )

[3] ) ارشاد السارى : ١٣\٤٠ ، فتح البارى : ١٠\٥٣٨ ، عمدة القارى . ٢٢\١٠٦ )

او ده اوویل : اے الله په ما او په محمد رحم اوکړه او مونږ سره په بل چا رحم مه کوه " نبی کریم ﷺ چه کله سلام اوګرځولو نو دې باندیچی ته ئې اوویل تا یو فراخه څیز تنګ ( او محدود ) کړو - حَجَّرتحجیرا په معنی د تنګولو راځی ، (۱)

د " واسعا " نه د الله تعالی رحمت مراد دې ، مطلب دا دې چه د الله تعالی رحمت ډیر وسیع دې او تا دې ډیر محدود کړو - یرید رحمة الله .... دا د کوم راوی د طرفه تشریح ده ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه کیدې شی دا د حضرت ابوهریره رضی الله عنه جمله وی -
علامه قسطلانی رحمه الله فرمائي چه دا حدیث په اصحاب صحاح سته کښې صرف امام بخاری رحمه الله نقل کړیدې - (۲)

[۵۶۶۵] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُولُ سَمِعْتُ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ فِي تَرَاحُمِهِمْ وَتَوَادِّهِمْ وَتَعَاطُفِهِمْ كَمَثَلِ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى عُضْوًا تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ جَسَدِهِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى

**د مسلمانانو په خپل مینځ کښې د محبت بیان** : رسول الله ﷺ چه ته به یو بل باندې مهربانئ کښې یو بل سره محبت لرلو کښې او خپل مینځ کښې شفقت کوونکو کښې ( کامل ) مؤمنان د یو جسم په شان وینې چه د جسم کوم یو اندام ته هم تکلیف وی نو ټول جسم په تبه او په بیداروالی کښې ده سره شریك وی -
دې حدیث کښې درې لفظونه تراحم ، تواد او تعاطف استعمال شویدی ، د تراحم معنی د یو بل سره رحم کول راځی ، د تواد معنی د یو بل سره محبت او مودت کول راځی او د تعاطف معنی دیوبل سره شفقت کول راځی،د تداعی معنی یو بل ته دعوت ورکول راځی(۴)
مطلب دا دې چه کله د سړی په جسم کښې په یو اندام څه تکلیف یا بیماری وی نو پوره جسم د دې په وجه بې ارامه وی او سړې بیدار وی ، د زیاتې شوکیرې او بې آرامه کیدو په وجه ورته عموما تبه هم وی ، دې وجه نه د " السهر " نه پس ئې د " الحمی " لفظ ذکر کړو(۵)
د کامل مؤمنانو د یو بل سره د محبت د تعلق هم دا عالم وی چه کوم یو مؤمن په تکلیف کښې مبتلاء اووینې نو ټول ده دپاره پریشانه وی ، علامه قسطلانی رحمه الله لیکی
والحاصل أن مثل الجسد فی کونه إذا اشتکی بعضه اشتکی کله کالشجرة ، إذا ضرب من أغصانها اهتزت الأغصان کلها بالتحرك و الإضطراب ، وفیه جواز التشبیه و ضرب الأمثال لتقریب المعانی للأفهام (۶)
یعنی د جسم مثال په شان د اونې دې ، د اونې یو ښاخ چه دې اووهلو نو د دې ټول ښاخونه

---

(۱) فتح الباری : ۱۰\۵۳۸ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۶ )
(۲) ارشاد الساری : ۱۳\۴۰ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۶ )
(۳) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب الأدب ، باب تراحم المؤمنین و تعاطفهم و تعاضدهم : ۴\۱۹۹۹ )
(۴) ارشاد الساری : ۱۳\۴۰ ، فتح الباری : ۱۰\۵۳۹ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۷ )
(۵) فتح الباری : ۱۰\۵۳۹ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۹ )
(۶) ارشاد الساری : ۱۳\۴۰ )

په خوزيدو او په اضطراب كښې راشى ، دارنګه چه د جسم يو حصه هم بې آرامه وى نو ټول جسم بې آرامه وى ، دينه معلومه شوه چه د معنى د پوهولو دپاره تشبيه وركول جائز دى -

[٥٦٦٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ غَرَسَ غَرْسًا فَأَكَلَ مِنْهُ إِنْسَانٌ أَوْ دَابَّةٌ إِلَّا كَانَ لَهُ بِهِ صَدَقَةٌ [ر: ٢١٩٥]

[٥٦٦٧] (١) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ قَالَ سَمِعْتُ جَرِيرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ [ر: ٦٩٤١]

رسول الله ﷺ مسلمان چه کله يو اونه اولګوى او دينه يو انسان يا يو ځناور څه خوراك اوكړى نو دا ده دپاره صدقه كيږى -

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت :** ترجمة الباب سره د دې حديث مناسبت بيانولو كښې علامه عينى رحمه الله ليكى

**مطابقته للترجمة من حيث أن فى غرس المسلم الذى يأكل منه الإنسان و الحيوان ، فيه معنى الترجمة و التعطف عليهم ، لأن حال المسلم يدل على أنه يقصد ذلك وقت غرسه (٢)**

يعنى مسلمان چه اونه وغيره كرى نو ديكښې د ده اصل محرك او جذبه په مخلوق د خدائې پاك باندې رحم او شفقت وى چه د الله تعالى مخلوق دينه فائده واخلى ، ددې په مناسبت سره حديث د باب چه ديكښې د اونې د كرلو ذكر دې امام بخارى رحمه الله دلته ذكر كړو

## ٢٨ = بَابُ الْوَصَاءَةِ بِالْجَارِ

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِلَى قَوْلِهِ مُخْتَالًا فَخُورًا [النساء: ٣٦]

[٥٦٦٨] (٣) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا زَالَ يُوصِينِي جِبْرِيلُ بِالْجَارِ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ

---

(١) ٥٦٦٧) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب التوحيد ، باب قول الله تبارك و تعالى : " قل ادعوا الله أو ادعوا الرحمن أيًا ما تدعوا فله الأسماء الحسنى " ( رقم الحديث : ٦٩٤١ ) و أخرجه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب رحمته صلى الله عليه وسلم الصبيان و العيال : ٤ \ ١٨٠٩ ( رقم الحديث : ٢٣١٩ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى الرحمة : ٤ \ ٢٨٥ (رقم الحديث : ٤٩٤١ )

(٢) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٠٧ )

(٣) ٥٦٦٨) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب الوصية بالجار و الإحسان إليه : ٤ \ ٢٠٢٥ ( رقم الحديث : ٢٦٢٣ ) ، و أخرجه الترمذى فى كتاب البر و الصلة ، باب...[بقيه برصفحه آئنده....

[۵۲۶۹] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ

وصاءة ( د واو په فتحه سره ) د وصيت په معنى كښې ده - امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د سورة نساء آيت كريمه ذكر كړيدې پوره آيت دې ( واعبدوا الله ولا تشركوا به شيئا و بالوالدين إحسانا و بذى القربى و اليتامى و المساكين و الجار ذى القربى و الجار الجنب و الصاحب بالجنب و ابن السبيل و ما ملكت أيمانكم إن الله لا يحب من كان مختالا فخورا )

دې آيت كريمه كښې د والدينو ، رشته دارانو ، ګاونډيانو ، غلامانو او وينځو سره د نيك سلوك حكم وركړې شويدې -

**د الجار ذى القربى او د الجار الجنب مصداق** : " الجار ذى القربى " او د " الجار الجنب " مصداق كښې مفسرين مختلف اقوال كوى :

① حضرت عبد الله بن عباس نه روايت دې چه د " الجار ذى القربى " نه هغه كس مراد دې چه كوم ګاونډى هم وى او رشته دار هم او د " الجار الجنب " نه هغه كس مراد دې چه كوم صرف ګاونډى وى ، رشته دار نه وى - (²)

② " الجار ذى القربى " نه مراد نزدې اوسيدونكې ګاونډى دې ، او " الجار الجنب " نه مراد لرې اوسيدونكې ګاونډى دې - (³)

③ د " الجار ذى القربى " نه مسلمان ګاونډې دې او د " الجار الجنب " نه غير مسلم ګاونډى مراد دې ،ابن جرير دا قول نقل كړيدې - (⁴)

④ مجاهد نه منقول دې چه د " الجار الجنب " نه د سفر ملګرې مراد دې - (⁵)

علامه قرطبى رحمه الله فرمائى چه دينه معلومه شوه چه د ګاونډى حقونه شته ، كافر وى

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ما جاء فى حق الجواز : ۴ \ ۳۳۲ ( رقم الحديث : ۱۹۴۲ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى حق الجوار : ۴ \ ۳۳۸ (رقم الحديث : ۵۱۵۱ ) و أخرجه ابن ماجة فى كتاب الأدب ، باب فى حق الجوار : ۲ \ ۱۲۱۱ ( رقم الحديث : ۳۶۷۳ )

¹) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب الوصية بالجار و الإحسان إليه : ۴ \ ۲۰۲۵ (رقم الحديث: ۲۶۲۵) وأخرجه الترمذى فى كتاب البر والصلة،باب ما جاء فى حق الجوار ۴\۳۳۳ (رقم الحديث:۱۹۴۳) وأخرجه أبو داود فى كتاب الأدب ،باب فى حق الجوار : ۴ \ ۳۳۸ ( رقم الحديث : ۵۱۵۲ )

²) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۴۱ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۰۸ ، تفسير ابن كثير : ۱ \ ۴۹۴ ، النساء : ۳۶ )

³) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۴۱ ، تفسير ابن كثر : ۱ \ ۴۹۴ )

⁴) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۴۱ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۰۸ ، تفسير ابن كثير : ۱ \ ۴۹۴ ، النساء : ۳۶ )

⁵) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۴۱ ،عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۰۸ ، تفسير ابن كثير : ۱ \ ۴۹۴ ، النساء : ۳۶ )

او که مسلمان ،رشته دار وی او که غیر رشته دار ، د کافر ګاونډی سره به د احسان مطلب دا وی چه ده سره ښه ژوند تیرول اختیار کړې شی ، ده ته ضرر رسانئ نه ځان اوساتی ، د احسان نه دوستی او محامات مراد نه دې ځکه چه دا ممنوع ده لکه چه لیکی :

قلت : وعلى هذا فالوصاءة بالجار مأمور بها مندوب إليها مسلما كان أو كافرا ، وهو الصحيح ، و الإحسان قد يكون بمعنى المواساة ، وقد يكون بمعنى حسن العشرة ، وكف الأذى ، والمحاماة دونه -[1]

**د ګاونډیانو قسمونه** : طبرانی د حضرت جابر ﷺ نه روایت رانقل کړیدې چه د ګاونډیانو درې قسمونه دی :

① هغه ګاونډی چه کوم صرف حق دجوار لری -

② هغه ګاونډی چه د هغه دوه حقه وی یو حق د جوار او دویم حق د اسلام -

③ هغه ګاونډی چه د هغه درې حقه وی یو حق د جوار ، دویم حق د اسلام او دریم د قرابت او د رشته دارئ حق - [2]

د ګاونډی په حد کښې اختلاف دې ، اوزاعی وائی د هر جانب هر طرف نه څلویښتو کورو پورې په ګاونډ کښې شامل دی.... حضرت علی ﷺ فرمائی چه من سمع النداء فهو جار [3]

بعضې خلق وائی من سمع إقامة الصلاة فهو جار لذلك المسجد [4]

بعضې وائی من ساكن رجلا في محلة أو مدينة فهو جار [5]

د دې أقوالو حاصل دا دې چه د آذان آواز تر کوم ځائې پورې رسی ، نو دا د یو بل ګاونډیان دی یا د اقامت اواز چه تر کوم ځائې پورې رسی نو دوی د یو بل ګاونډیان دی یا په یو محله او په یو ښار کښې اوسیدونکی خلق د یو بل ګاونډیان دی -

الصاحب بالجنب نه د سفر ملګرې مراددې ، بعضو ویلي دی دینه ښځه مراد ده ، علامه قرطبی رحمه الله اول قول ته اصح ویلې دې - [6]

مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله ددې آیت تفسیر کوی او لیکی :

یتامی ، نساء ، ورثاء او د زوجینو حقوق دوی سره ئې د حسن معامله بیان اوکړو اوس دا ارشاد دې چه د هر یو حق درجه په درجه د تعلق موافق او د حاجتمندئ مناسب أدا کړئ د ټولو نه وړاندې حق د الله تعالی دې بیا د مور پلار بیا درجه په درجه د ټولو واسطه دارو او د حاجتمندو او د ګاونډیانو د قریب او دغیر قریب نه مراد قرب او بعد نسبی دې یا قرب

---

[1] ) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي : ۵\۱۸٤ )

[2] ) ارشاد الساری : ۱۳\٤۲ ، فتح الباری : ۱۰\٥٤۲ ، تفسیر ابن کثیر : ۱\٤۹٥ ، النساء : ۳٦ ، الجامع لاحكام القرآن للقرطبي : ۵\۱۸٤ )

[3] ) عمدة القاري : ۲۲\۱۰۸ )

[4] ) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي : ۵\۱۸٥ )

[5] ) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي : ۵\۱۸٥ )

[6] ) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي : ۵\۱۸۹ )

او بعد مكانى دي - رومبى صورت كښې به دا مطلب وى چه د قرابتى ګاونډى حق د اجنبى ګاونډي نه زيات دې او دويم صورت كښې مدعا به دا وى چه د خوا كښې ګاونډى حق د لرې ګاونډى يعنى چه كوم په فاصله اوسيږى د ده نه زيات دې ، او د خوا كښې ناست د سفر ملګرى ، هم پيشه او د كار شريك ، د يو آقا دوه نوكران ، د يو استاد دوه شاګردان ، دوست ، شاګرد او مريد وغيره ټول داخل دى او مسافر كښې ميلمه ، غير ميلمه دواړه راغلل او مال مملوك غلام او وينځې نه علاوه نورو حيواناتو ته هم شامل دې آخر كښې فرمائى چه د چا په مزاج كښې تكبر او ځان ته خوښى وى چه څوك هم د خپل ځان برابر نه ګڼړى ، په خپل مال مغرور او په عيش كښې مشغول وى ، هغه دا حقونه نه اداء كوى ، نو ده نه ځان اوساتئ او ترينه جُدا شئ -

يعنى الله تعالى ځان ته خوښ او تكبر كوونكى لره چه كوم بخل كوى دوست نه ګرځوى او خپل مال او هغه علم چه خدائې پاك وركړيدې هغه د خلقو نه پټوى چا ته پرې نفع نه رسوى او قولاً او عملاً نورو ته هم د بخل ترغيب وركوى او دې كافرانو دپاره مونږه د ذلت عذاب تيار كړيدې -

**فائده** : دا آيت د يهوديانو په باره كښې نازل شوې وو چه فى سبيل الله خرچ كولو كښې خپله هم بخل ئې كولو او مسلمانان به ئې هم بندول غوښتل او د رسول الله ﷺ كوم اوصاف چه په تورات كښې مذكور وو او د حقانيت د اسلام چه كوم آيتونه موجود وو هغه به ئې پټول ، نو په مسلمانانو د داسې خصلتونو نه احتراز كول لازم دې

حديث د باب كښې رسول الله ﷺ فرمائى چه حضرت جبرائيل عليه السلام د ګاونډى دپاره ما ته برابر وصيت كولو تر دې چه ما ته خيال راغلو چه دې به وارث اوګرځوى -

**د ګاونډى سره څنګه حسن سلوك اوكړې شى؟**: د ګاونډيانو سره د حسن سلوك ذكر كولو كښې علامه قسطلانى رحمه الله ليكى : **و يحصل امتثال الوصية بإيصال ضروب الإحسان إليه بحسب الطاقة كالهدية ، والسلام ، و طلاقة الوجه عند لقائه ، و تفقد حاله ، و معاونته فيما يحتاج إليه ، و كف أسباب الأذى عنه على اختلاف أنواعه حسية كانت أو معنوية** (۱)

يعنى د ګاونډيانو سره د حسن سلوك چه كوم وصيت شويدې په دې د عمل صورت دا دې چه سړې د خپل طاقت او د وس مطابق د ګاونډى سره د حسن سلوك معامله اوكړى ، هديه وركول ، سلام كول ، په روڼ تندى خنده رويه ملاويدل ، د حال احوال تپوس كول ، د ضرورت په موقعه ده سره تعاون كول او چه په ځه ده ته اذيت ملاويږى كُه هغه حسى وى او كُه معنوى دينه خپل ځان ساتل د ګاونډيانو سره په حسن سلوك كښې داخل دې -

....

(۱) ارشاد السارى: ۱۳\ ٤۲ ،فتح البارى : ۱۰\ ٥٤۲ ، فضل الله الصمد فى توضيح الأدب المفرد : ۱\ ۱۹۰)

## ۲۹=باب إثم من لا يأمن جاره بوايقه يوبقهن [۳۴]

يهلكهن موبقا [الكهف: ۵۲] مهلكا

[۵۶۷۰] (۱) حدثنا عاصم بن علي حدثنا ابن أبي ذئب عن سعيد عن أبي شريح أن النبي صلى الله عليه وسلم قال والله لا يؤمن والله لا يؤمن والله لا يؤمن قيل ومن يا رسول الله قال الذي لا يأمن جاره بوايقه تابعه شبابة وأسد بن موسى وقال حميد بن الأسود وعثمان بن عمر وأبو بكر بن عياش وشعيب بن إسحاق عن ابن أبي ذئب عن المقبري عن أبي هريرة

امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې د هغه سړی د ګناه ذکر کړيدې چه د هغه د هلاکت خيز تکليفونو نه ګاونډی محفوظ نه وی -

بوائق: د بائقة جمع ده هلاك كوونكى ، هلاكت خيز ..... امام بخاری رحمه الله د خپل عادت مطابق د قرآن كريم د دوه آيتونو الفاظ ذكر كړل ، يو د سورت شورى د آيت نمبر خلور ديرشم كښې واقع لفظ " يوبقهن " دې (او يوبقهن بما كسبوا ويعف عن كثير) بل لفظ دې " موبق " دا په سورت كهف آيت نمبر دوه پنځوستم كښې واقع دې (وجعلنا بينهم موبقا) موبق ديكښې د هلاك كوونكى په معنى دې -

ابن ابى خاتم د حضرت ابن عباس نه دا تفسير نقل كړيدې - (۲)

د باب روميې روايت د حضرت ابو شريح نه دې ، دا صحابى دې او د ده نوم حضرت خويلد خزاعى دې - (۳)

د امام بخارى رحمه الله د شيخ عاصم بن على متابعت شبابه بن سوار او اسد بن موسى كړيدې ، اسماعيلى د شبابه متابعت موصولا نقل كړيدې ، او د اسد بن موسى متابعت طبرانى موصول نقل كړيدې - (۴)

حميد بن الاسود ،عثمان بن عمر ، ابوبكر بن عياش او شعيب بن اسحاق ... دې څلورو وارو راويانو د " ابن ابى ذئب عن المقبرى " په طريق سره د حضرت ابوهريره نه روايت نقل كړيدې - د عثمان طريق امام احمد موصولاً نقل كړيدې (۵)

.... بهر حال دا حديث د ابو شريح او حضرت ابوهريره د دواړو نه منقول دې ، د ابن ابى ذئب درې شاګردان دا د ابو شريح نه او څلور شاګردان ئې د ابوهريره نه نقل كوى -

---

۱) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الإيمان ، باب بيان تحريم إيذاء الجار : ۱\۶۸ ( رقم الحديث : ۴۶ )

۲) روح المعانى : ۱۵\۲۹۸ ، سوره كهف : ۵۲ ، ارشاد السارى : ۱۳\۴۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۰۹ ، فتح البارى : ۱۰\۵۴۳)

۳) فتح البارى : ۱۰\۵۴۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۰۹ ، ارشاد السارى : ۱۳\۴۳ )

۴) فتح البارى : ۱۰\۵۴۴ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۰۹ ، ارشاد السارى : ۱۳\۴۳ )

۵) فتح البارى : ۱۰\۵۴۴ ، ارشاد السارى : ۱۳\۴۳ )

"والله لایؤمن ....." کښې د ایمان کامل نفی ده یعنی چه کوم کس ګاونډیانو ته تکلیف او اذیت رسوی دي کامل الایمان نه دې ، یا دا به د کمال د ایمان په ځائې په زجر و توبیخ محمول کړې شی - (۱)

## ۳۰=بَاب لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا

[۵۶۷۱] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ هُوَ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ [ر: ۲۴۲۷]

علامه عینی رحمه الله لیکی أی لاتمنع الجارة عن إعطاء شیء حقیر لجارتها لأجل قلته (۲) یعنی یوه ښځه دې د خپلې ګاونډې دپاره څه څیز حقیر نه ګنړی بلکه معمولی څیز هم کُه ورته په طور د هدیه ورلیږلې شی نو ور او دې لیږی ، لکه چه په حدیث د باب کښې رسول الله ﷺ مسلمانانو ښځو ته خطاب کوی او فرمائی هیڅ یوه ښځه دې د خپلې ګاونډې دپاره څه څیز حقیر نه ګنړی ، اګر چه دا د بکرئ یو نوکه ولې نه وی - او ددې حدیث یو مفهوم دا هم کیدې شی چه مهداة إلیها دې دا هدیه دې حقیره نه ګنړی چه کله د ورکوونکې ښځې وَس هم دومره وی - دا بله خبره ده چه د دې هدیه کوونکې وس زیات وی او دا بیا هم د قلیل مقدار هدیه اوکړی نو دیکښې د اعتراض ځائې شته -

یا نساء المسلمات کښې د موصوف اضافت صفت ته دې -

فِرسِن ( د فاء په کسره او د راء په سکون سره او د سین په کسره سره ) نوکې ته وائی - (۳)

روایت د باب حضرت سعید مقبری د خپل پلار کیسان په واسطه د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه نقل کړیدې ، د سعید مقبری سماع بغیر د واسطې هم د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه ثابت ده ، دې وجه نه دې کله بالواسطه او کله بلا واسطه نقل کوی - (۴)

## ۳۱=بَاب مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ

[۵۶۷۲] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۵۴۵ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۰۹ ، ارشاد الساری : ۱۳\۴۳ )

۲) عمدة القاری : ۲۲\۱۱۰ )

۳) قال ابن الأثیر : فرسن ( س ) فیه " لا تحقرن من المعروف شیئا و لو فرسن شاة " الفِرْسن : عظم قلیل اللحم ، وهو خف البعیر ، کالحافر للدابة ، و قد یُستعار للشاة : فیقال : فرسن شاة ، و الذی للشاة هو الظلف ، و النون زائدة ، و قیل : أصلیة ، النهایة لابن الأثیر : ۲\۴۲۹ ، و هکذا فی مجمع بحار الأنوار : ۴\۱۱۷ )

۴) عمدة القاری : ۲۲\۱۱۰ ،فتح الباری : ۱۰\۵۴۵ )

فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [ر: ۳۱۵۳]

[۵۶۷۳] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْعَدَوِيِّ قَالَ سَمِعَتْ أُذُنَايَ وَأَبْصَرَتْ عَيْنَايَ حِينَ تَكَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ جَارَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتَهُ قَالَ وَمَا جَائِزَتُهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ وَالضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ فَمَا كَانَ وَرَاءَ ذَلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ عَلَيْهِ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [ر: ۵۷۸۴، ۶۱۱۱]

رسول الله ﷺ فرمائلي دی چه کوم کس په الله او په ورځ د قیامت ایمان لری ، نو هغه به خپل ګاونډی ته ضرر نه ورکوی چه کوم کس په الله او په ورځ د قیامت ایمان لری نو هغه له پکار دی چه د خپل میلمه اکرام او عزت اوکړی او چه کوم کس په الله او په ورځ د قیامت ایمان لری نو هغه له پکار دی چه ښه خبره کوی یا چپ وی -

**قوله: فليكرم ضيفه جائزته:** " جائزته " د يكرم دپاره مفعول به ثانی دې ، إكرام د اعطاء په معنی دې ، يعنی خپل ميلمه ته دې جائزه او ضيافت ورکړی او يا منصوب دې په " نزع الخافض سره ، **أی فليكرم ضيفه بجائزته** (۲) ددې تفصيل وړاندې باب اكرام الضيف كښې راروان دې -

**قوله: فليقل خيرا أو ليصمت:** صمت باب د نصر او د ضرب دواړو سره استعماليږی (۳) يعنی مؤمن له پکار دی چه هغه خبره کوی چه کومه کښې خير او نيکی وی ، ګنی خاموش دې پاتې شی ..... ښه خبره کول د خاموش پاتې کيدو نه افضل ده او خاموش پاتې کيدل د بدې خبرې کولو نه افضل ده -

لکه چه مشهوره ده چه بې د ضرروته خبرې کول حماقت دې خو په وخت د ضرورت خاموش پاتې کيدل د دينه لوې حماقت دې -

---

(۱) ۵۶۷۳ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الأدب ، باب إكرام الضيف و خدمته إياه بنفسه ( رقم الحديث : ۵۷۸۴ ) و أخرجه أيضا فى كتاب الرقاق ، باب حفظ اللسان ( رقم الحديث : ۶۱۱۱ ) و أخرجه مسلم فى كتاب الإيمان ، باب الحث على إكرام الجار و الضيف : ۱\۶۹ ( رقم الحديث : ۴۸ ) و أخرجه ابن ماجة فى كتاب الفتن ، باب كف اللسان فى الفتنة : ۲\۱۳۱۳ ( رقم الحديث : ۳۹۷۱ ) و أخرجه ابو داود فى كتاب الأطعمة ، باب ما جاء فى الضيافة : ۳\۳۴۲ ( رقم الحديث : ۳۷۴۸ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب البر و الصلة ، باب ما جاء فى الضيافة كم هو : ۴\۳۴۵ ( رقم الحديث : ۱۹۶۷ ) و أخرجه ابن ماجه في كتاب الأدب ، باب حق الضيف : ۲\۱۲۱۲ ( رقم الحديث : ۳۶۷۵ )

(۲) ارشاد السارى : ۱۳\۴۵ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۱۱ )

(۳) ارشاد السارى : ۱۳\۴۵ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۱۱ ، فتح البارى : ۱۰\۵۴۶ )

## ۳۲=بَاب حَقِّ الْجِوَارِ فِي قُرْبِ الْأَبْوَابِ

[۵۶۷۳]حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو عِمْرَانَ قَالَ سَمِعْتُ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي جَارَيْنِ فَإِلَى أَيِّهِمَا أُهْدِي قَالَ إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا [ر: ۲۱۴۰]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه ځما دوه ګاونډيان دى ، دوى كښې څه چا ته هديه اوليږم ؟ نو دوى ﷺ اوفرمايل : چه د كوم دروازه زياته نزدې وى -

**د ګاونډى د حقونو تفصيل** : حد د جوار كښې مختلف اقوال ذكر شويدى .... امام بخارى رحمه الله د ګاونډيانو د حقونو په سلسله كښې دا پنځه بابونه قائم كړيدې چه ديكښې د ګاونډى سره د حسن سلوك ذكر دې ، د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه يو حديث دې ديكښې د ګاونډيانو د حقونو او دوى سره د حسن سلوك تفصيل بيان شويدې ، د رسول الله ﷺ نه اصحابو تپوس اوكړو چه د ګاونډيانو څه حقونه دى ؟ نو دوى ﷺ اوفرمايل :

إن استقرضك أقرضته ، وإن استعانك أعنته ، وإن مرض عدته ، وإن احتاج أعطيته ، وإن افتقر عدت عليه ، و إن أصابه خير هنّيته ، وإن أصابته مصيبة عزيته ، وإذا مات اتبعت جنازته ، ولا تستطيل عليه بالبناء ، فتحجب عنه الريح إلا بإذنه ، وإن اشتريت فاكهة فأهدها له ، وإن لم تفعل فأدخلها سرا و لا يخرج بها ولدك ليغيظ بها ولده" ([1])

يعنى كه دې قرض اوغواړى نو چه ته ورته قرض وركړې ، مدد اوغواړى نو دده مدد اوكړې . بيمار شى نو چه دده تپوس اوكړې ، حاجت مند شى نو چه ته ورته عطيه وركړې ، فقير شى نو ته ورسره احسان اوكړې ، د خوشحالۍ په موقعه ورته مباركى وركړې ، او كه دې په كوم مصيبت كښې وى نو چه ده ته تسلى وركړې ، كه دې مړ شى نو چه دده جنازه كښې شريك شې او دده د اجازته بغير عمارت دومره لوې نه كړې چه دده د كور هوا بنده شى ، څه ميوه واخلې نو څه ده ته هم هديه كړه ، هديه كولې نه شې نو بيا ئې پټ كور ته يوسه او چه د ستا بچې دا ميوه بهر اونه باسى چه دده بچې ورته اوګورى او پريشانه شى -

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايى : وأسانيدهم واهية ، لكن اختلاف مخارجها يشعر بأن للحديث أصلا ([2]) يعنى ددې حديث سندونه ضعيف دې، خو د مختلف فرقونو سره دى نو معلوميږى چه ددې څه نه څه أصل شته -

---

[1]) فتح البارى : ۱۰\۵٤۷)

[2]) فتح البارى : ۱۰\۵٤۷)

## ۳۳= بَاب كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ

[۵۶۷۵] (۱) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ [ر: ۱۳۷۶]

[۵۶۷۶] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ قَالُوا فَإِنْ لَمْ يَجِدْ قَالَ فَيَعْمَلُ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ وَيَتَصَدَّقُ قَالُوا فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَوْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ قَالُوا فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ أَوْ قَالَ بِالْمَعْرُوفِ قَالَ فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ قَالَ فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهُ لَهُ صَدَقَةٌ

**هره نيكي صدقه ده:** هر نيك او معروف كار صدقه ده ، د معروف تعريف دي "المعروف إسم جامع لكل ما عرف من طاعة الله و التقرب إليه و الإحسان إلى الناس ، وكل ما ندب إليه الشرع من المحسنات " يعنى د معروف اطلاق په اطاعت د الله تعالى ، ده ته په نزدې كيدو او د خلقو سره ښه كولو په هر عمل باندې كيږي داسې چه كوم ځيزونه شرعا مندوب او مستحب دى په دوى هم د معروف اطلاق كيږي -

امام راغب فرمائى: المعروف اسم كل فعل يعرف حسنه بالشرع و العقل معا" (۲) يعنى معروف هرهغه فعل ته وائى چه د هغه ښه والې په شريعت او په عقل دواړو سره معلوم وى -

دلته د بخارى په روايت كښې دى " كل معروف صدقة" د دارقطنى او د حاكم په روايت كښې دينه پس اضافه ده "و ما أنفق الرجل على أهله كتب له به صدقة و ما وقى المرء به عرضه فهو صدقة" (۳) اهل و عيال باندې خرچ كول ، د خپل عزت حفاظت كول هم نيكى او صدقه ده -

د مسند احمد روايت كښې دا اضافه هم ده "و من المعروف أن تلقى أخاك بوجه طلق ، و أن تكفرغ من دلوك فى إناء أخيك" (۴) په رونړ تندى ملاويدل او د خپلې ډولچې نه د خپل رور په لوښې كښې اوبه اچول معروف او نيكى ده -

دباب دويم روايت كښې دى چه په هر مسلمان باندې صدقه ده ، اصحابو تپوس اوكړو كه دې د صدقې دپاره څه بيا نه مومى ، نو وې فرمائل :" دې دې په خپلو لاسونو اوګټى او صدقه دې اوكړى " تپوس اوشو كه دې ګټه نه شى كولې ، وې فرمائل : د ضرورت مند دې مدد اوكړې ، تپوس اوشو كه دا هم نه شى كولې ، وې فرمائل : د نيكئ حكم دې اوكړې ،

---

(۱) ۵۶۷۵) هذا الحديث من إفراد الإمام البخارى ، عمدة القارى : ۲۲\ ۱۱۲)
(۲) فتح البارى : ۱۰\ ۵۴۹)
(۳) المستدرک للحاکم ، کتاب البیوع ، باب کل معروف صدقة : ۲\ ۵۰)
(۴) مسند الإمام أحمد بن حنبل ، مسانيد جابر بن عبد الله الأنصارى: ۳\ ۳۶۰)

تپوس اوشو كه دا هم نه شي كولې نو وې فرمائل : د شر نه دې ځان اوساتى ، دا هم ده دپاره صدقه ده -

**قوله: فإن لم يستطع أولم يفعل .....:** راوى ته شك دې چه " إن لم يستطع " ئې ويلې وو او كه " إن لم يفعل " ئې ويلې وو -

**ملهوف** د مظلوم او مغموم په معنى دې

رسول الله ﷺ د صدقې آخرى درجه دا گرځولې ده چه سړې خپل ځان كم ازكم د تكليف رسولو نه بند كړى نو دا هم ده دپاره صدقه ده ، صدقه نه ثواب مراد دې - (١)

شارح بخارى ابن بطال او علامه قسطلانى فرمائى چه د دې حديث نه هغه خلق استدلال كوى چه هغوى وائى چه ترك او څه نه كول هم يو عمل دې ، د متكلمينو مسلك دا دې چه ترك د عمل عمل نه دې ، د عمل دپاره څه كول ضرورى دى - (٢)

د ظاهر د حديث نه استدلال كولو سره بعضې حضرات وائى چه شريعت كښې هيڅ يو امر مباح نشته دې بلكه هر امر يا خو باعث د اجر دې يا باعث د گناه .... چه كوم سړې هيڅ هم نه كوى او صرف د گناهونو نه ځان ساتى نو دا هم د اجر والا يو عمل دې - (٣)

## ٣٤=باب طيب الكلام

وَقَالَ أَبُوهُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ [ر:٢٨٢٧]

[٥٦٧٧] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرٌو عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّارَ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا وَأَشَاحَ بِوَجْهِهِ ثُمَّ ذَكَرَ النَّارَ فَتَعَوَّذَ مِنْهَا وَأَشَاحَ بِوَجْهِهِ قَالَ شُعْبَةُ أَمَّا مَرَّتَيْنِ فَلَا أَشُكُّ ثُمَّ قَالَ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ [ر:١٣٤٧]

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه ښه خبره كول صدقه ده ، د دوى دا تعليق امام بخارى رحمه الله په كتاب الصلح او كتاب الجهاد كښې موصولاً نقل كړيدې - (٤)

**قوله: ذكر النبى صلى الله عليه وسلم فتعوّذ منها و أشاح بوجهه :** رسول الله ﷺ د جهنم ذكر اوكړو ، نو دينه ئې پناه طلب كړه او مخ ئې واړولو گويا چه نبى كريم صلى الله دا وينى ، او ددې د تاو نه د بچ كيدو دپاره ئې مخ مبارك واړولو -

---

١) فتح البارى : ١٠\٥٤٩)

٢) ارشاد السارى : ١٣\٤٨ ، شرح ابن بطال : ٩\٢٢٤ ،فتح البارى : ١٠\٥٥٠)

٣) شرح ابن بطال : ٩\٢٢٤ ، ارشاد السارى : ١٣\٤٨ ، فتح البارى: ١٠\٥٥٠)

٤) صحيح البخارى و كتاب الجهاد ، باب فضل من حمل متاع صاحبه فى السفر ( رقم الحديث ٢٨٢٧ )

## ٣٥=بَاب الرِّفْقِ فِي الْأَمْرِ كُلِّهِ

[٥٦٧٨] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ دَخَلَ رَهْطٌ مِنْ الْيَهُودِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكُمْ قَالَتْ عَائِشَةُ فَفَهِمْتُهَا فَقُلْتُ وَعَلَيْكُمْ السَّامُ وَاللَّعْنَةُ قَالَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْلًا يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الرِّفْقَ فِي الْأَمْرِ كُلِّهِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قُلْتُ وَعَلَيْكُمْ [ر:٢٧٧٧]

[٥٦٧٩] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ أَعْرَابِيًّا بَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَامُوا إِلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزْرِمُوهُ ثُمَّ دَعَا بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ فَصُبَّ عَلَيْهِ [ر:٢١٦]

**په هره معامله کښې نرمي کول پکار دی:** رفق ( د راء په کسره او د فاء په سکون سره ) نرمئ ته وائی ، روايت دباب کښې دی چه د يهودو يو جماعت نبی کريم ﷺ ته راغلو او وې ويل : **السام علييکم** " ( په تا دې مرګ نازل وی ) حضرت عائشه فرمائی څه په دې پوهه شوم نو ما اوويل : " **وعليکم السام واللعنة** " رسول الله ﷺ اوفرمائل : صبر عائشه الله جل شانه په هره معامله کښې نرمی خوښوی ، ما عرض اوکړو ، اے د الله رسوله تاسو د دوی کلام واونه ريدلو ، رسول الله ﷺ اوفرمائل : ما خو هم " وعليکم " اوويلې -

د باب دويم روايت کښې دی چه يو بانډيچی په جمات کښې متيازې کول شروع کړل ، خلق دده د بندولودپاره ور ورانډې شو ،نوحضور ﷺ اوفرمائل : دې د متيازو کولو نه مه بندوئ، بيا ئې يو ډولچه اوبه را اوغوښتلې اوپه دې ئې واړولې ،**لاتزرموه : داد إزرام باب افعال نه دې - د ازرام معنی د معنی د قطع ( بندولو ) ده يقال : زرم البول إذا انقطع ، وأزرمته : قطعته**

## ٣٦=بَاب تَعَاوُنِ الْمُؤْمِنِينَ بَعْضِهِمْ بَعْضًا

[٥٦٨٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي جَدِّي أَبُو بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَبِي مُوسَى عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا ثُمَّ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا إِذْ جَاءَ رَجُلٌ يَسْأَلُ أَوْ طَالِبُ حَاجَةٍ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ اشْفَعُوا فَلْتُؤْجَرُوا وَلْيَقْضِ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ مَا شَاءَ [ر:٤٦٧]

رسول الله ﷺ فرمائلي دی ، يو مؤمن د بل مؤمن دپاره په شان د عمارت دې چه د هغې يو حصه بلې حصې لره مضبوطوی او دوی د ( پوهولو دپاره ) د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې ورکړې -

" یشد بعضه بعضا " کښې " بعضا " د " یشد " دپاره مفعول به دې ، خو علامه کرمانی فرمائی : دا منصوب په نزع د خافض دې ، أی یشد بعضه ببعض - (۱)

علامه ابن بطال فرمائی : " تعاون المؤمنین بعضهم بعضا فی أمور الدنیا و الآخرة مندوب إلیه بهذا الحدیث ، و ذلك من مکارم الأخلاق ، وقد جاء فی حدیث آخر عن النبی صلی الله علیه و سلم " الله فی عون العبد ، ما دام العبد فی عون أخیه " (۲)

یعنی ددې حدیث په بناء باندې د مسلمانانو د یو بل سره په دنیوی او په اخروی کارونو کښې تعاون کول یو مندوب او مستحب امر دې او دا دښو اخلاقو یو حصه ده ، یو بل حدیث کښې راغلې دی چه تر یو بنده د خپل رور په امداد او تعاون کښې مصروف وی نو الله تعالی ددې بنده امداد کوی -

**قوله: ثم شبك بین أصابعه:** رسول الله ﷺ د یو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې واچولې - او وې فرمائل مؤمنان د یو بل سره داسې لګیدلې او تړلې شویدی ..... دینه دا هم معلومه شوه چه کومه خبره کښې مبالغه مقصود وی نو د دې د پوهولو دپاره په لاس وغیره سره اشاره او حرکت کولې شی دې دپاره چه اوریدونکی په دې ښه پوه شی ، حافظ ابن حجر رحمه الله لیکی : " و یستفاد منه أن الذی یرید المبالغة فی بیان أقواله یمثلها بحرکاته لیکون أوقع فی نفس السامع " (۳) و کان النبی صلی الله علیه و سلم جالسا إذ جاء رجل یسأل أو طالب حاجة ، أقبل علینا بوجهه ، فقال : اشفعوا ....(۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دې عبارت کښې اشکال دې ، ځکه چه مقصود په دې سره د رسول الله ﷺ دا معمول خودل دی چه کله به دوی ناست وو او یو سائل به راغلو نو دوی به فرمائل د ده دپاره سفارش اوکړئ .... حال دا دې د دې عبارت نه دا د یو ځل واقعه معلومیږی .... حافظ فرمائی چه کیدې شی چه اصل کښې " کان إذا کان جالسا ... " وو (یعنی چه کله به هم دوی تشریف فرما وو ) خو راوی " کان إذا " د اختصار د وجه نه حذف کړو - (۵)

ابونعیم روایت نقل کړیدې ، د ده الفاظ دی "کان رسول الله صلی الله علیه و سلم إذا جاءه السائل أو طلبت إلیه حاجة ، قال : إشفعوا تؤجروا " (۶)

---

(۱) شرح الکرمانی ۲۱\۱۷۹ )

(۲) شرح ابن بطال : ۹\۲۲۷ )

(۳) فتح الباری : ۱۰\۵۵۲ )

(۴) فتح الباری : ۱۰\۵۵۲ )

(۵) فتح الباری : ۱۰\۵۵۲ )

(۶) صحیح البخاری ، کتاب الزکاة ، باب التحریض علی الصدقة و الشفاعة فیها ( رقم الحدیث : ۴۶۷ )

دا عبارت بالكل بې ګرده او بې غباره دې
د حديث شريف حاصل دا دې چه رسول الله ﷺ ته به كله هم څوك سائل راغلو يا به ورته څوك حاجتمند راغلو نو دوى به حضرات اصحابو ته فرمائل چه تاسو دده سفارش اوكړې نو تاسو ته به هم ( ددې سفارش كولو ) اجر ملاو شى ، برابره خبره ده چه د ستاسو سفارش قبول شى او كه نه ، بهر حال تاسو ته به د سفارش كولو اجر ملاويږى -
اشفعوا فلتوجروا ..... ديكښې لام ، لام كې دې أى اشفعوا كي توجروا ، فاء ديكښې زياتى ده - [1]
علامه كرمانى فرمائى چه دا فاء سببيه ده او د لام كي په معنى دې او فاء سببيه او لام كي دواړه جمع كيدې شى - [2]
شارح د مشكاة علامه طيبى رحمه الله د دې په تشريح كښې فرمائى : يعنى إذا عرض صاحب الحاجة على اشفعوا له ، فإنكم إذا شفعتم له إلخ اى إذا عرض المحتاج حاجته على فاشفعوا له إلخ ، حصل لكم بتلك الشفاعة أجر، سواء قبلت شفاعتكم أو لم تقبل ، و قوله : "يقضى الله على لسان رسوله " أى يجرى على لسانى ما شاء الله ، إن قضيت حاجة من شفاعتكم له ، فهو بتقدير الله ، وإن لم أقض فهو أيضًا بتقدير الله [3]
يعنى چه كله هم يو حاجتمند خپل څه حاجت وړاندې كړى نو تاسو دده سفارش اوكړئ ، د سفارش په وجه به تاسو ته اجر ملاويږى ، برابره خبره ده چه د ستاسو سفارش قبول شى او كه نه ، الله جل شانه ځما په ژبه به هغه څه جارى كوى چه كوم د الله مشيت ( اراده ) وى ، د ستاسو په سفارش كه څه د چا څه ضرورت پوره كړم نو دا هم په تقدير د الله تعالى سره او كه اونكړم نو دا به هم د الله تعالى په تقدير سره وي -
مقصد دا دې چه د سفارش قبليدل او نه قبليدل جدا خبره ده ، صرف په سفارش كولو هم د اجر استحقاق حاصليږى ، د حضرت ابن عباس نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايلې دى " من سعى لأخيه المسلم فى حاجة قضيت له أو لم تقض غفر له " [4] چه چا د خپل مسلمان رور د حاجت او د ضرورت پوره كولو دپاره كوشش اوكړو ، نو د ده به مغفرت اوشى ، برابره خبره ده چه دده حاجت پوره شو او كه او نشو -
حافظ ابن حجر د حديث نه آداب مستنبط كوى او ليكى : "وفى الحديث الحض على الخير بالفعل و بالتسبيب إليه بكل وجه ، و الشفاعة إلى الكبير فى كشف كربة و معونة ضعيف ، إذ ليس كل أحد يقدر على الوصول إلى الرئيس ، ولا التمكن منه ليلج عليه أو يوضح له مراده ليعرف حاله على وجهه ، وإلا فقد كان صلى الله

---

[1] ) ارشاد السارى : ۱۳\۵۱، فتح البارى : ۱۰\۵۵۳ )
[2] ) شرح البخارى للكرمانى : ۲۱\۱۷۹ )
[3] ) شرح الطيبى على مشكاة المصابيح ، كتاب الأدب ، باب الشفعة و الرحمة على الخلق : ۹\۱۷۱ ( رقم الحديث : ۴۹۵۶ )
[4] ) فتح البارى : ۱۰\۵۵۳ )

عليه وسلم لايحتجب" (١)

يعنى دې حديث كښې نيكې: كولو او ددې سبب جوړيدو ته ترغيب وركړې شويدې ، د چا بوج سپكولو يا د يو ضعيف سره امداد كولو دپاره چا لوې سړى ته د سفارش كولو هم ترغيب دې ، ځكه چه د هر سړې امير ته رسيدل نه وى دا رنګه امير ته تلل او د خپل مقصد صحيح بيان كول هم د هركس كارنه دې ، ګنى رسول الله ﷺ خو حاجب او دربان نه ساتلو.

**قوله: وليقض الله على لسان نبيه:** ليقض د لام سره هم دې او " ويقضى " د لام نه بغير هم دې ، صحيح مسلم په روايت كښې فليقض دې (٢) خو د صحيح مسلم په روايت كښې هم " وليقض " دې ) علامه قرطبى رحمه الله فرمايى :

"لايصح أن تكون هذه اللام لام الأمر، لأن الله لايؤمر، ولا لام كى إلا أنه ثبت فى الرواية، وليقض، بغيرياء مد، ثم قال: يحتمل أن تكون بمعنى الدعاء: اللهم اقض أو الأمر هنا بمعنى الخبر" (٣)

يعنى " وليقض " كښې لام ، لام امر نه شى كيدې ، ځكه چه كُه دا لام امر اوګرځولې شى او د امر صيغه فرض كړې شي نو ترجمه به ئې دا وى " الله لره پكار دى چه دې فيصله اوكړى .... " او الله مامور نه شى كيدې ، او دا " لام كَي " هم نه شى كيدې ځكه دې صورت كښې ئې څه مطلب نه جوړيږى ، خو روايت كښې هم دارنګه ثابت دى ، خو د امر په صورت كښې دا په دعا حمل كيدې شى ، " وليقض الله .... " د " اللهم اقض ... " په معنى كښې به وى او دا احتمال هم شته چه امر د خبر په معنى كښې شى -

## ٣٧=بَابُ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى مَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَهُ نَصِيبٌ مِنْهَا وَمَنْ يَشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَكُنْ لَهُ كِفْلٌ مِنْهَا وَكَانَ اللّٰهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ مُقِيتًا

[النساء:٨٥] كِفْلٌ نَصِيبٌ قَالَ أَبُو مُوسَى كِفْلَيْنِ [الحديد:٢٨] أَجْرَيْنِ بِالْحَبَشِيَّةِ

[٥٦٨١] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدٍ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَتَاهُ السَّائِلُ أَوْ صَاحِبُ الْحَاجَةِ قَالَ اشْفَعُوا فَلْتُؤْجَرُوا وَلْيَقْضِ اللّٰهُ عَلَى لِسَانِ رَسُولِهِ مَا شَاءَ [ر:٦٧]

دسفارش دوه قسمونه دى يو سفارش حسنه او بل سفارش سيئه ، آيت كريمه كښې دى چه

---

١) فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٣)

٢) فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٣ وصحيح مسلم ، كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب استحباب الشفاعة فيما ليس بحرام : ٤ \ ٢٠٢٦ ( رقم الحديث : ٢٦٢٧ )

٣) فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٣)

کوم کس ښه سفارش اوکړی ، نو دده به دیکښې حصه وی ، او چه څوك بد سفارش اوکړی نو دده به هم دیکښې حصه وی -
شفاعت حسنه څو صورتونه دی ، په جائز او مباح امورو کښې د چا د نفع او د فائدې دپاره سفارش کول ، د نیکئ په کارونو کښې سفارش کول ، شفاعت حسنه دې ، او چا ته نقصان ورکولو دپاره سفارش کول ، په خلاف شرع کارونو کښې د چا دپاره سفارش کول په شفاعت سیئه کښې داخل دی - (١)
بعضو ویلې دی چه مسلمانانو ته دعا کول شفاعت حسنه او دوی ته خیرې کول شفاعت سیئه ده - (٢)
حضرت حسن بصری او قتاده کفل معنی په گناه او په وزر سره کړیده (٣) او امام ددې معنی په "نصیب" (حصې) سره بیان کړیده ، دا د ابوعبیده تفسیر دې - (٤)
**قوله: قال أبوموسى: كفلين: أجرين بالحبشية:** سورة حديد کښې دی (يؤتكم كفلين من رحمته) دې آیت کریمه کښې کفل د اجر په معنی دې ، حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمائی: چه د کفلين معنی په حبشی ژبه کښې د اجر ده ، ابن ابی حاتم دا تعلیق موصولاً نقل کړیدې - (٥)

## ٣٨ = بَاب لَمْ يَكُنْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا

[٥٦٨٢] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ سَمِعْتُ مَسْرُوقًا قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو حِينَ قَدِمَ مَعَ مُعَاوِيَةَ إِلَى الْكُوفَةِ فَذَكَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَمْ يَكُنْ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَقَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَخْيَرِكُمْ أَحْسَنَكُمْ خُلُقًا [ر: ٣٣٦٦]

[٥٦٨٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ يَهُودَ أَتَوْا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا السَّامُ عَلَيْكُمْ فَقَالَتْ عَائِشَةُ عَلَيْكُمْ وَلَعَنَكُمْ اللَّهُ وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ قَالَ مَهْلًا يَا عَائِشَةُ عَلَيْكِ بِالرِّفْقِ وَإِيَّاكِ وَالْعُنْفَ وَالْفُحْشَ قَالَتْ أَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوا قَالَ أَوَلَمْ تَسْمَعِي مَا قُلْتُ رَدَدْتُ عَلَيْهِمْ فَيُسْتَجَابُ لِي فِيهِمْ وَلَا يُسْتَجَابُ لَهُمْ فِيَّ [ر: ٢٧٧٧]

---

(١) اوگورئ الجامع لاحكام القرآن للقرطبى : ٥\٢٩٥)
(٢) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى : ٥\٢٩٥ ، عمدة القارى : ٢٢\١١٥)
(٣) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى : ٥\٢٩٥ ، شرح ابن بطال : ٩\٢٢٨ ، عمدة القارى : ٢٢\١١٥)
(٤) فتح البارى : ١٠\٥٥٣ ، عمدة القارى : ٢٢\١١٥)
(٥) عمدة القارى : ٢٢\١١٥)

رسول الله ﷺ ته نه د فحش خبرو كولو عادت وو او نه به دوى قصداً فحش خبرې كولې - فاحش هغه كس ته وائى چه فحش كلام كوى ، كوم يو عمل هم ، قول او وصف چه د خپل مقدار نه واوړى نو دا بد لګى ، ديته فحش ويلې كيږى خو عموماً دا د كلام دپاره استعماليږى ، داسې خبره چه د حد د اعتدال نه بهر وى نو ديته به فحش وائى ، متفحش باب د تفعل نه د اسم فاعل صيغه ده ، د باب تفعل يو خاصيت د تكلف دې ، متفحش يعنى په تكلف سره او په قصد سره فحش خبرې كوونكې - (١)

[٥٦٨٤] (٢) حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا أَبُو يَحْيَى هُوَ فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمْ يَكُنْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبَّابًا وَلَا فَحَّاشًا وَلَا لَعَّانًا كَانَ يَقُولُ لِأَحَدِنَا عِنْدَ الْمَعْتِبَةِ مَا لَهُ تَرِبَ جَبِينُهُ [ر:٥٦٩٩]

حضرت انس ؓ فرمائى چه رسول الله ﷺ كنځل كوونكې ، بدې خبرې كوونكې او لعنت كوونكې نه وو ، چه مونږ كښې به كله په يو كس غصه شو نو فرمائل به ئې ماله ترب جبينه (ده ته څه شويدى ، دده تندى دې په خاورو ككړ شى)

مَعْتَبَةٌ (د ميم په فتحه او د عين په سكون او دتا په فتحه او په كسره سره) ناراضګۍ ته وائى - (٣)

**قوله: ماله ترب جبينه:** د دې دوه مطلبه كيدې شى ، يو خو دا چه دا د خيرو دپاره دې او مطلب ئې دا دې چه دې را اوغورزيږى دې دپاره چه دده تندى د خاورو شى .... خو ددې حقيقى معنى مراد نه اخستې كيږى بلكه دا د غصه او د ناراضتيا په وخت دا جمله عموما استعماليږى -

او دا د عبادت دپاره په دعا هم محمول كيدې شى يعنى ده ته دې په كثرت سره د مونځونو كولو توفيق ملاو شى چه د هغې په نتيجه كښې به د ده تندې په خاورو ككړ وى - (٤)

خو ړومبې مطلب زيات قرين سياق او راجح دې -

دا حديث دلته امام بخارى رحمه الله په ړومبى ځل ذكر كړيدې ، صحيح بخارى كښې دينه وړاندې دا چرته نه دې تير شوې -

...

١) شرح الطيبى باب فى اخلاقه و شمائله صلى الله عليه و سلم ، الفصل الثانى : ١١ \ ٣٦ ( رقم الحديث : ٥٨٢٠ ) عمدة القارى : ٢٢ \ ١١٦ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٥ )

٢) ٥٦٨٤ ) هذا الحديث من افراد الامام البخارى ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١١٧ ، و اخرجه ايضا فى كتاب الادب ، باب ما ينهى من السبابّ و اللعن : رقم الحديث : ٥٦٩٩ )

٣) عمدة القارى : ٢٢ \ ١١٧ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٥٤ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٦ )

٤) ارشاد السارى : ١٣ \ ٥٤ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١١٧ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٥٦ )

[۵۶۸۵] (۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاءٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا رَآهُ قَالَ بِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ وَبِئْسَ ابْنُ الْعَشِيرَةِ فَلَمَّا جَلَسَ تَطَلَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطَ إِلَيْهِ فَلَمَّا انْطَلَقَ الرَّجُلُ قَالَتْ لَهُ عَائِشَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ حِينَ رَأَيْتَ الرَّجُلَ قُلْتَ لَهُ كَذَا وَكَذَا ثُمَّ تَطَلَّقْتَ فِي وَجْهِهِ وَانْبَسَطْتَ إِلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ مَتَى عَهِدْتِنِي فَحَّاشًا إِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللَّهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ شَرِّهِ [ر: ۵۷۰۷، ۵۷۸۰]

د عمرو بن عیسی کنیت ابو عثمان دې ، صحیح بخاری کښې د دوی صرف دوه روایتونه دی یو دا او یو په مناقب کښې تیر شویدې - (۲)

د ده د شیخ محمد بن سوَاء هم په صحیح بخاری کښې صرف دوه روایتونه دی یو دا او یو په مناقب کښې تیر شویدې - (۳)

روایت د باب کښې حضرت عائشه فرمائي : چه یو سړی د رسول الله ﷺ نه د دننه راتللو اجازت اوغوښتلو ، چه کله دوی ﷺ دې اولیدلو نو وې فرمائل دا د قبیلې بد رور یا بد خوې دې - چه کله دې کښیناستو نو دوی ورسره په روڼ تندی او په روښانه مخ ملاو شو ، چه کله دا سړې لاړو نو حضرت عائشه دوی نه تپوس اوکړو ، چه اے د الله رسوله چه کله تاسو دا سړې اولیدو نو داسې داسې مو اوفرمائل (چه دا د قبیلې خراب سړې دې) بیا تاسو ده سره په روڼ تندی او په روښانه مخ ملاو شوئ ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائل : اے عائشه تا څه کله فحش ویونکې لیدلې یم ، د قیامت په ورځ به د الله په نزد د درجې په اعتبار په خلقو کښې بدترین هغه کس وی چه خلق ده لره د ده د شر په وجه پریږدی " -

**قوله: إِنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ ...:** ابن بطال ، قاضی عیاض ، قرطبی او امام نووی وائی چه دا سړې غیینه بن حصن وو - (۴)

امام مالك د حضرت عائشه نه یو روایت رانقل کړیدې دیکښې د دې تصریح ده - (۵)

---

(۱) ۵۶۸۵) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی كتاب الأدب ، باب ما يجوز من اغتياب أهل الفساد و الريب (رقم الحديث : ۵۷۰۷) و أخرجه ديضا فی كتاب الأدب ، باب المدارة مع الناس (رقم الحديث : ۵۷۸۰) و أخرجه مسلم فی كتاب الفضائل ، باب مدارة من يتقی فحشه : ۴\۲۰۰۲ (رقم الحديث : ۲۵۹۱) و أخرجه الترمذی فی كتاب البر و الصلة ، باب ما جاء فی المدارة :۴\۳۵۹ (رقم الحديث : ۱۹۹۶) و أخرجه أبوداود فی كتاب الأدب ، باب فی حسن العشرة : ۴\۲۵۱ (رقم الحديث : ۴۷۹۱)

(۲) ارشاد الساری : ۱۳\۵۵ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۱۷ ، فتح الباری : ۱۰\۵۵۶)

(۳) ارشاد الساری : ۱۳\۵۵ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۱۷ ، فتح الباری : ۱۰\۵۵۶)

(۴) عمدة القاری : ۲۲\۱۱۷ ، فتح الباری : ۱۰\۵۵۶ ، ارشاد الساری : ۱۳\۵۵ ، شرح مسلم للنووی ، كتاب البر و الصلة ، باب مدارة من يتقی فحشه : ۲\۳۲۲)

(۵) دا روایت امام مالك په خپل موطاء کښې (کتاب حسن الخلق ، باب ما جاء... [بقیه برصفحه آئنده....

د حضرت عائشه یو بل روایت کښې دی چه دا سړې مخرمه بن نوفل وو ، دا په تعدد د واقعاتو سره محمول کیدې شی - (۱)

**قوله: فلما جلس تطلّق** :تطلق د باب د تفعل نه د واحد مذکر غائب صیغه ده أی أبدی له طلاقة وجهه : (۲) یعني دوی ﷺ ده ته خوشحالي او رونړ تندی والي ښکاره کړو -

حضرت عائشه ﷺ ته د رسول الله ﷺ په رویه تعجب اوشو چه دوی ﷺ خو ده ته د قبیلې بدتر سړې اوویلې ، او دینه پس په دوران د ملاقات کښې ئې ورسره په خوشحالي او په خندا ملاقات اوکړو د مسند احمد په روایت کښې دی چه په دې موقعه یو بل سړې راغلو نو دوی ﷺ اوفرمائل "نعم بن العشیرة" (۳) (دا د قبیلې ښه سړې دې ) خو چه کله دوی ﷺ د ده سره ملاو شو نو د زیاتې خوشحالۍ اظهار ئې اونکړو .... څکه حضرت عائشه د حضور نه تپوس اوکړو ، نو دوی اوفرمائل : عائشه تا څه کله فحش ویونکې لیدلې یم ؟ .... مقصد دا وو چه د سړي د خراب کیدو مطلب دا نه دې چه ده سره دې ملاقات کولو کښې تریخوالې او د بې توجهۍ اظهار اوکړې شی -

**د حدیث نه مستنبط فائدې** : دې حدیث نه یو خبره خو دا معلومه شوه چه کُه یو سړې بد اخلاق او خراب وی نو چه د ده د خرابتیا نه د خلقو د خبرولو دپاره ده ته خراب اوویلې شی نو دا د حرام غیبت په زمره کښې نه راځی په شرط د دې چه کُه دا یره وی چه کُه خلق په ده خبر نه وی نو دې به په بې خبرۍ کښې خلقو ته دهوکه ورکړی - (۴) دویمه خبره دا معلومه شوه چه د یو خراب سړی د خرابۍ بیانولو نه پس ده سره د ملاقات په وخت د خوش اخلاقۍ مظاهره کول په نفاق کښې داخل نه دې - (۵)

دریمه خبره دا معلومه شوه چه د بداخلاقه او د فاسق سړي د شر نه د محفوظ پاتې کیدو دپاره او دې دین ته رانزدې کولو دپاره ظاهرا مدارات او د حسن اخلاق مظاهره کول پکار دی په شرط د دې چه حد د مداهنت ته سړې اونه رسوی - (۶)

مدارات او مداهنت کښې فرق دا دې چه مدارات دیته وائی چه دنیا څه د دنیوی یا د دینی فائدې او د اصلاح دپاره استعمالول او مداهنت دیته وائی چه د دنیا دپاره دین پریږدې ،

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] فی حسن الخلق : ۲\۹۰۳) کښې ذکر کړیدې خو دیکښې د نوم تصریح نشته دې ، خو حافظ ابن حجر د بلاغات امام مالك په حواله سره ددې تصریح کړیده فتح الباری : ۱۰\۵۵۶)

(۱) فتح الباری : ۱۰\۵۵٤ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۱۷ )

(۲) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ )

(۳) مسند الإمام أحمد بن حنبل ، مسانید عائشة : ۶\۱۵۸ )

(۴) رد المختار علی الدر المختار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی البیع : ۵\۲۹۰ ، فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۱۸ )

(۵) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۱۸ ، شرح مسلم للنووی ، کتاب البر والصلة ، باب مداراة من یتقی فحشه : ۲\۳۲۲ )

(۶) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ )

مدارات مباح او په بعض صورتونو کښې مستحب دي او مداهنت حرام او ناجائز دې - ([1])
علامه قرطبی د حدیث د باب د واقعه په باره کښې لیکی :

" والنبی ﷺ إنما بذل له من دنیاه حسن عشرته ، و الرفق فی مکالمته ، و مع ذلك فلم یمدحه بقول ، فلم یناقض قوله فیه فعله ، فإن قوله فیه قول حق ، و فعله معه حسن عشرة " ([2])

یعنی رسول الله ﷺ ده سره حسن سلوك او په خبرو کښې د شفقت او د نرمئ مظاهره اوکړه ، خو دې سره دوی ﷺ دده تعریف په ژبه نه دې کړې ، نو دارنګه د ده قول او عمل کښې څه تناقض رانغلو ، د ده باره کښې زبانی رائې او قول په خپل ځائې حق وو خو بیا هم د ملاقات په وخت دوی سره نرم رویه اوساتله چه ګوم د حسن معاشرت د قبیلې نه وو -
قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه عیینه دغه وخته پورې اسلام نه وو قبول کړې ، دې وجه نه " بئس أخو العشیرة " ویل په غیبت کښې داخل نه دی یا ئې اسلام قبول کړې وو خو دې په اسلام کښې کمزورې وو ، دوی ﷺ ددې باره کښې وضاحت اوکړو چه هسې نه څوك د ده په مسلمان کیدوسره په دهوکه کښې مبتلاء نه شی ، لکه چه د رسول الله ﷺ په ژوند کښې او دوی نه پس ده نه به داسې کارونه صادریدل چه دده د اسلام په ضعف دلیل وو - ([3])

## ۳۹=بَاب حُسْنِ الْخُلُقِ وَالسَّخَاءِ وَمَا يُكْرَهُ مِنْ الْبُخْلِ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَجْوَدَ النَّاسِ وَأَجْوَدُ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ [ر:٦] وَقَالَ أَبُو ذَرٍّ لَمَّا بَلَغَهُ مَبْعَثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَخِيهِ ارْكَبْ إِلَى هَذَا الْوَادِي فَاسْمَعْ مِنْ قَوْلِهِ فَرَجَعَ فَقَالَ رَأَيْتُهُ يَأْمُرُ بِمَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ [ر:٣٦٤٨]

ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله د درې جزءو ذکر کړیدې ، یو د حسن خلق یعنی ښه اخلاق ، د اخلاقو نه مراد هغه اوصاف مراد دی چه هغې سره انسان د نورو سره معامله کوی ، دا ښه هم وی او بد هم لکه عفو ، صبر ، رونړ تندې ، سخاوت ، ..... دا اخلاق حسنه دی ، بخل ، ترش والې ظلم وغیره اخلاق قبیحه دی - ([4])
سخا ، سخاوت ته وائی یعنی بغیر د څه د عوض نه خپل مال خرچ کول ، بخل ددې ضد دې - " ما یکره من البخل " کښې امام بخاری رحمه الله اشاره اوکړه چه د بخل بعض صورتونه چه په هغې د بخل اطلاق کیږی هغه په مذموم بخل کښې داخل نه دی - ([5])
حضرت ابن عباس فرمائی : چه رسول الله ﷺ په ټولو خلقو کښې زیات سخی وو ، او د رمضان په میاشت کښې به دوی نورهم زیات سخی کیدلو ، دا تعلیق امام بخاری رحمه الله

---

[1]) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ )
[2]) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ )
[3]) فتح الباری : ۱۰\۵۵۷ )
[4]) فتح الباری : ۱۰\۵۵۸ . عمدة القاری : ۲۲\۱۱۸ )
[5]) فتح الباری : ۱۰\۵۵۸ . عمدة القاری : ۲۲\۱۱۸ . ارشاد الساری : ۱۳\۵۶ )

په كتاب الايمان كښې موصولاً نقل كړيدې او هلته ددې تشريح هم تيره شويده - (۱)

**قوله: وقال ابوذر لما بلغه مبعث النبى صلى الله عليه وسلم.....:** د حضرت ابوذر غفارى رضى الله عنه بيان دې چه كله ده ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مبعوث كيدو خبر ملاو شو نو ده خپل رور ته اوويل : چه دغه وادى ته لاړ شه او دده خبرې واوره ، نو چه كله دې واپس راغلو نو ده اوويل چه ما د ده نه د ښو اخلاقو حكم وركول واوريدل او اومې ليدلو ، دا تعليق امام بخارى رحمه الله په تفصيل سره په " المبعث النبوى " كښې موصولاً نقل كړيدې - (۲)

مكارم : مكرمة ( د راء په ضمه سره ) جمع ده ښو اخلاقو ته وائى - (۳)

[۵۶۸۶] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ وَأَجْوَدَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَانْطَلَقَ النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ سَبَقَ النَّاسَ إِلَى الصَّوْتِ وَهُوَ يَقُولُ لَنْ تُرَاعُوا لَنْ تُرَاعُوا وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِي عُنُقِهِ سَيْفٌ فَقَالَ لَقَدْ وَجَدْتُهُ بَحْرًا أَوْ إِنَّهُ لَبَحْرٌ [ر: ۲۴۸۴]

حضرت انس رضى الله عنه فرمائى چه يو شپه ( په څه اواز اوريدو سره ) اهل مدينه اويريدل ، خلق ددې اواز طرف ته روان شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د خلقو استقبال اوكړو ( ځكه چه دوى صلى الله عليه وسلم تحقيق اوكړو او واپس راروان وو او خلق اوس وتل ) دوى صلى الله عليه وسلم آواز طرف ته د خلقو نه وړاندې وتلې وو ، وې فرمائل چه د يرې خبره نشته دې ، دوى صلى الله عليه وسلم د حضرت ابو طلحه رضى الله عنه په برينډ اس بغير د زينه سور وو ، او په غاړه كښې ئې توره وه او فرمايل ئې ما دا سمندر بيا موندلو يا هغه سمندر دې -

**قوله: لم تُراعوا لم تُراعوا:** ديكښې " لم " د " لا " په معنى دې ، نفى د نهى په معنى كښې ده أى لاتراعوا... د ابوذر نه علاوه په باقى نورو نسخو كښې " لن تراعو " دې - (۴)

عرى ( د عين په ضمه او د راء په سكون سهر ) دا د فرس صفت دې ، د برينډې ملا والا آس ماعليه سراج د ا ددې تفسير دې -

**قوله: لقد وجدته بحرا:** ديكښې دوه احتماله دى يو دا چه ضمير " صوت " ته راجع وى او مطلب به ئې دا وى چه دا آواز د سمندر وو ، د دښمن اواز نه وو - (۵)

دويم دا چه ضمير " فرس " ته راجع وى چه ما دا آس د سمندر په شان په تلو كښې فراخ او

---

(۱) صحيح البخارى كتاب بدء الوحى ( رقم الحديث : ۶ ) د حديث د تشريح دپاره كشف البارى باب بدء الوحى : ۱\۴۶۱ اوګورئ )

(۲) صحيح البخارى وباب اسلام ابى ذر رضى الله عنه ( رقم الحديث : ۳۸۶۱ )

(۳) فتح البارى : ۱۰\۵۶۰ ، ارشاد السارى : ۱۳\۵۶ )

(۴) ارشاد السارى : ۱۳\۵۷ )

(۵) لم آجده فيما بين يدى من المصادر )

وسيع بيا موندو - (١)

[٥٦٨٧] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ مَا سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شَيْءٍ قَطُّ فَقَالَ لَا

**قوله: ما سئل النبي صلى الله عليه و سلم عن شيء قط فقال : لا** : يعنى د رسول الله ﷺ نه چه كله هم څه دنيوى څيز طلب به كړې شو نو دوى ﷺ " لا" ( نه ) كله هم نه ده ويلې ، بلكه كُه وركول به وو نو نعم ( ښه ) به ئې اوويل او كُه د څه عذر د وجه به ئې نه شو وركولې نوخاموشى به ئې اختياركړه، د ابن سعد يو روايت كښې ددې تصريح ده(٣)

[٥٦٨٨] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي شَقِيقٌ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو يُحَدِّثُنَا إِذْ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَإِنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِنَّ خِيَارَكُمْ أَحَاسِنُكُمْ أَخْلَاقًا [ر:٣٣٦٦]

[٥٦٨٩] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبُرْدَةٍ فَقَالَ سَهْلٌ لِلْقَوْمِ أَتَدْرُونَ مَا الْبُرْدَةُ فَقَالَ الْقَوْمُ هِيَ الشَّمْلَةُ فَقَالَ سَهْلٌ هِيَ شَمْلَةٌ مَنْسُوجَةٌ فِيهَا حَاشِيَتُهَا فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَكْسُوكَ هَذِهِ فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْتَاجًا إِلَيْهَا فَلَبِسَهَا فَرَآهَا عَلَيْهِ رَجُلٌ مِنَ الصَّحَابَةِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَحْسَنَ هَذِهِ فَاكْسُنِيهَا فَقَالَ نَعَمْ فَلَمَّا قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَامَهُ أَصْحَابُهُ قَالُوا مَا أَحْسَنْتَ حِينَ رَأَيْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مُحْتَاجًا إِلَيْهَا ثُمَّ سَأَلْتَهُ إِيَّاهَا وَقَدْ عَرَفْتَ أَنَّهُ لَا يُسْأَلُ شَيْئًا فَيَمْنَعَهُ فَقَالَ رَجَوْتُ بَرَكَتَهَا حِينَ لَبِسَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَلِّي أُكَفَّنُ فِيهَا [ر:١٢١٨]

حضرت سهل رضي الله عنه فرمائى چه يو ښځه نبى كريم ﷺ ته راغله او دې د ځان سره يو " برده " راوړه . سهل د خلقو نه تپوس اوكړو تاسو ته پته شته چه برده څه ته وائى ؟ خلقو اوويل : دا شمله ده . سهل اوويل : برده هغه شمله ( څادر ) ته وائى چه په هغه حاشې ( په غاړو گلكارى ) جوړې شوې وى ، دې ښځې عرض اوكړو ، اے د الله رسوله ، څه دا تا ته اغوستل غواړم ، نبى كريم ﷺ د يو ضرورت مند كس په شان دا ( ډيره په مينه ) واخستو او وائې غوستو ، حضرات اصحابو كښې يو كس دا اوليدلو نو وې ويل : اے د الله رسوله ! دا

---

(١) التعليق الصبيح ، باب فى اخلاقه و شمائله صلى الله عليه و سلم : ٧\٩٢، شرح الطيبى ، باب فى اخلاق و شمائله صلى الله عليه و سلم،الفصل الاول: ١١\٣٠ ، عمدة القارى : ٢٢\١١٩ ، ارشاد السارى : ١٣\٥٧)

(٢) ٥٦٨٧ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب ما سئل رسول الله صلى الله عليه و سلم قط ، فقال : لا ، و كثرة عطائه : ٤\١٨٠٥ ( رقم الحديث : ٢٣١١ ) و أخرجه الترمذى فى الشمائل ، باب ما جاء في خلق رسول الله صلى الله عليه و سلم : ٢٤ )

(٣) ارشاد السارى : ١٣\٥٧ وفتح البارى : ١٠\٥٦١)

ځومره ښائسته دې ، تاسو دا ما ته راکړئ ، دوی ﷺ اوفرمائل : ښه ده ، نو چه کله رسول الله ﷺ پاځيدو ( او دننه ئې تشريف يوړو ) نو اصحابو دې ملامته کړو ، او ورته ئې اوويل : دا تا ښه اونکړل ، چه کله تا اوليدلو چه نبی کريم ﷺ دا څادر قبول کړو او دوی ﷺ ته ددې ضرورت هم وو خو تا سره د دې د دوی نه څادر اوغوښتلو ، حال دا دې چه تا ته معلومه هم ده چه حضور ﷺ نه چه کله څه څيز اوغوښتې شی نو دوی ﷺ انکار نه کوی ، دې صحابی عرض اوکړو چه کله رسول الله ﷺ دا واغوستو نو څه د دې د برکت اميدوار شوم ، چه کيدې شی دا څه خپل کفن جوړ کړم -

**قوله: جاءت إمرأة:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د دې ښځې نوم ما ته معلوم نه شو - (١)

**قوله: هي شملة منسوجة فيها حاشيتها:** شمله څادر او پټو ته وائی ، اصل کښې شمله هر هغه جامې ته وائی چه هغه اغوستې کيږی خو بيا دا د څادر او د شړئ دپاره استعماليدل شروع شو ، يعنی دا داسې څادر وو چه ديکښې حاشيې جوړې شوې وې ، ددې حاشې نه وې پرې کړې شوې ، يا مطلب دا دې چه دا بغير د زونډو نه وو تر اوسه پورې ديکښې زونډی نه وو جوړ شوې ، علامه قسطلانی رحمه الله ليکی :

"أی لم تقطع من ثوب فتكون بلا حاشية ، أو أنها جديدة لم يقطع هدبها ، وفی تفسير البردة بالشملة تجوز لأن البردة كساء ، والشملة ما يشتمل به ، لكن لما كثر استعمالهم لها ، أطلقوا عليها إسمها " (٢)

**قوله: فرآها عليه رجل:** دا سړې څوك وو ؟ په بعض روايتونو كښې دی چه دا حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه وو او بعضو كښې دی چه دا حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه وو (٣)

[٥٦٩٠] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيَنْقُصُ الْعَمَلُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قَالُوا وَمَا الْهَرْجُ قَالَ الْقَتْلُ الْقَتْلُ [ر: ٦٦٥٢، وانظر: ٩٨٩، ٣٤١٣]

رسول الله ﷺ فرمائی ، زمانه به قريبه شی ، عمل ( صالح ) به کم شی ، بخل به زيات شی او د هرج به کثرت وی ، خلقو اوويل : هرج څه څيز دې وې فرمائل قتل قتل -

**د يتقارب الزمان مطلب :** ① علامه توربشتی رحمه الله په شرح د مصابيح کښې فرمائی چه د " يتقارب الزمان " نه د قيامت نزديکت مراد دې يعنی د دنيا او د آخرت زمانه ديو بل سره به نزدې شی - (٤)

---

(١) ارشاد الساری : ١٣\٥٨ ، فتح الباری ، کتاب الجنائز ، باب من استعد الکفن فی زمن النبی صلی الله عليه و سلم : ٣\١٤٣)

(٢) ارشاد الساری : ١٣\٥٨ )

(٣) ارشاد الساری : ١٣\٥٨ )

(٤) مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ١٠\١٢٠ و شرح الطيبی : کتاب الفتن ....[بقيه برصفحه آئنده....

④ ملا علی قاری رحمه الله فرمائی : د " یتقارب الزمان " دا معنی هم کیدې شی چه شر او فساد کښې به زمانه د یو بل سره نزدې شی ، فسادات به ډیر زیات وی او مسلسل به وی ، په مینځ کښې به ئې بندیز ډیر کم راځی - (۱)

④ بعض وایې چه دینه د خلقو د عمرونو کمی ته اشاره ده یعنی د اهل زمانه عمرونه به کم وی ، اوږده عمرونه به نه لری - (۲)

④ بعض وائی چه دینه د زمانې د برکت قلت ته اشاره ده چه د زمانې نه به برکت اوچت شی او وخت به ډیر زر تیریږی - (۳)

د یو حدیث نه ددې تائید هم کیږی چه هغې کښې دی چه د قیامت سره نزدې وخت به داسې بې برکته شی چه کال به په شان د میاشت ، او میاشت به په شان د هفتې او هفته به په شان د ورځ تیریږی او محسوسیږی -(۴) په یتقارب الزمان سره دې بې برکتئ ته اشاره ده-

⑤ قاضی عیاض رحمه الله فرمایی ددې مطلب دا دې چه ښارونه به په تیزئ سره ورانیږی او صدئ به په تیز رفتارئ سره تیریږی - (۵)

**قوله: ویلقی الشحُّ:** شح بخل مع الحرص ته وائی ، یعنی بخل به د خلقو په زړونو کښې واچولې شی ، عالم به خپل علم کښې او دولتمند به خپل مال کښې بخل شروع کړی - (۶)

**قوله: ویکثرالهرج:** د هرج تشریح دلته حدیث کښې په قتل سره شویده ، صاحب قاموس لیکی چه د هرج الناس معنی دا ده **وقعوافی فتنة وقتل واختلاط**... (۷) دینه معلومه شوه چه هَرج هر قتل ته نه وائی بلکه هغه قتل ته وائی چه د څه فتنې په وجه وی -

ابن فارس په معجم مقاییس اللغة کښې د هرج معنی قتل او اختلاط بیان کړیدې ، علامه عینی او قسطلانی لیکلې دی چه ابن فارس ددې معنی د فتنې او د اختلاط کړیده ، خو معجم کښې دوی ددې معنی د قتل او اختلاط سره کړې ده - (۸)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] الفصل الأول : ۱۰\۵۶ ( رقم الحدیث : ۵۳۸۹ )

(۱) مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ۱۰\۱۲۰)

(۲) ارشاد الساری : ۱۳\۵۹ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۲۰ ، مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ۱۰\۱۲۰ )

(۳) مرقاة:کتاب الفتن،الفصل الأول:۱۰\۱۲۰ معالم السنن ، کتاب الفتن : ۶\۱۴۱ ( رقم الحدیث : ۴۰۸۸)

(۴) مسند الإمام أحمد بن حنبل ، مسانید أسماء بنت زید : ۶\۴۵۴ ، ۴۵۹ ، سنن ابن ماجة ، کتاب الفتن ، باب فتنة الدجال ... ۲\۱۳۵۶ ( رقم الحدیث : ۴۰۷۵ )

(۵) مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ۱۰\۱۲۰ )

(۶) مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ۱۰\۱۲۰ )

(۷) مرقاة : کتاب الفتن ، الفصل الأول : ۱۰\۱۲۰ ، القاموس المحیط ، فصل الهاء من باب لاجیم : ۲\۱۱۵)

(۸) عمدة القاری : ۲۲\۱۲۰ ، ارشاد الساری : ۱۳\۵۹ ، معجم مقاییس اللغة : باب الهاء و الراء و ما یثلثهما : ۶\۴۹ )

علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه هرج د حبشی ژبې لفظ دې ، او ددې معنی د قتل او د فتنې ده - (١)

د يلقى الشح په مناسبت سره امام دا حديث دلته ذکر کړو څکه چه د ترجمة الباب جزء ثالث و ما يكره من البخل دې -

[٥٦٩١] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ سَمِعَ سَلَّامَ بْنَ مِسْكِينٍ قَالَ سَمِعْتُ ثَابِتًا يَقُولُ حَدَّثَنَا أَنَسٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِينَ فَمَا قَالَ لِي أُفٍّ وَلَا لِمَ صَنَعْتَ وَلَا أَلَّا صَنَعْتَ [ر: ٢٦١٦]

**قوله:** خدمت النبي صلى الله عليه وسلم عشر سنين: دلته د بخاری په روایت کښې لس او د صحيح مسلم په روايت کښې نه کاله ذکر دی - (٢)

څو دواړو کښې تطبيق کيدې شی چه ټوله مُده د خدمت نه کاله او څو مياشتې دی ، په لسو والا روايت کښې ئې کسر پوره کړو او د نهو والا روايت کښې ئې کسر حذف کړو - (٣)

رسول الله ﷺ حضرت انس په دنيوى کارونو کښې کله هم نه دې رټلې او نه ئې ترينه دا تپوس کريدې چه دا کار دې ولې اوکړو او ولې دې اونکړو -

څو شرعی کارونو کښې به ئې د چشم پوشئ او بې پرواهئ نه کار نه اخستلو - (٤)

## ٤٠- بَاب كَيْفَ يَكُونُ الرَّجُلُ فِي أَهْلِهِ

[٥٦٩٢] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ الْحَكَمِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ الْأَسْوَدِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ فِي أَهْلِهِ قَالَتْ كَانَ فِي مِهْنَةِ أَهْلِهِ فَإِذَا حَضَرَتْ الصَّلَاةُ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ [ر: ٦٤٤]

علامه عينی رحمه الله ليکی

"أي هذا باب يذكر فيه كيف يكون حال الرجل في أهله يعني إذا كان الرجل في بيته بين أهله ، كيف يعمل من أعمال نفسه ، ومن أعمال البيت على ما يجيء في حديث الباب" (٥)

يعنی دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا خبره بيان کړيده چه سړې څنګه به په خپل اهل کښې اوسی او څنګه به د کور او خپل کار کوی ـ

روايت د باب کښې دی چه اسود بن زيد د حضرت عائشه نه تپوس اوکړو چه رسول الله ﷺ

---

(١) ارشاد السارى : ١٣ \ ٥٩ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٢٠ ، معالم السنن : ٦ \ ١٤٣ ( رقم الحديث : ٤٠٨٨ )

(٢) رواه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب كان رسول الله صلى الله عليه و سلم احسن الناس خلقا : ٤ \ ١٨٥٤ ( رقم الحديث : ٢٣٥٩ )

(٣) فتح البارى : ١٠ \ ٥٦٤ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٥٩ )

(٤) فتح البارى : ١٠ \ ٥٦٥ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٦٠ )

(٥) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٢١ )

به د خپل کور والا سره اوسيدلو نو څه به ئې کولو نو وې فرمائل چه دې به د خپل کور والا
په کار وغيره کښې مصروف وو ، چه کله به وخت د مانځه شو نو مانځه دپاره به اودريدو -
د مسند احمد په روايت کښې حضرت عائشه فرمائي " يخيط ثوبه ، و يخصف نعله ، و
يعمل ما يعمل الرجال فى بيوتهم (۱) خپلې جامې به ئې گنډلې ، خپل پانړار به ئې گنډلو
او هغه کارونه به ئې کول چه خلق په کورونو کښې کوي -
ابن حبان په خپل صحيح کښې دا حديث صحيح گرځولې دې (۲) او هم مسند احمد کښې د
حضرت عائشه يو بل روايت کښې دا الفاظ دی " ماکان إلا بشرا من البشر، كان يفلى ثوبه ، ويحلب
شاته ، ويخدم نفسه " (۳) د يفلى ثوبه لغوى معنى خو جامو کښې سپږې تلاش کول دی ، خو
بل حديث کښې دی چه د رسول الله ﷺ په جامو کښې به سپږې نه وې ، دې وجه نه دينه
هم داسې د جامو کتل مراد دی - (۴)
حديث د باب کتاب الصلاة کښې تير شويدې - (۵)
شارح بخاری علامه ابن بطال رحمه الله ليکی :

" أخلاق الأنبياء و المرسلين عليهم السلام التواضع و التذلل فى أفعالهم ، و البعد عن الترفة و التنعم ، فكانوا يمتهنون أنفسهم فيما يعن لهم ليسنوا بذلك فيسلك سبيلهم و تقتفى آثارهم وقول عائشة : " كان فى مهنة أهله " يدل على دوام ذلك من فعله متى عرض له ما يحتاج إلى إصلاحه ، لئلا يخلد إلى الدعة و الرفاهية التى ذمها الله و أخبر أنها من صات غير المؤمنين فقال تعالى (فذرني و المكذبين أولى النعمة و مهلهم قليلا) (۶)
يعنى د انبياء په اخلاقو کښې تواضع او عاجزی او د تعيش او د تنعم نه لرې والې داخل وی
، لکه چه دوی ته به کوم ضروريات راپيښيدل نو دا به دوی په خپله پوره کول ، دې دپاره
چه د دوی عمل د نورو دپاره سنت او نمونه جوړې شی ، چه خلق د دوی په طريقه روان شي،
او د دوی په آثارو او په نقش قدم تابعداری اوکړی ، د حضرت عائشه قول " كان فى مهنة أهله "
په دوام دلالت کوی ، چه حضور ﷺ ته به کله هم د څه څيز صحيح کولو او د جوړولو
ضرورت راپيښ شو نو دوی به په خپله دا جوړولو ، دا دې دپاره چه ده به ځان د آرام او د
اوزګارې نه ساتلو ، چه دهغې الله تعالى مذمت کړيدې، اودا ئې خودلې ده چه دا د مؤمنانو
صفت نه دې ، ارشاد ربانی دې " ته ما او انکار کوونکی خاوندان د مزو اخستو والا پريږده
او دوی ته څه لږ وخت دپاره مهلت ورکړه "

---

۱) مسند الإمام أحمد بن حنبل فى مسانيد عائشة : ۶\ ۱۲۱ )
۲) عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۲۱ )
۳) مسند الإمام أحمد بن حنبل فى مسانيد عايشة : ۶\ ۲۵۶ )
۴) التعليق الصبيح ، باب بدء الخلق و ذكر الانبياء : ۷\ ۹۷ )
۵) أخرجه البخارى فى كتاب الصلاة، باب من كان فى حاجة أهله فأقيمت الصلاة، فخرج(رقم الحديث:۶۷۶)
۶) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ۹\ ۲۳۴ )

## ۴۱=باب المقة من الله تعالى

[۵۶۹۳] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَحَبَّ اللَّهُ عَبْدًا نَادَى جِبْرِيلَ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ فَيُنَادِي جِبْرِيلُ فِي أَهْلِ السَّمَاءِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي أَهْلِ الْأَرْضِ [ر: ۳۰۳۷]

**مقة** په وزن د عدة محبت ته وايي (۱) د الله تعالى د طرفه د يو بنده سره محبت شروع كيږي نو دا بنده په فرشتو كښې بيا په انسانانو كښې مقبول او محبوب جوړيږي "المقة من الله" دا د حديث الفاظ دى چه كوم امام احمد او ابن ابى شيبه نقل كړيدى " المقة من الله، والصيت من السماء فإذا أحب الله عبدا ...." (۲) ( محبت د الله تعالى د طرفه او شهرت د اسمان د طرفه دې ، چه كله الله تعالى د يو بنده سره محبت اوكړى نو حضرت جبرائيل عليه السلام د ده د مقبوليت اعلان اوكړى .... ) دا روايت چه د امام بخارى رحمه الله په شرط نه وو ، نو دې وجه نه دې يې په ترجمة الباب كښې ذكر نه كړو -

**قوله: إذا أحب الله عبدا:** د صحيح بخارى د كتاب الرقاق په روايت كښې د بنده سره د الله تعالى د محبت كولو سبب بيان كړيدې ، ديكښې دى " لايزال عبدى يتقرب إلىّ بالنوافل حتى أحبه" (۳) ( څما بنده د نفلونو په ذريعه مسلسل ما ته نزديكت حاصلو تر دې چه څه ده سره محبت شروع كړم ) او مسند احمد كښې د حضرت ثوبان حديث دې " إن العبد ليلتمس مرضاة الله تعالى، ولا يزال بذلك فيقول الله عزوجل لجبريل : إن فلانا عبد يلتمس أن يرضينى ، ألا وإن رحمتى عليه ......" (۴) يوبنده مسلسل د الله تعالى د رضا په تلاش كښې وى ، تر دې چه الله تعالى جبرائيل عليه السلام ته اووائى چه فلانې بنده څما د رضا په تلاش كښې دې ، واوره ، په ده باندې څما رحمت خور دې )

**قبول** ( د قاف په فتحه سره ) مصدر دې ، بعض اهل لغت ليكى چه په دې وزن د قاف په فتحه سره د " قبول " نه علاوه بل لفظ مونږ ته نه دې ملاو شوې ، علامه ابن منظور افريقى په " لسان العرب " كښې د دې تصريح كړيده - (۵) خو ابن برى دا رد كړيدې او ليكى چه په دې وزن باندې څلور نور مصدرونه هم شته دې فرمائى : وقد جاء الوضوء، والطهور، والولوع، و

---

۱) النهاية لابن الاثير : ۴\۳۴۸)
۲) فتح البارى : ۱۰\۵۶۶)
۳) أخرجه البخارى فى كتاب الرقاق ، باب من أحب لقاء الله أحب الله لقاءه ( رقم الحديث : ۶۵۰۷)
۴) مسند الإمام أحمد بن حنبل مسانيد ثوبان : ۵\۲۷۹)
۵) لسان العرب ، مادة " قبل " : ۱۱\۴۴۰ ،

الوقود، عدتها مع القبول خمسة) قرآن كريم كښې دى (فتقبلها ربها بقبول حسن)[1]
دمعتمر روايت كښې د "قبول" په ځائې د "محبت" لفظ دې ذكر دى "فيوضع له المحبة"[2]
حاصل دا چه كله الله تعالى د يو بنده سره د ده د اطاعت او د بندګئ په وجه محبت كوى نو مخلوق كښې هم دا بنده د الله په حكم او په فيصله سره محبوب جوړ شى ، د الله د محبت مطلب دا دې چه الله تعالى ده سره د خير او د نيكئ اراده اوكړى ، د فرشتو محبت ده دپاره د استغفار په صورت ښكاره كيږى ، او د خلقو محبت ، د عقيدت او د تعلق په صورت وړاندې راځى[3] د قرآن كريم يو آيت دېته اشاره كوى (إن الذين آمنوا وعملوا الصالحات سيجعل لهم الرحمن ودًّا)[4]
د صحيح مسلم په روايت كښې دا اضافه هم شته چه الله كله د يو بنده نه نفرت كوى نو حضرت جبريل اوبلى او ده دپاره په اسمان والا او په زمكه والا كښې د نفرت اعلان اوكړې شى "ثم توضع له البغضاء في الأرض"[5]
حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى :

"وحقيقة المحبة عند أهل المعرفة من المعلومات التى لا تحد ، وإنما يعرفها من قامت به وجدانا لا يمكن التعبير عنه ، و الحب على ثلاثة أقسام : إلهى و روحانى و طبيعى ، وحديث الباب يشتمل على هذه الأقسام الثلاثة ، فحب الله العبد حب إلهى ، وحب جبريل و الملائكة له حب روحانى ، وحب العباد له حب طبيعى"[6]
دې حاصل دا دې چه د محبت حقيقت يو وجدانى څيز دې ، په لفظونو كښې ددې څه يو متعين تعريف نه شى كيدې ، د محبت درې قسمه دى ، الهى ، روحانى او طبعى ، حديث د باب درې واړو باندې مشتمل دې د الله تعالى د بنده سره محبت كول محبت الهى دې ، د جبريل او د فرشتو ددې بنده سره محبت كول محبت روحانى دې او د خلقو ده سره محبت كول محبت طبعى دې - خو د بندګانو هغه محبت معتبر دې چه كوم په اهل علم وفضل او نيكانو كښې موندې كيږى ، كُه كوم يو كس چه فاسق او فاجر وى هغه په خلقو كښې محبوب كيږى او د اهل علم او د فضل په نزد نه دې محبوب نو د دې محبت هيڅ اعتبار نشته دې -

---

[1] سورة آل عمران : ۳۷)
[2] فتح البارى : ۱۰\۵۶۷)
[3] فتح البارى : ۱۰\۵۶۷ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۲۱ ، ارشاد السارى : ۱۳\۶۱)
[4] سورة مريم : ۹۶)
[5] صحيح مسلم ، كتاب البر والصلة و الآداب ، باب إذا أحب الله عبدا ، حببه إلى عباده : ۴\۲۰۳۰ ( رقم الحديث : ۲۶۳۷ )
[6] فتح البارى : ۱۰\۵۶۷)

## ۴۲=بَاب الْحُبِّ فِي اللَّهِ

[۵۶۰۴] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَجِدُ أَحَدٌ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ حَتَّى يُحِبَّ الْمَرْءَ لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ وَحَتَّى أَنْ يُقْذَفَ فِي النَّارِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْقَذَهُ اللَّهُ وَحَتَّى يَكُونَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا [ر:۱۶]

د الله دپاره محبت كول او د الله تعالى دپاره بغض كول د ايمان په نخو كښې ده ، د حديث د باب تشريح په " كتاب الايمان " كښې تيره شويده - (۱)

## ۴۳=بَاب قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَى أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ الآية [الحجرات:۱۱]

امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د سورة الحجرات آيت كريمه ذكر كړيدې چه ديكښې د مؤمنانوسره الله تعالى خطاب كوى اودوى دبل پسې د خندا او د ټوقونه منع كوى-

**د تمسخر معنى او ددې ممانعت** : علامه قرطبى رحمه الله په تفسير قرطبى كښې فرمائى چه تمسخر ديته وائى چه يو سړې د بل كس د تحقير او دده د تذليل او د توهين دپاره دده څه عيب داسې ذكر كړى چه خلق په ده پورې اوخاندى ، دا د ژبې نه علاوه د لاسونو پښو په اشارو هم كيږى (۲)

قرآن كريم د ښځو او د سړو بيل بيل ذكر اوكړو او دينه ئې منع اوكړه ، او په قرآن كريم كښې په عمومى احكامو كښې د ښځو ځان له مستقل ذكر نه كيږى ، نو دلته چه ئې د دواړو جُدا جُدا ذكر اوكړو يو خو ددې ډير بد والى ته په خاص طور توجه وركول مقصود دى ، دويم دا مرض په ښځو كښې ډير په كثرت سره وى ، دې وجه نه د ښځو ئې په صراحت سره ذكر اوكړو - (۳)

قرآن كريم كښې ئې سړى د سړو تمسخر كولو نه او ښځې د ښځو پسې د خندا كولو نه منع كړل - حال دا دې چه څنګه دا حرام او ممنوع دى نو داسې د يو سړې يوې ښځې پورې خندا كول او د يوې ښځې د سړى پورې خندا كول هم حرام او ناجائز دى ـ

خو شرعا چه د ښځو او د سړو ګډون ممنوع دې ، دې وجه نه د دې صورت ذكر ئې اونكړو، ديكښې اشاره وه چه كله معاشره خالص په اسلامى بنيادونو جوړه شى نو دا صورت به خود بخود ناپيد شى ، دې وجه نه په صراحت سره ئې د دې صورت ذكر اونكړو - (۴)

---

(۱) كشف البارى ، كتاب الإيمان ، باب حلاوة الإيمان : ۲\۲۵ )

(۲) الجامع لإحكام القرآن للقرطبى ،سورة الحجرات:۱۱،۱۶\۳۲۵،دارنګه اوګورئ روح المعانى: ۱۳\۱۵۲)

(۳) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى ، سورة الحجرات : ۱۱ ، ۱۶\۳۲۶ ، روح المعانى : ۱۳\۱۵۳ )

(۴) معارف القرآن للمفتى محمد شفيع : ۸\۱۱۶ )

و لا تلمزوا انفسكم معنى :د تمسخر سره نې د " لمز " نه هم په ( ولا تلمزوا انفسكم )ويلو سره منع كړو - د لمز معنى ده چا كښې عيب راويستل يا چا ته ديو عيب پيغور وركول - (١)
علامه آلوسى رحمه الله فرمائى چه لمز د چا عيبونه واضح كول يا د چا د عيبونو تلاش او ورپسې كيدو ته وائى ، او سخريه چه ده نو دا تحقير او توهين ته وائى - (٢)
علامه عينى او علامه قسطلانى رحمهما الله فرمايى اللمز: الطعن، الضرب باللسان (٣) دې صورت كښې به د لاتلمزوا عطف په " لايسخر.... " باندې عطف الخاص على العام د قبيله وى - (٤)
د " لاتلمزو نه پس " انفسكم " ئې اوفرمائلو : علامه آلوسى رحمه الله ليكى :" أى لايعيب بعضكم بقول أوإشارة لأن المؤمنين كنفس واحدة، فمتى عاب المؤمن المؤمن فكأنه عاب نفسه (٥)يعنى تا سو په يو بل باندې په اشاره يا په قول سره عيبونه مه لګوئ ځكه چه ټول مؤمنان په شان دې يو نفس دى،نوچه كله يومؤمن په بل مؤمن عيب لګوى نو ګويا ده په خپل ځان عيب اولګولو-
علامه قسطلانى رحمه الله ددې يو بله توجيه هم ليكلې ده چه كوم كس په بل باندې عيب لګوى ظاهره ده چه عيب لګوونكې د عيب نه پاك نه شى كيدې ، ده كښې به هم يقيناً څه نه څه عيب وى،دې وجه نه په جواب كښې به دغه كس په ده باندې ددې موجوده عيب طعن اوكړى ، نو داسې ده چه ده په بل عيب اولګولو نو ده د خپل ځان هم عيب بيان كړو ، ګويا دا عيب ده په خپله په خپل ځان اولګولو ، " دې وجه نه په خپل ځان عيب مه لګوئ " مطلب دا دې چه نورو ته پيغورونه مه وركوئ ځكه چه بيا به ته په خپله د دې نخه جوړ شې(٦)
**قوله:** ولاتنابزوابالالقاب: يعنى يو بل په بدو القابو مه رابلئ، صاحب القاموس المحيط ليكلې دى التنابز: التعايرو التداعى بالالقاب (٧) يعنى په بدو القابو سره چا ته شرم وراچول او ده لره رابلل -
حافظ ابن جرير طبرى د حضرت ابن عباس نه د تنابز تفسير نقل كړيدې چه يو سړې په يو زمانه كښې بد كار او بد كردار وو ، ده توبه اوكړه او د نيكئ په لاره راغلو نو اوس ده ته په تيرو شوو بدو باندې شرم وراچول تنابز دې - (٨)
امام رازى رحمه الله تفسير كبير كښې او علامه ابن كثير په خپل تفسير كښې اوعلامه

---

(١) مجمع بحار الانوار : ٤\٥٠٦ ، النهاية لابن الاثير : ٤\٢٦٩ )
(٢) روح المعانى للآلوسى : ١٣\١٥٣ ، الجزء ٢٥ )
(٣) عمدة القارى : ٢٢\١٢٢ ، ارشاد السارى : ١٣\٦٣ )
(٤) ٢٥ روح المعانى : ١٣\١٥٣ ، الجزء : ٢٥ )
(٥) روح المعانى للعلمه آلوسى : ١٣\١٥٣ ، الجزء ٢٥ )
(٦) ارشاد السارى : ١٣\٦٣ )
(٧) القاموس المحيط ، باب الزاى ، فصل الميم و النون : ٢\٢٠٠ )
(٨) تفسير الطبرى لابن جرير ، سورة الحجرات : ١١ ، ١١\١٣٣ )

قرطبی په تفسیرقرطبی کښې ددې آیت په شان نزول کښې داسې څو واقعات رانقل کړیدی[1]

**قوله: بئس الإسم الفسوق بعد الإيمان :** علامه آلوسی رحمه الله په روح المعانی کښې لیکی : " بئس الذكر المرتفع للمؤمنين بسبب ارتكاب التنابز أن يذكروا بالفسق بعد اتصافهم بالايمان ، وهو ذم على اجتماع الفسق -- وهو ارتكاب التنابز -- والإيمان على معنى : لاينبغي أن يجتمعا فإن الإيمان يأبى الفسق "[2] یعنی په بدو القابو سره د مؤمنانو ذکر کول ډیر بد دی ، داسې چه په ایمان سره د متصف کیدو نه پس چه د دوی په فسق سره ذکر اوشی ( دوی ته فاسق فاجر یهودی یا نصرانی وغیره ویل ) یو کس چه په حقیقی معنو کښې مؤمن وی نو دې به مؤمنانو لره په بدو القابو د یادولو ارتکاب نه کوی ځکه چه دا ارتکاب فسق دې او ایمان او فسق دواړه نه دی جمع کیدل پکار -

دا رنګه که یو سړې وړاندې کافر وو ، بیا مسلمان شو یا فاسق فاجر وو ، بیا نیك او صالح شو ، د ده پوخ مؤمن کیدو نه پس د ده د پخوانی کفر او فسق ذکر کول جائز نه دی -

حاصل دا چه ویونکې مؤمن دې نو دده د تنابز ارتکاب نه دی کول پکار چه دا فسق دې او د ایمان راوړو نه پس د فسق ارتکاب نه دی کول پکار او چه د چا په باره کښې ویلې کیږی هغه مؤمن دې نو په ایمان باندې د متصف کیدو نه پس په فسق سره د ده تذکره نه دی کول پکار نو آیت د قائل او د مقول فیه دواړو سره متعلق دې -

اسم دلته د ذکر په معنی کښې دې ، وائی طار اسمه أی ذکره

[۵۶۹۵] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَضْحَكَ الرَّجُلُ مِمَّا يَخْرُجُ مِنَ الْأَنْفُسِ وَقَالَ بِمَ يَضْرِبُ أَحَدُكُمْ امْرَأَتَهُ ضَرْبَ الْفَحْلِ أَوْ الْعَبْدِ ثُمَّ لَعَلَّهُ يُعَانِقُهَا وَقَالَ الثَّوْرِيُّ وَوُهَيْبٌ وَأَبُو مُعَاوِيَةَ عَنْ هِشَامٍ جَلْدَ الْعَبْدِ [ر: ۳۱۹۷]

حضرت عبد الله بن زمعه رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د بادو په خارج کیدو باندې د خندلو نه منع کړیده[3] او فرمائی چه ولې تاسو کښې یو کس خپله ښځه د سانډ ( ځناور ) شان وهی حال دا دې چه دې به دې سره بیا ملاویږی -

سفیان ثوی ، ابومعاویه ، محمد بن حازم ، او وهیب بن خالد د " ضرب الفحل " په ځائې " جلد العبد " ویلې دې د " جلد " معنی د کوړو وهلو ده -

د سفیان روایت په کتاب النکاح کښې ، د وهیب روایت په کتاب التفسیر کښې موصولاً

---

[1]) التفسير الكبير للامام الفخر الرازی ، سورة الحجرات : ۲۸ \ ۱۳۱ ، تفسير ابن كثير ، سورة الحجرات : ۴ \ ۲۱۲ ، الجامع لأحكام القرآن للقرطبی : ۱۶ \ ۳۲۴ )

[2]) روح المعانی ، سورة الحجرات : ۱۳ \ ۱۵۵ ( الجزء : ۲۶ )

[3]) لانه قد يكون بغير الاختيار ، و لانه امر مشترک بين الكل ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۲۳ ، ارشاد الساری : ۱۳ \ ۶۳ )

تير شويدې او د ابومعاويه روايت امام احمد موصولاً نقل كړيدې - (۱)
ترجمة الباب كښې د ذكر شوې آيت سره د مناسبت بيانولو كښې علامه عينى رحمه الله ليكى " المناسبة بين الحديث و الآية الكريمة : هى أن ضحك الرجل مما يخرج من الأنفس فيه معنى الاستهزاء والسخرية " (۲) يعنى د بادو د خارجيدو په وجه خندل هم يو قسم استهزاء او تمسخر دې ، دې وجه نه ددې حديث د دې آيت كريمه سره ئې ذكر اوكړو -

[۵۶۹۶] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى أَتَدْرُونَ أَيُّ يَوْمٍ هَذَا قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ هَذَا يَوْمٌ حَرَامٌ أَفَتَدْرُونَ أَيُّ بَلَدٍ هَذَا قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ بَلَدٌ حَرَامٌ أَتَدْرُونَ أَيُّ شَهْرٍ هَذَا قَالُوا اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ شَهْرٌ حَرَامٌ قَالَ فَإِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ وَأَعْرَاضَكُمْ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا [ر: ۱۶۵۵]

علامه عينى رحمه الله ليكى : "وجه المناسبة بينه و بين الآية المذكورة من حيث إن فيه حرمة العرض التى تتضمنها الآية الكريمة أيضا على ما لايخفى على الفطن" (۳)
يعنى حديث شريف كښې د عزت او د حرمت ذكر دې چه د چا عزت پائمال كول حرام دى او آيت كريمه كښې هم ددې ذكردې، داسې په مينځ دحديث اود آيت كښې مناسبت واضح دې په حقيقت كښې حقونه دوه قسمه دى يو حقوق الله او بل حقوق العباد .... حقوق العباد بيا په دوه قسمه دى يو هغه حقوق چه د انسان د جسم او د مال سره متعلق دى او دويم هغه حقونه چه د انسان د عزت او د رتبې او د حيثيت سره متعلق دى ، په معاشرتى ژوند كښې شريعت د دواړو قسمونو حقونو د لحاظ او د پاسدارئ او د اداء كولو ډير كلك تاكيد كړيدې . او د دوى پائمال كولو ته ئې ناجائز او حرام ويلې دى ، آيت كريمه كښې دوى كښې د بعض صورتونو ذكر دې چه هغې كښې يو انسان د بل د حقونو د پائمال كولو او د ده د عزت او د احترام تحقير كولې شى -

روايت دباب كښې "إن الله حرم عليكم دماء كم و أموالكم و أعراضكم ....." د حقوق العباد د دواړو قسمونو لحاظ نه كول او د دې پائمال كول ئې حرام اوگرځول - (۴)

....

(۱) فتح البارى : ۱۰\۵۶۹ ، ارشاد السارى : ۱۳\۶۳)
(۲) عمدة القارى : ۲۲\۱۲۲)
(۳) عمدة القارى : ۲۲\۱۲۳)
(۴) فتح البارى : ۱۰\۵۲۹)

# ۴۴=بَاب مَا يُنْهىٰ مِنْ السِّبَابِ وَاللَّعْنِ

[۵۶۹۷] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُورٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا وَائِلٍ يُحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ تَابَعَهُ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ [ر:۴۸]

يو مسلمان ته كنځل او په ده لعن او طعن ويل ممنوع دى ، حديث د باب كښې دى چه مسلمان ته كنځل كول فسق اوګناه ده او ده سره قتال كول كفر دې، د كفر نه مراد يا كفران نعمت مراد دې يا حقيقى كفر مراد دې خو حقيقى كفر به د هغه كس په حق كښې وى چه هغه د مسلمان قتال حلال او جائز ګڼړى او يا دا په زجر او په توبيخ باندې محمول دې - (۱)

**قوله: تابعه محمد بن جعفر عن شعبة:** يعنى د سليمان بن حرب متابعت محمد بن جعفر غندر كړيدې ، د ده دا متابعت امام احمد رحمه الله موصولاً نقل كړيدې - (۲)

[۵۶۹۸] حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ الْحُسَيْنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يَعْمَرَ أَنَّ أَبَا الْأَسْوَدِ الدِّيلِيَّ حَدَّثَهُ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَرْمِي رَجُلٌ رَجُلًا بِالْفُسُوقِ وَلَا يَرْمِيهِ بِالْكُفْرِ إِلَّا ارْتَدَّتْ عَلَيْهِ إِنْ لَمْ يَكُنْ صَاحِبُهُ كَذَلِكَ [ر:۳۳۱۷]

حضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دى چه فرمائل ئې: چه يو كس دې په چا د فسق الزام او نه لګوى او نه دكفر ، ځكه چه كه دې د دې اهل نه وى نو دا ( فسق او كفر ) به دې الزام لګوونكى ته راواپس شى -

**چا ته د كافر يا د فاسق ويلو حكم :**

**قوله: الا ارتدت عليه إن لم يكن صاحبه كذلك:** يعنى دا كلمه د كفر به ده راواپس كيږى ، ديكښې څه تفصيل دې ، يو سړى بل كس ته فاسق يا كافر اوويلې او چه چا ته ئې ويلې دى هغه په حقيقت كښې كافر يا فاسق دې نو داسې صورت كښې به د ويونكى نيت ته كتلې كيږى كه ده د خير خواهئ په جذبه سره يا په دې چه خلق د ده د حال نه خبر كړى ئې دا جمله ويلې وى نو جائز دى - (۳)

خو كه دده مقصد په دې سړى طعن زنى ( عيب لګول ) وى او بغير د ضرورته ئې د ده د فسق او د كفر تشهير كړې وى نودا جائز نه ده، ځكه چه شريعت د بدو د مشهورولو اجازت نه وركوى ، د پردې او د پټولو حكم وركوى ترمذى شريف كښې حديث دې "من ستر على مسلم ستره الله فى الدنيا و الآخرة"

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۵۷۱ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۲۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\۶۴ )

۲) مسند الامام احمد بن حنبل ، مسانيد عبد الله بن مسعود : ۱\۳۸۵ )

۳) فتح البارى : ۱۰\۵۷۱ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۲۴ ، ارشاد السارى : ۱۳\۶۵ )

او صحیح مسلم کښې روایت دی "من ستر مسلما ستره الله یوم القیامة" ([1])
خو چه کوم سړی ته ئې فاسق یا کافر اوویلې او دې په حقیقت کښې فاسق یا کافر نه وی نو دلته په روایت کښې فرمائی چه دا کلمه به د تکفیر ویونکی (د کافر حکم لګوونکی) ته راواپس کیږی، د دې مختلف مطالب بیان شویدی:

① ویونکی طرف ته د راواپس کیدو ظاهری مطلب خو دا دې چه دې به په خپله کافر شی، حال دا دې چه مسلمان ته کافر ویلو سره سړې ګناهګار خو خامخا دی خو کافر نه دې، دې وجه نه یو خو دغه مشهور تاویل شویدې چه دا حکم د مستحل دپاره دې یعنی چه کوم سړې مسلمان ته کنځل کول حلال او جائز ګنړی نو دې کافر کیږی او دده په کافر کیدو کښې هیڅ کښې شك نشته دې ([2]) خو د سیاق د کلام نه ددې مطلب تائید نه کیږی-

② دا په زجر او په توبیخ محمول دې، حقیقی معنی مراد نه ده - ([3])

③ دا مطلب هم کیدې شی چه د دې جُملې ویلو وبال په ده وی، لکه چه حافظ ابن حجر د علامه قرطبی په حواله لیکی:

"و الحاصل أن المقول له، إن كان كافر كفرا شرعيا، فقد صدق القائل، و ذهب بها المقول له، وإن لم يكن، رجعت للقائل معرة ذلك القول وإثمه .... وهو من أعدل الأجوبة" ([4])

یعنی چه کوم سړی ته کافر ویلې شویدې کُه دې واقعی کافر وی، نو بیا خو ویونکې رښتونې دې، او چه د چا متعلق دا قول ویلې شویدې هغه ددې مستحق دې، خو کُه دې کافر نه وی نو په ویونکې به د دې جملې ویلو وبال او ګُناه وی، دا د دې حدیث د ټولو نه ښه توجیه ده -

دلعنت متعلق هم داسې یو حدیث امام ابوداود رحمه الله د حضرت ابو الدرداء ﷺ نه رانقل کړیدې، د دې الفاظ دی "إن العبد إذا لعن شيئا صعدت اللعنة إلى السماء، فتغلق أبواب السماء دونها، ثم تهبط إلى الأرض، فتأخذ يمنة و يسرة، فإن لم تجد مساغا، رجعت إلى الذى لعن، فإن كان أهلا، وإلا رجعت إلى قائلها" ([5])

یعنی سړې چه کله په یو څیز باندې څه لعنت لیږی نو دا لعنت د اسمان په طرف ځی، د آسمان دروازې ده ته بندې شی نو دا بیا زمکې ته راشی، هلته کښې دې ښی طرف او ګس طرف ته ګرځی راګرځی نو چه کله ده ته څه بل ځائې ملاو نه شی نو دې لاړشی هغه څیز ته چه په څه لعنت لیږلې شویدې، نو کُه دې د دې اهل وی خو په ده پورې اونخلی ګنی بیا

---

[1]) الجامع الصحيح للترمذي، كتاب الحدود، باب ما جاء في الستر على المسلم: ٤\٣٨ (رقم الحديث: ١٣٢٥). رواه مسلم، كتاب البر و الصلة و الآداب، باب تحريم الظلم: ٤\١٩١٦. (رقم الحديث: ٢٥٨٠)

[2]) فتح الباري: ١٠\٥٧١، عمدة القاري: ٢٢\١٢٣، ارشاد الساري: ١٣\٦٤)

[3]) فتح الباري: ١٠\٥٧١)

[4]) فتح الباري: ١٠\٥٧٢)

[5]) سنن أبي داود، كتاب الأدب، باب في اللعن: ٤\٢٧٧ (رقم الحديث: ٤٩٠٥)

لعنت ليږونکي ته راواپس شي -

[٥٦٩٩] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا لَعَّانًا وَلَا سَبَّابًا كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْمَعْتَبَةِ مَا لَهُ تَرِبَ جَبِينُهُ [ر: ٥٦٨٣]

[٥٧٠٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ أَنَّ ثَابِتَ بْنَ الضَّحَّاكِ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ حَدَّثَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ عَلَى مِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ فَهُوَ كَمَا قَالَ وَلَيْسَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَذْرٌ فِيمَا لَا يَمْلِكُ وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ فِي الدُّنْيَا عُذِّبَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ لَعَنَ مُؤْمِنًا فَهُوَ كَقَتْلِهِ وَمَنْ قَذَفَ مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهِ [ر: ١٢٩٧]

ثابت بن ضحاك چه کوم په اصحاب شجره ( د اوني لاندې بعت کوونکو ) کښې وو ، بيان کړيدې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړی د اسلام نه ماسوا د يو بل ملت قسم اوخوړو نو هغه هم هغسې دې چه څنګه ده ويلې دی او په سړی باندې د هغه څيز متعلق نذر پوره کول ضروری نه دی چه دې د هغې مالك نه وی، او چه چا په کوم څيز باندې ( په ذريعه ) په دنيا کښې خودکشی اوکړه نو قيامت کښې به ده لره هم دا څيز ذريعه د عذاب اوګرځولې شی او چه چا په يو مؤمن باندې د کفر تهمت اولګولو نو دا دده د قتل په شان دې -

**قوله:** من حلف علی ملة غير الإسلام فهو کما قال : ملة موصوف او غيرالاسلام ددې صفت دې " علی " د " باء " په معنی ده ، مثلا چا قسم اوکړو چه که ده دا کار اوکړو نو دې به يهودی وی يا به نصرانی وی او ده دا کار اوکړو نو دې يهودی او نصرانی به شی ، دلته هم هغه خبرې شويدی چه د کومو ذکر اوس تير شويدې ، چه دا خو يا په زجر او په توبيخ او په مبالغه فی الوعيد محمول دې ، حقيقی معنی نه ده مراد ، يا د هغه سړی په باره کښې دې چه کوم يهودی يا د نصرانی کيدو اراده لری نو اراده د کفر کفر دې ، دې وجه نه داسې سړی به کافر وی ، خو که چا د محلوف عليه نه د ځان ساتلو دپاره داسې قسم اوکړو نو دا شرعاً يمين نه دې ، دې وجه نه په ده به کفاره واجب نه وی ، خو چه حديث کښې ترينه ممانعت راغلې دې نو دې وجه نه دې به ګناهګار وی او په ده توبه کول لازم دی ، لکه علامه قسطلانی رحمه الله ليکی :

" و ظاهره أنه يكفر، أو هو محمول على من أراد أن يكون متصفا بذلك، إذا وقع المحلوف عليه، لأن إرادة الكفر كفر، فيكفر في الحال، أو المراد التهديد و المبالغة في الوعيد، لا الحكم، وإن قصد تبعيد نفسه عن الفعل، فليس بيمين ولا يكفر به " -(١)

**قوله:** وليس علی ابن آدم نذر فيما لا يملك : نذر او منت سړې صرف د خپل مملوك

(١) ارشاد الساری : ١٣ / ٦٦

څيز په باره کښې کولې شی ، چه د کوم څيز سړې مالك نه وی ، د دې نذر کول صحيح نه دی ، مثلاً څوك اووائی چه که څما خوې صحتمند شو نو څه به د زيد کور صدقه کښې ورکوم - ([1])

**قوله:** ومن قتل نفسه بشيء في الدنيا ......: سړې چه دنيا کښې په کوم څيز سره خودکشی کړې وی ، آخرت کښې به هم په دې څيز په طور د سزا خپل ځان قتل کوی ليکون الجزاء من جنس العمل ، وإن كان عذاب الآخرة أعظم ([2]) ( دې دپاره چه سزا ، د ګناه د جنس نه شی ، اګر چه د آخرت عذاب به ډير سخت وی )

**قوله:** ومن لعن مؤمنا فهو كقتله : په مؤمن لعنت کول د ده د قتل کولو په شان دې يعنی چه څنګه د مؤمن قتل کول حرام دی ، داسې په ده لعنت کول هم حرام دې يا چه څنګه د مؤمن قتل کول باعث د سزادې نوداسې په ده لعنت کول هم باعث د سزا اود عقاب دې ([3])

[۵۷۰۱] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ صُرَدٍ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَغَضِبَ أَحَدُهُمَا فَاشْتَدَّ غَضَبُهُ حَتَّى انْتَفَخَ وَجْهُهُ وَتَغَيَّرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ الَّذِي يَجِدُ فَانْطَلَقَ إِلَيْهِ الرَّجُلُ فَأَخْبَرَهُ بِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ تَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ الشَّيْطَانِ فَقَالَ أَتُرَى بِي بَأْسٌ أَمَجْنُونٌ أَنَا اذْهَبْ [ر:۳۱۰۸]

روايت کښې دی چه دوه سړو د رسول الله ﷺ وړاندې يو بل ته کنځل اوکړل ، دوی کښې يو کس ته ډيره سخته غصه ورغله ، تر دې چه دده مخ اوپړسيدو او رنګ ئې بدل شو ، رسول الله ﷺ اوفرمائل ، ما ته يو داسې کلمه معلومه ده که دا سړې دا اووائی نو دده غصه به لاړه شی ، يو سړې ده ته ورغلو او ده ته ئې د رسول الله ﷺ د دې ارشاد خبر ورکړو چه ته " اعوذ بالله ...... " اووايه ، نو ده اوويل : چه آيا ته په ما کښې څه خرابی وينې ؟ آيا څه ليونې يم ؟ څه اخوا شه -

**قوله:** استبّ رجلان : حافظ ابن حجر فرمائی ما ته ددې دوه سړو نومونه معلوم نه شو ([4])

**قوله:** إني لأعلم كلمة لو قالها لذهب عنه الذي يجد: دوی اوفرمائل چه ما ته يو داسې کلمه معلومه ده که دې سړی دا اوويلې نو دده غصه به ختمه شی ، صحيح مسلم په روايت

---

[1]) رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الأيمان ، مطلب فى احكام النذر : ۳ \ ۷۳۷ ، الفتاوى البزازيه ، كتاب الأيمان ، النوع الثالث فى النذر : ٤ \ ۲۷۱ )

[2]) ارشاد السارى : ۱۳ \ ۶۷ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۲۵ )

[3]) ارشاد السارى : ۱۳ \ ۶۷ )

[4]) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۷۲ )

كنبې د دې كلمې تصريح راغلې ده . ديكنبې دى " لو قالها لذهب ذا عنه : أعوذ بالله من الشيطان الرجيم " (١)

حضرت معاذ رضي الله عنه په روايت كنبې دى " إني لأعلم كلمة لو قالها لذهب عن ما يجد من الغضب فقال : ما هي يا رسول الله ؟ قال : يقول : اللهم إني أعوذ بك من الشيطان لرجيم " (٢) ( حضور ﷺ اوفرمائل : ما ته داسې جمله معلومه ده چه كُه دا سړى ئې اووائى نو ده نه به غصه لاړه شى ، نو تپوس اوشو : هغه څه ده ؟ نو وې فرمائل : " اللهم أني أعوذ بك من الشيطان الرجيم " ده )

**قوله: فانطلق اليه الرجل :** د سنن ابى داود په روايت كنبې دى چه خبر وركوونكې كس حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه وو - (٣)

**قوله: أترى بى بأس :** تُرى د تاء په ضمه سره د " تظن " په معنى دې ، بأس " مبتداء مؤخره او " بى " خبر مقدم دې ، بعض روايتونو كنبې " بأسا " منصوب دې ، د منصوب كيدو په صورت كنبې دا " ترى " دپاره مفعول به به وى . حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى دا صورت زيات مناسب دې -(٤) اذهب

دا سړې يا خو منافق وويا كافر وو ، يا خوك ديهاتى مسلمان وو او ده ته معلومه نه وه چه د غصې په وخت تعوذ ويل پكار دى . د ده دا خيال وو چه تعوذ به صرف هغه كس وائى چه هغه پاګل يا ليونې وى ځكه چه زياته غصه د شيطان اثر وى - (٥)

دينه معلومه شوه چه د غصې په وخت تعوذ ويل پكار دى ، د سنن ابى داود روايت كنبې دى " إن الغضب من اشيطان " (٦)

[٥٧٠٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ قَالَ أَنَسٌ حَدَّثَنِي عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُخْبِرَ النَّاسَ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ وَإِنَّهَا رُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ فَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ [ر:٤٩]

**قوله: فتلاحى رجلان من المسلمين :** د تلاحى معنى د جنګ جګړې كولو ده . ددې جملې په مناسبت سره امام بخارى رحمه الله دا حديث دلته د " باب ما ينهى من

---

١) فتح البارى : ١٠\٥٧٢ )

٢) سنن أبى داود كتاب الأدب . باب ما يقال عند الغضب : ٤\٢٤٨ ( رقم الحديث : ٤٧٨٠ )

٣) سنن أبى داود كتاب الأدب . باب ما يقال عند الغضب : ٤\٢٤٨ ( رقم الحديث : ٤٧٨٠ )

٤) فتح البارى : ١٠\٥٧٣ . ارشاد السارى : ١٣\٦٧ )

٥) فتح البارى : ١٠\٥٧٣ . عمدة القارى : ٢٢\١٢٥ . ارشاد السارى : ١٣\٦٨ )

٦) سنن أبى داود كتاب الأدب . باب ما يقال عند الغضب : ٤\٢٤٩ ( رقم الحديث : ٤٧٨٤ )

السباب و اللعن " تر لاندې ذکر کړو ، خکه چه جنګ جګړه عموما د لعن د طعن او د کنځلو کولو سبب ګرځی ، دا دوه سړی کعب بن مالك او عبد الله بن ابی حدرد وو - (۱) دا روایت کتاب الایمان کښې تیر شویدې (۲) دوی ﷺ د شب قدر خبر ورکولو دپاره راروان وو خو د دوه اصحابو د جنګ په وجه د دې تعین د دوی ﷺ د زړه نه اوچت کړې شو . په دې باندې دوی ﷺ اوفرمائل : کیدې شی دهکښې به بهتری وی ، خکه چه مبهم پاتې کیدو په صورت کښې خلق به ددې په تلاش کښې ټولو شپو کښې عبادتونه کوی ، او که دا شپه متعین کړې شوې وه نو د نورو شپو نه به د خلقو توجه اخوا شوې وه

[۵۷۰۳] حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنِ الْمَعْرُورِ هُوَ ابْنُ سُوَيْدٍ عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ رَأَيْتُ عَلَيْهِ بُرْدًا وَعَلَى غُلَامِهِ بُرْدًا فَقُلْتُ لَوْ أَخَذْتَ هَذَا فَلَبِسْتَهُ كَانَتْ حُلَّةً وَأَعْطَيْتَهُ ثَوْبًا آخَرَ فَقَالَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ كَلَامٌ وَكَانَتْ أُمُّهُ أَعْجَمِيَّةً فَنِلْتُ مِنْهَا فَذَكَرَنِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي أَسَابَبْتَ فُلَانًا قُلْتُ نَعَمْ قَالَ أَفَنِلْتَ مِنْ أُمِّهِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ قُلْتُ عَلَى حِينِ سَاعَتِي هَذِهِ مِنْ كِبَرِ السِّنِّ قَالَ نَعَمْ هُمْ إِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ فَمَنْ جَعَلَ اللَّهُ أَخَاهُ تَحْتَ يَدِهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا يُكَلِّفُهُ مِنَ الْعَمَلِ مَا يَغْلِبُهُ فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ [ر: ۳۰]

دا روایت په کتاب الایمان کښې تیر شویدې (۳) د حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه د یو سړی سره څه ترخې خبرې اوشوې ، د ده مور عجمی وه ، دوی ده ته بد رد اوویلې . چه رسول الله ﷺ ته معلومه شوه نو دوی ﷺ ابو ذر غفاری رضی الله عنه ته اوفرمائل : په تاکښې د جاهلیت اثر باقی پاتې دې . حضرت ابوذر رضی الله عنه تپوس اوکړو چه آیا څما په دې بوډا توب کښې هم ! .... نو حضور ﷺ اوفرمائل : " هو "

چه د کوم سړی سره ئې ترخې خبرې راغلې وې دا سړې حضرت بلال وو . د دوی د مور نوم حمامه وو - (۴) د جاهلیت نه خویا مراد د اسلام نه وړاندې والا جاهلیت مراد دې او یا د دې نه جهل مراد دې - (۵)

**قوله: قلتُ: علی حین ساعتی : هذه من کبرالسن ؟:** یعنی دومره عمر زیاتیدو سره په ما کښې د جاهلیت اثر شته دې . حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه مشر جلیل القدر صحابی وو . حضور ﷺ دوی ته غصه اوکړه دې دپاره چه بیا دپاره محتاط وی . علامه قسطلانی رحمه الله لیکی وإنما وبّخه بذلك مع عظم درجته تحذيرا له أن يفعل مثل ذلك مرة أخرى (۶)

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۵۷۳ . عمدة القاری : ۲۲\۱۲۶ . ارشاد الساری : ۱۳\۶۸)
۲) صحیح البخاری کتاب الایمان . باب خوف المومن أن یحبط عمله و هو لا یشعر ( رقم الحدیث : ۴۹ )
۳) صحیح البخاری . کتاب الإیمان . باب المعاصی من أمر الجاهلیة .... ( رقم الحدیث : ۳۰ )
۴) عمدة القاری : ۲۲\۱۲۶ . فتح الباری : ۱۰\۵۷۳ )
۵) فتح الباری : ۱۰\۵۷۳ . عمدة القاری : ۲۲\۱۲۶ )
۶) ارشاد الساری : ۱۳\۶۹)

**قوله**: أفنلت من أمه.....: یعنی آیا تا دده مور ته بدرد اوویلې -

**د حدیث نه مستنبط فائدې** : حافظ ابن حجر رحمه الله د حدیث نه څو فائدې مستنبط کوی او لیکی : "ویؤخذ منه المبالغة فی ذم السب و اللعن لما فیه من تحقیر المسلم، وقد جاء الشرع بالتسویة بین المسلمین فی معظم الأحکام، وأن التفاضل الحقیقی بینهم إنما هو بالتقوی، فلا یفید الشریف النسب نسبه ،إذا لم یکن من أهل التقوی، وینتفع الوضیع النسب بالتقوی کما قال تعالی: (إن أکرمکم عند الله أتقاکم)"[1]

دې حدیث نه یو خو د کنځلو او د لعنت شناعت معلوم شو ځکه چه دیکښې د مسلمانانو تحقیر او توهین کیږی - دویم دا خبره معلومه شوه چه د یو مسلمان په بل مسلمان باندې د فضیلت او د فوقیت حاصلولو معیار تقوی ده ، دې وجه نه د یو اوچت او د شریف نسب سره تعلق لرونکې یو سړې متقی نه وی نو صرف نسب ده ته هیڅ فائده نه شی ورکولې ، دده په عکس یو سړې چه د لاندې نسب سره تعلق لری خو متقی دې نو دده مقام اوچت دې ، قرآن کریم کښې هم دیته ئې اشاره کړیده او ویلې دی (ان اکرمکم عندالله اتقاکم)

## ۴۵=بَاب مَا يَجُوزُ مِنْ ذِكْرِ النَّاسِ نَحْوَ قَوْلِهِمْ الطَّوِيلُ وَالْقَصِيرُ

وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَقُولُ ذُو الْيَدَيْنِ [ر:۴۶۸] وَمَا لَا يُرَادُ بِهِ شَيْنُ الرَّجُلِ

[۵۷۰۴] حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ صَلَّى بِنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ قَامَ إِلَى خَشَبَةٍ فِي مُقَدَّمِ الْمَسْجِدِ وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَيْهَا وَفِي الْقَوْمِ يَوْمَئِذٍ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَهَابَا أَنْ يُكَلِّمَاهُ وَخَرَجَ سَرَعَانُ النَّاسِ فَقَالُوا قَصُرَتْ الصَّلَاةُ وَفِي الْقَوْمِ رَجُلٌ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوهُ ذَا الْيَدَيْنِ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَنَسِيتَ أَمْ قَصُرَتْ فَقَالَ لَمْ أَنْسَ وَلَمْ تَقْصُرْ قَالُوا بَلْ نَسِيتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ صَدَقَ ذُو الْيَدَيْنِ فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ ثُمَّ وَضَعَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ وَكَبَّرَ [ر:۴۶۸]

**د ترجمة الباب مقصد** : علامه عینی لیکی : أی هذا باب فی بیان ما یجوز من ذکر أوصاف الناس نحو قوله : فلان طویل، و فلان قصیر[2]

د امام بخاری رحمه الله مقصد ددې باب نه دا دی چه بعض داسې جسمانی اوصاف چه کوم عیب نه ګڼرلې کیږی که د یو سړی دپاره دا استعمال کړې شی نو دا جائز دی ، مثلا طویل، قصیر وغیره په دې شرط چه د چا دپاره دا استعمالیږی هغه ته په دې تکلیف نه رسی ، ترجمة الباب کښې و مالا یراد به شین الرجل سره دیته اشاره ده ، د شین معنی د عیب ده . په خپله رسول الله ﷺ دیو صحابی دپاره د " ذو الیدین " لفظ استعمال کړې وو،

---

[1] فتح الباری : ۱۰\۵۷۳)

[2] عمدة القاری : ۲۲\۱۲۶)

روايت دباب كښې ددې تفصيل راغلې دې ، دا روايت په كتاب الصلاة كښې تير شويدې[1] د "اعمش" او د "اعرج" وغيره چه كوم اوصاف د بعض راويانو دپاره استعماليږي اصولاً دا صحيح نه دى ، خو چه دا راويان په دې اوصافو سره دومره مشهور شويدى چه ددې اوصافو ذكر كولو نه بغير د دوى پيژندګلو مشكله ده ، دې وجه نه دا د يو ضرورت تر لاندې محدثين ذكر كوى ، مقصود د دوى عيب بيانول نه وى بلكه تعارف كول وى ، بعض محدثينو ديكښې سختى كړيده او ويلې دى چه دا صحيح نه ده ، امام بخارى رحمه الله په "مالا يراد به شين الرجل" سره دې طرف ته اشاره كړيده - [2]

## ۴۶=بَابُ الْغِيبَةِ وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَحِيمٌ [الحجرات:۱۲]

[۵۷۰۵] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ الْأَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يُحَدِّثُ عَنْ طَاوُسٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ مَرَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَبْرَيْنِ فَقَالَ إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ أَمَّا هَذَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنْ بَوْلِهِ وَأَمَّا هَذَا فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ ثُمَّ دَعَا بِعَسِيبٍ رَطْبٍ فَشَقَّهُ بِاثْنَيْنِ فَغَرَسَ عَلَى هَذَا وَاحِدًا وَعَلَى هَذَا وَاحِدًا ثُمَّ قَالَ لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا [ر:۲۱۳]

د غيبت متعلق څو خبرې په ذهن كښې اوساتئ:

**د غيبت تعريف** : ① رومبئ خبره د غيبت د تعريف سره متعلق ده ، امام راغب د غيبت تعريف كړيدې : الغيبة أن يذكر الإنسان غيره بما فيه من عيب من غير أن أحوج إلى ذكره [3] د يو بل سړى عيب بغير د ضرورته بيانولو ته غيبت ويلې كيږى -

امام غزالى رحمه الله په "احياء العلوم" كښې غيبت تعريف كړيدې "الغيبة أن تذكر أخاك بما يكرهه لو بلغه" [4]

علامه ابن اثير په "النهاية فى غريب الحديث" كښې د غيبت تعريف كړيدې "الغيبة وهى أن يذكر الإنسان فى غيبته بسوء وإن كان فيه" [5] علامه قرطبى رحمه الله په تفسير قرطبى كښې د غيبت

---

1) صحيح البخارى ، كتاب الصلاة ، باب تشبيك الأصابع فى المسجد و غيره ( رقم الحديث : ۴۸۲ )

2) ۶۵) عمدة القارى : ۲۲\۱۲۷ ، ارشاد السارى : ۱۳\۷۰ ، فتح البارى : ۱۰\۵۷۴ )

3) المفردات فى غرائب القرآن ، كتاب الغين و ما يتصل بها : ۳۶۷ )

4) إحياء علوم الدين للإمام الغزالى كتاب آفات اللسان ، الآفة الخامسة عشرة الغيبة : ۱۳\۱۴۳ )

5) النهاية لابن الأثير : ۱۳\۳۹۹ )

تعريف کړيدې "هى ذكر العيب بظهر الغيب" (۱)
حاصل دا چه ديو سړی په داسې انداز سره د هغه په غير موجودګئ کښې داسې تذکره کول چه کُه دې دا واوری نو ده ته به دا ښه نه لګی ، غيبت دې -
بعض خلق وائی چه غيبت مطلقًا د چا د بدی بيانولو نوم دې ، کُه هغه حاضر وی او کُه غائب وی .... خو راجح دا ده چه شا په شا د چا بد بيان کړې نو دا غيبت دې ځکه چه د لفظ د لغوی معنی په دې صورت کښې رعايت کيږی ، او چه د چا په تعريفاتو کښې د " غائب کيدو " قيد نه وی لګيدلې ، هلته هم دا قيد محذوف منل پکار دی - (۲)
**د غيبت حکم :** ② غيبت بعض عالمانو په صغائرو يعنی وړو ګناهونو کښې شمار کړيدې (۳)
خو د جمهورو عالمانو په نزد غيبت په کبائرو کښې دی ، علامه قرطبی وغيره څو عالمانو په دې اجماع هم نقل کړيده ، (۴) ځکه چه د غيبت متعلق په قرآن او حديث کښې ډير سخت وعيدونه راغلې دی چه کوم د دې په کبيره کيدو باندې واضح دلالت کوی -
حديث د معراج کښې دی چه رسول الله ﷺ څه خلقو لره اوليدل چه دوی په نوکونو خپل مخونه شوکوی . د دوی باره کښې ئې معلومات اوغوښتل نو حضرت جبريل ﷺ اوفرمائل : " هؤلاء الذين يأكلون لحوم الناس و يقعون فی أعراضهم " (۵) يعنی دا هغه خلق دی چه کوم د خلقو غوښې خوری ( يعنی غيبت کوی ) او د دوی په عزت کښې وريريووځی -
د سعيد بن زيد مرفوع روايت دې " إن من أربى الربا الاستطالة فی عرض المسلم بغير حق (۶) د يو مسلمان د عزت په باره کښې په ناحقه ژبه خوزول د سود بدترين صورت دې )
د حضرت ابوهريره ﷺ روايت کښې دی :" من أكل لحم أخيه فی الدنيا ، قرب له يوم القيامة ، فيقال له : كله ميتا ، كما أكلته حيا ، فيأكله ، ويكلح ويصيح " (۷) يعنی چه کوم سړی په دنيا کښې د خپل رور غوښه اوخوره يعنی غيبت ئې اوکړو د قيامت په ورځ به دې دده قريب کړې شی او ده ته به اوويلې شی چه ده لره د مړی په حالت کښې اوخوره چه څنګه تا دې د ژوند په حالت کښې خوړلې وو نو دې به ده لره خوری او د ده طبيعت به تروش شی او چغې به وهی -
امام بخاری رحمه الله په " الادب المفرد " کښې د حضرت جابر روايت رانقل کړيدې ، هغه

---

(۱) الجامع لأحكام القرآن للقرطب . سورة الحجرات : ۱۶ : ۳۳۵ )
(۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۵۷۵ )
(۳) فتح الباری : ۱۰ \ ۵۷۶ . ارشاد الساری : ۱۳ \ ۷۱ )
(۴) الجامع لأحكام القرآن للقرطبی . سورة الحجرات : ۱۶ \ ۳۳۷ . فتح الباری : ۱۰ \ ۵۷۶ )
(۵) أخرجه ابوداود فی كتاب الأدب . باب فی الغيبة : ٤ \ ۲۶۹ ( رقم الحديث : ٤۸۷۸ ) و أخرجه البيهقی فی شعب الإيمان ، باب فی تحريم أعراض الناس : ۵ \ ۲۹۹ ( رقم الحديث : ۶۷۱۶ )
(۶) أخرجه ابوداود فی كتاب الأدب . باب فی الغيبة : ٤ \ ۲۶۹ ( رقم الحديث : ٤۸۷۸ ) و أخرجه البيهقی فی شعب الإيمان ، باب فی تحريم أعراض الناس : ۵ \ ۲۹۹ ( رقم الحديث : ۶۷۱۶ ) .....
(۷) تفسير ابن كثير ، سورة الحجرات ک ٤ \ ۲۱۶ )

فرمائي "كنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم وارتفعت ريح خبيثة منتنة، فقال أتدرون ما هذه؟ هذه ريح الذين يغتابون المؤمنين" [1] (حضرت جابر فرمائي: چه مونږ د رسول الله ﷺ سره وو چه ديكښې يو بد بوداره هوا راغله، نو دوی ﷺ اوفرمائل، تاسو ته پته شته چه دا څه څيز دې؟... دا د هغه خلقو بدبو ده چه كوم د مؤمنانو غيبت كوی)

د غيبت په باره كښې دې احاديثو كښې چه كوم وعيدونه بيان شويدی، ددې په وجه عالمانو غيبت كول په كبائرو كښې شمار كړيدې -

**د غيبت نه د توبه كولو صورت:** ③ د غيبت د گناه نه د توبه كولو څه صورت دې؟ د بعض عالمانو خيال دې چه الله تعالى ته دې توبه اوكړې شي يعنى ندامت سره دې استغفار اوكړې شي، او په زړه كښې دې بيا دپاره دينه د بچ كيدو عزم وی، بس هم دا كافی ده [2]

بعض عالمانو ليكلې دی چه د چا غيبت شويدې. د هغه دپاره دې استغفار اوكړی نو دا به ددې تلافی شی - [3]

خو جمهور عالمان فرمائی چه ده په غيبت كولو سره د بل حق وهلې دې، دې وجه نه چه ده د چا غيبت كړيدې د هغه نه معافی اونه غواړی او د حق وهل ترينه معاف نه كړی نو تر دغه وخته دا گناه نه معاف كيږی ځكه چه حق العبد صرف په توبه او په استغفار سره نه ادا كيږی. چه تر څو اداء نه كړې شی يا معاف نه كړې شی - [4]

ددې تائيد د يو حديث نه هم كيږی، دوی ﷺ فرمائی "من كانت له عند أخيه مظلمة في عرض أو مال، فليتحللها منه" [5] (چه كوم سړی په خپل رور باندې د عزت يا د مال په باره كښې ظلم كړې وی نو دا دې په ده سره معاف كړی)

د معاف كولو يو صورت دا دې چه لاړ شی او هغه ته صفا اووائی چه ما د ستا غيبت كړيدې، ته ما معاف كړه -

علامه شامی او علامه قرطبی فرمائی، چه دارنگ اظهار كول ضروری نه دی، مجمل او مبهم گډ اوويلې شی چه د ستا كومه حق تلفی څما نه شوې وی نو دا راته معاف كړه او چه دې معافی اوكړی نو انشاء الله د غيبت گناه به معاف شی، - [6] خو چه د كوم سړې غيبت

---

[1]) الأدب المفرد مع فضل الله الصمد، باب بلا ترجمة: ۲\۱۹۴)

[2]) روح المعانی، سورة الحجرات، ۱۳\۱۶۰، الجزء: ۲۵)

[3]) الجامع لأحكام القرآن، سورة الحجرات: ۱۶\۳۳۷)

[4]) شرح الطيبی علی مشكاة المصابيح، كتاب الادب، باب حفظ اللسان و الغيبة و الشتم: ۱۰\۱۲۵، مرقاة المفاتيح علی مشكاة المصابيح، كتاب الآداب، باب حفظ اللسان، و الغيبة و الشتم: ۹\۱۹۷)

[5]) أخرجه البخاری فی كتاب المظالم و الغصب، باب من كانت له مظلمة عند الرجل ..... (رقم الحديث: ۲۴۴۹) و أخرجه الإمام أحمد فی مسنده: ۲\۱۶۱)

[6]) رد المحتار علی الدر المختار، كتاب الحظر و الإباحة، فصل فی البيع: ۵\۲۹۰، الجامع لأحكام القرآن للقرطبی: ۱۶\۳۳۹، روح المعانی: ۱۳\۱۶۱)

شويدې هغه ته د غيبت علم نه وى شوې نو بيا د ده نه د معافئ په ځائې د الله تعالى نه ددې گناه معافى غوښتل كافى دى -

**د چا غيبت كول جائز دى ؟** :③ كه يو سړې مشهور فاسق او فاجر دې او دې علانيه د فسق او د گناه ارتكاب كوى ، نو د ده بد ا وفسق بيانول ممنوع غيبت كښې داخل نه دى - يو روايت كښې دى " من ألقى جلباب الحياء فلا غيبة له "[1] ........ ( چه كوم د حياء څادر لرې كړى د هغه غيبت حرام نه دې ) او يو مرفوع حديث كښې دى "اذكروا الفاجر بما فيه كى يحذره الناس" ([2]) يعنى د فاسق بد بيان كړه چه خلق ترينه ځان اوساتلې شى -

د حضرت حسن بصرى نه روايت دې : **ثلاثة ليست لهم حرمة : صاحب الهوى ، و الفاسق المعلن ، و الإمام الجائر**([3]) يعنى د دريو كسانو غيبت حرام نه دې ، يو د خواهش او د هوا ( بدعت ) والا ، دويم د علانيه فسق كوونكى او دريم د ظالم حكمران ، دارنگه چه د چا عيب بيانول دينى يا دنيوى ضرورت وى ، نو دا غيبت هم ممنوع نه دې ، په راويانو چه كوم جرح كيږى نو دا هم يو دينى ضرورت دې دې وجه نه دا جائز دې - ([4])

علامه شامى د حلال او دحرام غيبت مقامات په اشعارو كښې بيان كړيدې فرمائى :

بما يكره الإنسان يحرم ذكره سوى عشرة حلت أتت تلو واحد

تظلم و شر و أجرح و بين مجاهرا بفسق و مجهولا وغشا لقاصد

وعرف كذا استفت استعن عند زاجر كذلك اهتمم حذر فجور معاند

دا رنگه اوگورئ فتح البارى ، كتاب الأدب ، باب مايجوز من اغتياب أهل الفساد و الريب : ١٠\٥٨٧)

**قوله:** أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا : د غيبت مثال ئې د مړى د غوښې سره وركړو ، يو خو ددې وجه چه څنگه مړى ته پته نه لگى چه د ده غوښه څوك خورى داسې چه د چا غيبت كيږى ، هغه ته هم پته نشته دې چه د ده غيبت كيږى څنگه چه د مړى غوښه خوړل يو ناخوښه او بد عمل دې داسې غيبت كول هم شرعاً قبيح او ناخوښه دې ([5])

**د روايت د باب د ترجمة الباب سره مناسبت** : روايت د باب ، طهارت ، **كتاب الوضوء ، باب من الكبائر أن لايستتر من بوله** او جنائز **باب الجريد على القبر** كښې تير شويدى ، ديكښې د غيبت ذكر نشته دې ، په ظاهره ددې د ترجمة الباب سره مناسبت نشته دې -

بعض شارحان وائى چه روايت كښې د نميمه يعنى د چغل خورئ ذكر دې او چغل خورى او

---

[1]) أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى ، كتاب الشهادات ، باب الرجل من أهل الفقه .... : ١٠\٢١٠ )

[2]) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى، سورة الحجرات : ١٦\٣٣٩ )

[3]) ٨٥ الجامع لأحكام القرآن للقرطبى، سورة الحجرات : ١٦\٣٣٩)

[4]) كتاب الحظر و الإباحة ، فصل فى البيع : ٥\٢٩٠ ،

[5]) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى ، سورة الحجرات : ١٦\٣٣٥ )

غيبت دواړه حرام كيدو كښې مشترك دى - (١)
خو صحيح خبره دا ده چه د روايت د باب په بعض طرق كښې د " غيبت " ذكر شته دې ، لكه چه امام بخارى رحمه الله په " الادب المفرد " كښې د حضرت جابر ﷺ روايت رانقل كړيدې چه د هغې الفاظ دا دى " أما أحدهما فكان يغتاب الناس..... " (٢)
او امام احمد او طبرانى په صحيح سند سره د حضرت ابوبكره نه روايت رانقل كړيدې ، د دې الفاظ دى " إنهما ليعذبان فى الغيبة والبول " (٣) دارنګه مسند احمد او طبرانى كښې د يعلى بن شبابه روايت كښې دى " إن النبى صلى الله عليه وسلم مر على قبر يعذب صاحبه ، فقال : إن هذا كان يأكل لحوم الناس " (٤)
دې روايتونو كښې تصريح ده چه قبر كښې چا ته عذاب وركيدلو د هغه د معذّب كيدو يو وجه غيبت وو ، دا روايتونه چه د امام بخارى رحمه الله په شرطونو برابر نه وو ، دې وجه نه امام د نميمه والا روايت ذكر كړو او نورو روايتونو ته ئې اشاره كول كافى اوګڼړل - (٥) روايت د باب كښې د " عسيب " لفظ راغلې دې ، بناخ ته وائى -
## ٤٧ = بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُورِ الْأَنْصَارِ
[٥٧٠٦] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُورِ الْأَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ [ر: ٣٥٧٨]
**د باب مناسبت** : رسول الله ﷺ فرمائى چه بنو نجار د انصارو په كورونو كښې د ټولو نه بهتر دى ، په ظاهره د دې باب د غيبت سره مناسبت نه معلوميږى خو شارحانو مناسبت بيان كړيدې او هغه دا دې چه امام بخارى رحمه الله دې خبرې ته اشاره كول غواړى چه د يو كس تعريف اوشى او ده لره په نورو خلقو باندې ترجيح وركړې ، نو ډير كرته دا ترجيح چه په كومو خلقو وركړې شوې وى هغه په دوى بده اولګي خو دا بد لګيدل په " ذكرك أخاك بما يكره " كښې نه ده داخل ، ځكه چه " ذكرك أخاك بما يكره " هغه وخت قابل د زجر او د تنبيه ده ، چه كله په دې څه شرعى حكم مرتب نه وى ، بغير د څه شرعى حكم او د وجه نه ناخوښه خبره كول په ممنوع غيبت كښې داخل ده ، خو كه د څه شرعى حكم او د مصلحت په وجه د چا متعلق څه ناخوښه خبره اوشى نو دا په غيبت كښې داخل نه ده - لكه چه حافظ ابن حجر

(١) ارشاد السارى : ١٣\٨١ ، عمدة القارى : ٢٢\١٢٨ ، فتح البارى : ١٠\٥٧٧ )
(٢) الأدب المفرد مع فضل الله الصمد ، باب الغيبة و قول الله تعالى و قول الله تعالى : و لا يغتب بعضكم بعضا : ١\١٩٨ ( رقم الحديث : ٧٣٥ )
(٣) مسند الإمام أحمد بن حنبل ، مسانيد أبى بكرة : ٥\٣٩ ، فتح البارى : ١٠\٥٧٧ )
(٤) فتح البارى : ١٠\٥٧٧ )
(٥) ارشاد السارى : ١٣\٧٣ )

او علامه قسطلانی لیکی : ومناسبة إيراد هذه الترجمة هنا ولم يذكر فيها شيء من الغيبة من جهة أن المفضل عليهم يكرهون ذلك، فيستثنى ذلك من عموم قوله : ذكرك أخاك بما يكره، إذ محل الزجر، إذا لم يترتب عليه حكم شرعي، فإن ترتب، فلا يكون غيبة، ولو كرهه المحدث عنه "[1]

## ٤٨=بَابُ مَا يَجُوزُ مِنْ اغْتِيَابِ أَهْلِ الْفَسَادِ وَالرِّيَبِ

[٥٧٠٧] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَخْبَرَتْهُ قَالَتْ اسْتَأْذَنَ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ائْذَنُوا لَهُ بِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ أَوْ ابْنُ الْعَشِيرَةِ فَلَمَّا دَخَلَ أَلَانَ لَهُ الْكَلَامَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قُلْتَ الَّذِي قُلْتَ ثُمَّ أَلَنْتَ لَهُ الْكَلَامَ قَالَ أَيْ عَائِشَةُ إِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْ تَرَكَهُ النَّاسُ أَوْ وَدَعَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ فُحْشِهِ [ر:٥٦٨٥]

ريب د ريبة جمع تهمت ته وائی ، امام بخاری رحمه الله مقصد دا دی ، چه که يو کس مشهور فاسق فاجر وی او د ده فسق او فجور مشهور او معروف وی ، نو دده غيبت کول جائز دی، چه د هغې تفصيل بيان کړې شويدې ، علامه انور شاه کشميری رحمه الله ليکی:

" وقد ذكر الشامي فيها المستثنيات، ملخصا يرجع عندي إلى كلمة واحدة، وهي أن الغيبة هي التي كانت لتبريد الصدر والتلذذ بها، وجعلها مشغلا، أما إذا كان بصدد ذكر حوادث الأيام وصروفها، فذكر فيها أشياء، لا يكون من الغيبة المحظورة، ولذا ترجم البخاري : "باب ما يجوز من اغتياب أهل الفساد والريب

شر الورى بمساوي الناس مشتغل مثل الذباب يراعي موضع العلل "[2]

يعنی علامه شامی رحمه الله د غيبت محرمه نه څه صورتونه مستثنی کړيدی خو ځما په نزد د ټولو حاصل دا دی چه که څوك د خوند اخستو دپاره غيبت باقاعده يو مشغولتيا اوګرځوی نو دا حرام او ناجائز دی خو که چا واقعات او حالات اورولو کښې د بعض څيزونو ذکر اوکړو ( د بعض خلقو د بدئ ذکر ضمنا راغلو ) نو دا په ممنوع غيبت کښې داخل نه دی . امام بخاری رحمه الله دا باب هم دی دپاره قائم کړيدی . يو عربی شاعر ډير ښه ويلی دی " بدتر دی هغه کس چه د خلقو په بدو بيانولو کښې مشغوله وی په شان د هغه مچ هميشه په ګنده ځائې ګرځی راګرځی " .

## ٤٩=بَابُ النَّمِيمَةُ مِنْ الْكَبَائِرِ

[٥٧٠٨] حَدَّثَنَا ابْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعْضِ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ فَسَمِعَ صَوْتَ

---

[1] ارشاد السارى : ١٣ \ ٧٣ )

[2] فيض البارى ، كتاب الأدب ، باب الغيبة : ٤ \ ٣٨٩ )

إِنْسَانَيْنِ يُعَذَّبَانِ فِي قُبُورِهِمَا فَقَالَ يُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ وَإِنَّهُ لَكَبِيرٌ كَانَ أَحَدُهُمَا لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَكَانَ الْآخَرُ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ ثُمَّ دَعَا بِجَرِيدَةٍ فَكَسَرَهَا بِكِسْرَتَيْنِ أَوْ ثِنْتَيْنِ فَجَعَلَ كِسْرَةً فِي قَبْرِ هَذَا وَكِسْرَةً فِي قَبْرِ هَذَا فَقَالَ لَعَلَّهُ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا [ر: ۲۱۳]

**چغل خوري لويه ګناه ده**: نميمة چغل خوري ته وائي ، بعض عالمان نميمة او غيبت يو ګرځوي چه دې دواړو کښې څه فرق نشته دې - (۱)

خو راجح دا ده چه دواړو کښې فرق شته ، نميمة يعنى چغل خوري ديته وائي چه يو سړې د بل کس حالت يا د ده څه خبره بل کس ته په نيت د فساد د ده د رضامندئ نه بغير نقل کړي ، برابره خبره ده چه ده ته معلومه وي او ګه نه وي او غيبت ديته وائي چه د چا شا په شا د ده بدي بيان کړې شي - (۲)

حافظ ابن حجر رحمه الله د دې دواړو په مينځ کښې نسبت د عموم خصوص من وجه بيان کړيدې ، عموم خصوص من وجه درې مادې غواړي ، دوه افتراقي او يو اجتماعي ، ګه د چا بدي د فساد په نيت سره بل کس ته د ده په موجودګئ کښې بيان کړې شي نو دا نميمه ده غيبت نه دې .... او چه د چا بدي دده شا په شا بغير د نيت د فساده بل کس ته بيان کړې شي نو دا غيبت دې نميمه نه ده ..... دا دواړه افتراقي مادې شوې ، دينه علاوه باقي صورتونه د اجتماعي مادې دي ، يعنى ګه د فساد نيت هم وي او مقول فيه موجود هم نه وي نو دواړه به جمع شي ، لکه چه دې د مذکوره تفصيل بيانولو نه پس ليکي :

"فامتازت النميمة بقصد الإفساد ، ولا يشترط ذلك في الغيبة ، و امتازت الغيبة بكونها في غيبة المقول فيه و اشتركتا فيما عدا ذلك" (۳)

## ۵۰- بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنَ النَّمِيمَةِ وَقَوْلِهِ هَمَّازٍ مَشَّاءٍ بِنَمِيمٍ [القلم: ۱۱]

وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ [الهمزة: ۱] يَهْمِزُ وَيَلْمِزُ وَيَعِيبُ وَاحِدٌ

[۵۷۰۹] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ حُذَيْفَةَ فَقِيلَ لَهُ إِنَّ رَجُلًا يَرْفَعُ الْحَدِيثَ إِلَى عُثْمَانَ فَقَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ (۴)

امام بخاري رحمه الله دې باب سره اشاره کول غواړي چه چغل خوري بعض صورتونو

---

۱) ارشاد الساري : ۱۳\۷۷ ، فتح الباري : ۱۰\۵۸۰)

۲) ارشاد الساري : ۱۳\۷۷ ، فتح الباري : ۱۰\۵۸۰)

۳) فتح الباري : ۱۰\ ۵۸۰)

۴) ۵۷۰۹) الحديث أخرجه مسلم في كتاب الإيمان ، باب بيان غلظ تحريم النميمة : ۱\۱۰۱ ( رقم الحديث : ۱۰۵ ) و أخرجه أبوداود في كتاب الأدب ، باب في القتات : ۴\۲۶۸ ...[بقيه برصفحه آئنده....

كښې جائز کيږي، مثلاً د جاسوسئ په ذريعه د کافرانو د حالاتو چغل خوري کول جائز دي[١]

**قوله: همّاز مشّاء بنميم:** دا سورة قلم کښې دی همّاز صيغه د مبالغه ده ، زيات طعن زنی ( پيغور ) کوونکې [٢]

مشّاء د مشي نه د مبالغه صيغه ده ، د تللو په معنی ، نميم چغل خور ته وائی ، اهل لغت ليکلې دی چه " نم " په اصل معنی کښې د حرکت کولو او د خوزيدو دې - [٣]

**قوله: ويل لکل همزة لمزة :** همزة او لمزة دواړه د مبالغې صيغې دی ، زيات پيغور ورکوونکې د عيبونو او زيات غيبت کوونکې -

بعض وائی لمز مخامخ عيب بيانوونکې ته وائی او همز شا په شا عيب بيانوونکی ته وائی ، بعضو د دې په عکس خبره کړيده

دلته امام بخاری رحمه الله د يهمز يلمز معنی د عيب بيانولو کړيده -

بيهقی د ابن جريج نه نقل کړيدی چه د همز تعلق د سترګو ، لاس وغيره سره دې او دلمز تعلق د ژبې سره دې - [٤]

په سند کښې تمام راويان کوفيان دی : "إن رجلا يرفع الحديث " حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې سړی نوم ما ته معلوم نه شو[٥]

**لايدخل الجنة قتات.....** قتات چغل خور ته وائی - [٦]

بعضو ويلې دی چه نمام هغه کس ته وائی چه کوم حاضر شی او خبره واوری او بيا ئې دينه پس د فساد خورولو په نيت سره نقل کوی او قتّات هغه ته وايی چه اوريدلې شوې خبره د فساد خورولو په نيت سره نقل کوی - [٧]

...

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ( رقم الحديث : ٤٢٨١ ) و أخرجه الترمذی فی کتاب البر و الصلة ، باب ما جاء فی النمام : ٤ \ ٣٧٥ ( رقم الحديث : ٢٠٢٦ ) و أخرجه النسائی فی کتاب التفسير ، سورة القلم : ٦ \ ٤٩٦ (رقم الحديث : ١١٦١٤ )

[١]) ارشاد الساری : ١٣ \ ٧٦، عمدة القاری : ٢٢ \ ١٢٩ )

[٢]) النهاية لابن الأثير ، مادة " همز " : ٥ \ ٢٧٣ ، مجمع بحار الأنوار : ٥ \ ١٦٨ )

[٣]) تاج العروس ، مادة نم : ١٠ \ ٨٥ ، لسان العرب : ١٢ \ ٥٩٢ )

[٤]) أخرجه البيهقی فی شعب الإيمان ، باب فی تحريم أعراض الناس : ٥ \ ٣٠٩ ( رقم الحديث : ٦٧٥٢ )

[٥]) فتح الباری : ١٠ \ ٥٧٩ )

[٦]) مجمع بحار الأنوار : ٤ \ ٢٠٥ ، النهاية لابن الأثير ، باب القاف مع التاء : ٤ \ ١١ )

[٧]) فتح الباری : ١٠ \ ١٠ \ ٥٨٠ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ٧٦ ، ٧٧ )

## ۵۱ = باب قول الله تعالی واجتنبوا قول الزور

[۵۷۱۰] حدثنا أحمد بن یونس حدثنا ابن أبي ذئب عن المقبري عن أبيه عن أبي هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من لم يدع قول الزور والعمل به والجهل فليس لله حاجة أن يدع طعامه وشرابه قال أحمد أفهمني رجل إسناده [ر: ۱۸۰۴]

امام راغب اصفهانی رحمه الله فرمائی چه د زور معنی دروغ دی (۱) روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمایی چه کوم سړی دروغ ویل او د دې مطابق عمل کول او جهل پرې نه خودلو نو الله تعالی ته دده د خوراك څښاك پریخودو هیڅ حاجت نشته دې -

**قوله: قال أحمد: أفهمني رجل إسناده:** احمد بن یونس وائی چه یو سړی څه د حدیث په سند پوه کړم ، مطلب دا دې چه کله دوی د خپل شیخ ابن ابي ذئب نه حدیث واوریدو نو په سند دوی پوه نه شو ، نو دوی سره یو بل سړې ناست وو دغه سړی دې په سند پوه کړو -

امام ابوداود رحمه الله په سنن کښې دا روایت نقل کوی او بالکل ددې په عکس ئې خبره نقل کړیده هلته د روایت په آخر کښې دی "وقال أحمد: فهمت إسناده من بن أبي ذئب و أفهمني الحديث رجل إلى جنبه، أراه ابن أخيه" ..... (۲)

د دې حاصل دا دې چه حدیث ئې د بل سړی نه او سند ئې د ابن ابی ذئب نه ازده کړو او دلته د بخاری په روایت کښې دی چه حدیث ئې د ابن ابی ذئب نه او سند ئې د بل سړی نه ازده کړو - ممکن ده چه دا حدیث په دواړه رنګه احمد بن یونس روایت کړې وی - (۳)

علامه کرمانی رحمه الله د أفهمني رجل إسناده مطلب دا بیان کړیدې چه ما نه دا سند هیر شوې وو ، یو بل سړی ما ته دا سند یاد کړو - (۴)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا مطلب صحیح نه دې بلکه صحیح مطلب هم هغه دې چه کوم بره بیان کړې شو - (۵)

د حدیث شریف مطلب دا دې چه یو سړی روژه خو اوساتله خو دروغ وائی او په دروغو عمل کوی نو الله تعالی ته د داسې روژې هیڅ ضرورت نشته دې ، یعنی الله تعالی داسې روژه نه قبلوی (۶)

---

۱) قال الإمام الراغب الأصفهاني: وقيل للكذب زور لكونه مائلا عن جهته ، المفردات في غرائب القرآن ، كتاب الزاي و ما يتصل بها: ۲۱۷)

۲) سنن أبي داود ، كتاب الصوم ، باب الغيبة للصائم : ۲\۳۰۷ ( رقم الحديث : ۲۳۶۲ )

۳) فتح الباري : ۱۰\۵۸۱)

۴) شرح البخاري للكرماني : ۲۱\۱۹۷)

۵) فتح الباري : ۱۰\۵۸۱)

۶) فتح الباري : ۱۰\۵۸۱)

علامه توربشتي رحمه الله په شرح د مشكات كښې ليكي : "أي لا يبالي بعمله ذلك، لأنه أمسك عما أبيح له في غير حين الصوم، ولم يمسك عما حرم عليه في سائر الحالتين" (۱)
( يعنى الله تعالى ته د ده د عمل پروا نشته دې ځكه چه ده د خوراك او د اوبو او د جماع نه خو ځان بند كړو چه كوم د روژې نه علاوه په عام حالاتو كښې مباح دى خو د دروغو نه ئې ځان بند نه كړو چه كوم په تمامو وختونو كښې حرام دې -
حديث د باب په كتاب الصوم كښې تير شويدې -(۲)

## ٥٢=بَاب مَا قِيلَ فِي ذِي الْوَجْهَيْنِ

[٥٧١١] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجِدُ مِنْ شَرِّ النَّاسِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِنْدَ اللَّهِ ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَهَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ [ر: ٦٧٥٧]

دې باب كښې د هغه كس چه دوه رخې اختياروى مذمت كړې شويدې ، حديث دباب كښې دى . چه د قيامت په ورځ به د الله تعالى په نزد ته هغه كس ډير بد بيا مومې چه دوى ته په يو رُخ سره راځى او هغوى ته په بل رُخ سره راځى -
يعنى څه خلقو ته راشى هغوى ته وائى څه د ستاسو ملګرې يم او د ستاسو حمايت كريم او د هغه نورو مخالف يم ، بيا نورو ته لاړ شى هغوى ته خپل محبت ښكاره كوى ..... ظاهره ده چه دا نفاق دې - (۳)

يو بل طريق كښې دى الذي يأتي هؤلاء بحديث هؤلاء، و هؤلاء بحديث هؤلاء (۴) يعنى د خلقو خبرې يو بل ته رسوى او اراده ئې د فساد وى د داسې كس په باره كښې وعيد راغلې دې -

## ٥٣=بَاب مَنْ أَخْبَرَ صَاحِبَهُ بِمَا يُقَالُ فِيهِ

[٥٧١٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِسْمَةً فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ الْأَنْصَارِ وَاللَّهِ مَا أَرَادَ مُحَمَّدٌ بِهَذَا وَجْهَ اللَّهِ فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَتَمَعَّرَ وَجْهُهُ وَقَالَ رَحِمَ اللَّهُ مُوسَى لَقَدْ أُوذِيَ بِأَكْثَرَ مِنْ هَذَا فَصَبَرَ [ر: ٢٩٨١]

د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه كه يو سړې خپل ملګرى ته د ده باره كښې ويلې شوې څه خبره اووائى نو دا جائز ده او په سنت كښې ددې اصل شته لكه چه روايت د باب كښې دى حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د خلقو هغه خبرې رانقل كړې

۱) شرح الطيبى على مشكاة المصابيح . كتاب الصوم . باب تنزيه الصوم : ٤ \ ١٥٧ (رقم الحديث : ١٩٩٩)
۲) صحيح البخارى، كتاب الصوم ،باب من لم يدع قول الزور و العمل به فى الصوم ( رقم الحديث : ١٨٠٤)
۳) ارشاد السارى : ١٣ \ ٧٨ . فتح البارى : ١٠ \ ٥٨٢ )
۴) فتح البارى : ١٠ \ ٥٨٢ . ارشاد السارى : ١٣ \ ٧٧ )

چه د دوی باره کښې ویلې شوې وو او رسول الله ﷺ حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ته غصه نه شو او وې فرمائل چه دا تکلیف ورکوونکې خبره ده خو دینه زیات تکلیف خما نه وړاندې موسی علیه السلام ته د ده امتیانو په دینه سختتو خبرو ورکړې وو - (١)

مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله په "لامع الدراری" کښې فرمائی : **"والفرق بينه وبين النميمة أن المقصود ههنا الإصلاح و دفع الشر، وفي النميمة الإفساد وإثارة الشر، فجاز ذلك دونها"** (٢)

یعنی دې صورت کښې هم د خلقو خبره رانقل کیږی خو دا په چغل خوزئ کښې داخل نه ده . ځکه چه چغلخوزئ کښې نیت د اصلاح نه وی ، بلکه د فساد او د شر د خوررولو اراده وی او دلته د اصلاح او د دفع د شر نیت وی ... علامه قسطلانی رحمه الله د حدیث د باب په باره کښې فرمائی : **ويفهم منه أن الكبراء من الخواص قد يعز عليهم ما يقال من الباطل لما في فطر البشر، إلا أن أهل الفضل يتلقون ذلك بالصبر الجميل اقتداء بالسلف ليتأسى بهم الخلف"**

یعنی دینه داخبره معلومیږی چه په خواصو باندې هم بعض خبرې سختې لګی او دا سختې لګیدل د انسان په فطرت کښې داخل دی خو دوی صبر کوی دې دپاره چه روستو راتلونکې خلق د دوی تقلید اوکړی (٣) حدیث کښې دی تمعر وجهه یعنی د دوی مخ رنګ بدل شو -

## ۵۴= بَاب مَا يُكْرَهُ مِنْ التَّمَادُحِ

[۵۷۱۳] **حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُثْنِي عَلَى رَجُلٍ وَيُطْرِيهِ فِي الْمِدْحَةِ فَقَالَ أَهْلَكْتُمْ أَوْ قَطَعْتُمْ ظَهْرَ الرَّجُلِ** [ر: ۲۵۲۰]

[۵۷۱۴] **حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَجُلًا ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَثْنَى عَلَيْهِ رَجُلٌ خَيْرًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْحَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ يَقُولُهُ مِرَارًا إِنْ كَانَ أَحَدُكُمْ مَادِحًا لَا مَحَالَةَ فَلْيَقُلْ أَحْسِبُ كَذَا وَكَذَا إِنْ كَانَ يُرَى أَنَّهُ كَذَلِكَ وَحَسِيبُهُ اللَّهُ وَلَا يُزَكِّي عَلَى اللَّهِ أَحَدًا قَالَ وُهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ وَيْلَكَ** [ر: ۲۵۱۹]

تمادح مصدر دې د باب د تفاعل . یعنی د یو بل تعریف کول -

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا دواړو صورتونو ته عام دې ، برابره خبره ده چه دواړه د یو بل تعریف ( صفت ، ثناء ) اوکړی . یا دیو طرف نه تعریف وی لکه چه حدیث د باب کښې د یو جانب نه په تعریف کولو باندې دوی منع اوفرمائله - (٤)

١) الابواب والتراجم : ٢\١١٥ ، ارشاد الساری : ١٣\٧٩ )

٢) لامع الدراری علی جامع البخاری : ١٠\٢٢ )

٣) ارشاد الساری : ١٣\٧٩ )

٤) فتح الباری : ١٠\٥٨٣ )

خو علامه عينى رحمه الله د دوى ترديد كړيدې ، هغه فرمائى چه د ترجمة الباب مقصد دا دې چه په تعريف كښې دې د حد نه زياته مبالغه او تجاوز اونكړې شى چه دا مكروه دى لكه چه حديث د باب كښې دى، د يو بل تعريف كول مراد نه دى ځكه چه هغه باب د ممادحة يعنى باب د مفاعلة سره مستعمل دې او دلته تمادح باب د تفاعل دې ، هغه فرمائى :

" هذا باب فى بيان ما يكره من التمادح بين الناس الذى فيه الإطراء و مجاوزة الحد ، و هو المراد من الترجمة، لأن الحديث يدل على هذا ، قال بعضهم : هو مدح كل من الشخصين الآخر ، قلت : ليس كذلك ، هذا الذى قاله باب المفاعلة ، وهذا من باب التفاعل لمشاركة القوم ، و من له أدنى مسكة من الصرف يعرف هذا " - ([1])

د چا په تعريف كښې مبالغه كول صحيح نه دى ، د دې څو خرابئ دى ، اول خو مبالغه د حقيقت خلاف ده ، دويم دې سره سړى كښې عجب او ځان ته خوښوالې پيدا كيدو يره ده ، هغه به دا مبالغه حقيقت اوګڼړى او د خپل ځان باره كښې به په غلط فهمئ كښې مبتلاء شى - ([2])

خو كه د يو سړى داسې تعريف اوشى چه دې د هغې مستحق او غالب ګمان دا وى چه دا كس به په عجب او ځانته خوښيئ كښې مبتلاء نه شى نو داسې تعريف جائز دې - ([3])

يو مرفوع حديث كښې رسول الله ﷺ فرمائى " أحثوا التراب فى وجوه المداحين " ([4]) ( د تعريف كوونكو په مخ باندې خاوره اولئ ) .... خو عالمانو ليكلې دى چه دا د هغه مداحينو په باره كښې دى چه كوم غلط او د دروغو تعريفونه كوى - ([5])

ځكه چه په خپله د رسول الله ﷺ په اشعارو او په خطبو كښې تعريف شويدې ، او دوى په دې څه بد نه دى ګڼړلې، د حضرت حسان بن ثابت او د كعب بن زهير قصائد او اشعار مشهور دى - ([6])

**قوله: يطريه فى المِدْحَةِ:** إطراء په تعريف كښې د مبالغه كولو په معنى ده ، مِدْحَة ( د ميم په كسره او دال په سكون سره ) تعريف ته وائى - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايى چه ددې

---

[1]) عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۳۲ )

[2]) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۸۳ ، ۵۸٤ ، ارشاد السارى : ۱۳ \ ۸۰ )

[3]) فتح البارى : ۱۰ \ ۵۸۷ ، ارشاد السارى : ۱۳ \ ۸۱ )

[4]) الأدب المفرد مع فضل الله الصمد ، باب يحثى فى وجوه المداحين : ۱ \ ٤۳۳ ( رقم الحديث : ۳٤۱ ) أخرجه مسلم فى كتاب الزهد ، باب النهى عن المدح إذا كان فيه إفراط : ٤ \ ۲۲۹ ( رقم الحديث : ۳۰۰۲ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب الزهد ، باب ما جاء فى كراهية المدح و المداحين : ٤ \ ۵۹۹ ( رقم الحديث : ۲۳۹۳ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى كراهية التمادح : ٤ \ ۲۵٤ ( رقم الحديث : ٤۸۰٤ ) و أخرجه الإمام أحمد فى مسانيد المقداد بن الأسود : ۶ \ ۵ ).....

[5]) عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۲۳ ، فتح البارى : ۱۰ \ ۵۸۵ )

[6]) عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۲۳ )

دواړو سړو نومونه ما ته په صراحت معلوم نه شو ، خو د امام بخاری رحمه الله د " الادب المفرد " د يو روايت نه معلوميږی چه تعريف کوونکی دا سړی محجن بن الدرع وو او چه د چا ئې تعريف کولو نو غالبا دا عبدالله ذو البجادين مزنی وو - (۱)

**قوله: قال وهيب عن خالد : ويلك :** شعبه خو د خالد بن مهران نه " ويحك " نقل کړيدې ، خو وهيب بن خالد ويلك نقل کړيدې ، دا تعليق نه دې ، دا د ماقبل سند سره متصل دې -

دې حديث کښې د تعريف کولو يو ادب بيان کړې شويدې چه تعريف کولو کښې د احتياط تقاضا هم دا ده چه سړې اووائی څما خيال کښې دې داسې دې .... ځکه چه ممکن ده چه دې کوم تعريف کوی حقيقت کښې دا سړی د دې مستحق نه وی او د ده خيال د حقيقت سره مطابقت نه خوری -

حديث د باب په شهادات کښې تير شويدې - (۲)

## ٥٥=بَاب مَنْ أَثْنَى عَلَى أَخِيهِ بِمَا يَعْلَمُ

وَقَالَ سَعْدٌ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِأَحَدٍ يَمْشِي عَلَى الْأَرْضِ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ [ر:٣٦٠١]

[٥٧٢٨] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ ذَكَرَ فِي الْإِزَارِ مَا ذَكَرَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ إِزَارِي يَسْقُطُ مِنْ أَحَدِ شِقَّيْهِ قَالَ إِنَّكَ لَسْتَ مِنْهُمْ [ر:٣٤٦٥]

دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا واضحه کړيده چه که په کوم مسلمان رور کښې دې واقعی يو صفت وی او سړی ته د دې علم وی نو دا صفت بيانول " تمادح مکروه " کښې داخل نه دې بلکه دا جائز دی (۳)، امام بخاری رحمه الله د حضرت سعد بن ابی وقاص قول نقل کړيدې چه کوم موصولا په کتاب المناقب ، باب مناقب عبد الله بن سلام ﷺ کښې تيرشويدې .هغه فرمائی چه ما د يوکس باره کښې هم چه دې د زمکې دپاسه ګرځی د رسول الله ﷺ نه دا نه دی اوريدلې چه دې جنتی دې ماسوا د عبد الله بن سلام ﷺ په باره کښې..... خپله حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ په عشره مبشره کښې وو ، خو دوی د خپل ځان باره کښې د رسول الله ﷺ نه په خپله دا به نه وو اوريدلې - (۴)

---

(۱) أخرجه مسلم فی كتاب الزهد ، باب النهی عن المدح إذا كان فيه إفراط ..... ( رقم الحديث : ٣٠٠٢ ) و أخرجه الترمذی فی كتاب الزهد ، باب ما جاء فی كراهية المدح و المداحين : ٤ \ ٥٩٩ ( رقم الحديث : ٢٣٩٣ ) و أخرجه أبوداود فی كتاب الأدب ، باب فی كراهية التمادح : ٤ \ ٢٥٤ ( رقم الحديث : ٤٨٠٤ ) و أخرجه الإمام أحمد فی مسانيد المقداد بن الأسود : ٦ \ ٥)

(۲) صحيح البخاری ، كتاب الشهادات ، باب ما يكره من الإطناب فی لامدح .... ( رقم الحديث : ٢٥٢٠ )

(۳) فتح الباری ١٠ | ٥٨٧ ، ارشاد الساری ١٣ | ٨١ _

(۴) ارشاد الساری : ١٣ \ ١ ، عمدة القاری : ٢٢ \ ١٣٣ )

دویم روایت کتاب اللباس، باب قول الله تعالی (قل من حرم زینة الله ...) کښې تیر شویدې، دوی حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه ته اوفرمائل: "إنك لست منهم" ... (ته په متکبرینو کښې نه ئې) دې دواړو روایتونو کښې رسول الله ﷺ د حضرت عبد الله بن سلام او د حضرت صدیق اکبر صفت بیان کړیدې، معلومه شوه چه د یو مسلمان صفت بیانول ممنوع نه دې -

## ۵۶=بَابُ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالَى إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ [النحل:۹۰]

وَقَوْلِهِ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَى أَنْفُسِكُمْ [یونس:۲۳]
ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ [۶۰] وَتَرْكِ إِثَارَةِ الشَّرِّ عَلَى مُسْلِمٍ أَوْ كَافِرٍ

[۵۷۲۶] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَكَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَا وَكَذَا يُخَيَّلُ إِلَيْهِ أَنَّهُ يَأْتِي أَهْلَهُ وَلَا يَأْتِي قَالَتْ عَائِشَةُ فَقَالَ لِي ذَاتَ يَوْمٍ يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللّٰهَ أَفْتَانِي فِي أَمْرٍ اسْتَفْتَيْتُهُ فِيهِ أَتَانِي رَجُلَانِ فَجَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رِجْلَيَّ وَالْآخَرُ عِنْدَ رَأْسِي فَقَالَ الَّذِي عِنْدَ رِجْلَيَّ لِلَّذِي عِنْدَ رَأْسِي مَا بَالُ الرَّجُلِ قَالَ مَطْبُوبٌ يَعْنِي مَسْحُورًا قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ قَالَ لَبِيدُ بْنُ أَعْصَمَ قَالَ وَفِيمَ قَالَ فِي جُفِّ طَلْعَةٍ ذَكَرٍ فِي مُشْطٍ وَمُشَاقَةٍ تَحْتَ رَعُوفَةٍ فِي بِئْرِ ذَرْوَانَ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَذِهِ الْبِئْرُ الَّتِي أُرِيتُهَا كَأَنَّ رُءُوسَ نَخْلِهَا رُءُوسُ الشَّيَاطِينِ وَكَأَنَّ مَاءَهَا نُقَاعَةُ الْحِنَّاءِ فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأُخْرِجَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَهَلَّا تَعْنِي تَنَشَّرْتَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا اللّٰهُ فَقَدْ شَفَانِي وَأَمَّا أَنَا فَأَكْرَهُ أَنْ أُثِيرَ عَلَى النَّاسِ شَرًّا قَالَتْ وَلَبِيدُ بْنُ أَعْصَمَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي زُرَيْقٍ حَلِيفٌ لِيَهُودَ [ر:۳۰۰۴]

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د قرآن کریم د درې آیتونو ذکر اوفرمائلو، ړومبی آیت د سورة نحل دې (إن الله يأمر بالعدل والإحسان)
مولانا شبیر احمد عثماني رحمه الله لیکی دیکښې د عدل او د احسان او د رشته دارانو د حقونو اداء کولو حکم ورکړې شویدې - قرآن ته تبیانا لکل شيء ویلې شویدې - دا آیت د دې یو نمونه ده - ابن مسعود فرمائی چه الله تعالی د هر یو څیز د خیر او د شر بیان په دې آیت کښې راجمع کړو - ګویا هیڅ یو عقیده، خوي، نیت، عمل، معامله بنه وی او که بد داسې نشته دې چه امرا یا نهیا ددې تر لاندې داخل نه وی - بعض عالمان لیکي چه که قرآن کریم کښې بل آیت نه وې نو یواځې دا آیت هم "تبیانا لکل شيء" د ثبوت دپاره کافی وو - شاید دې وجه نه خلیفه راشد حضرت عمر بن عبد العزیز د جمعې په خطبه کښې دا درج

کړو او د امت دپاره ئې اسوه حسنه قائم کړه - آیت کښې د درې څیزونو ئې امر فرمائلې دې - عدل ، احسان ، ایتاء ذی القربی ... د " عدل " مطلب دا دې چه د سړې تمام عقائد ، اعمال ، اخلاق ، معاملات ، جذبات د اعتدال او د انصاف په تله تللې شوې وی ، د افراط او د تفریط په وجه یو چابړې د تلې هم نه خکته وی او نه بره - د سخت نه سخت دښمن سره چه هم معامله کوی نو چه انصاف لمن پرې نږدې ، د ده ظاهر او باطن یو شان وی چه کومه خبره د خپل ځان دپاره نه خوښه وی هغه د خپل ورور دپاره هم نه خوښوی - د " احسان " معنی دا ده چه انسان په خپله د نیکئ او ښو مجسم نمونه شی او د نورو ښه غواړی ، د مقام د عدل او د انصاف نه لږ اوچت شی د فضل او د عفو او د لطف او د رحمت خوئې اختیار کړی ، د فرض د اداء کولو نه پس تطوع او تبرع طرف ته قدمونه اوچت کړی ، د انصاف سره مروت اوساتی او دا یقین اولری چه څه نیکی کوی الله تعالی هغه وینی - د هلته نه به د نیکئ جواب ضرور په نیکئ ملاویږی - دا دواړه خویونه ( یعنی عدل او احسان یا په نورو الفاظو سره انصاف او سړیتوب ) خو د خپل نفس او د هر یو خپل او پردی او د دوست او د دښمن سره متعلق وو ، خو د رشته دارانو حق د پردو نه لږ زیات دې چه تعلقات د رشته دارئ قدرت یو بل پورې تړلې دی نو د دې خیال پریخودل نه دې پکار بلکه د رشته دارانو سره همدردی او دوی سره مروت او احسان کول د پردو په نسبت زیات کول پکار دی - صله رحمی یو مستقل نیکی ده چه کوم د رشته دارانو او د ذوی الارحامو دپاره درجه په درجه استعمالول پکار دی- ګویا د احسان نه پس ئې د ذوی القربی په تخصیص سره ذکر اوکړو په دې ئې خبردارې ورکړو چه عدل او انصاف او خوئې د ټولو دپاره یو شان دې خو د مروت او د احسان کولو په وخت بعض ځایونو کښې د بعضو سره زیات رعایت او اهتمام کول پکار دی ، د مراتبو فرق هیرول یو قسم د قدرت د قائم کړې قوانینو نه انحراف کول دی ، اوس چه د دې درې واړو لفظونو په جامعیت باندې نظر اوساتی نو پوه انسان فیصله کولې شی چه هغه کوم داسې فطری ښه خوئ او نیکی او صفت په دنیا کښې پاتې دې چه هغه د دې درې فطری اصولو د احاطې نه بهر دی -

دې آیت کریمه کښې ئې منع هم د درې څیزونو نه کړیده ، فحشاء ، منکر ، بغی ، ځکه چه انسان کښې درې قوتونه دی چه د هغې بې ځایه او په غلط استعمال سره ټولې خرابئ او بدئ پیدا کیږی ، قوت بهیمیه شهوانیه ، قوت وهمیه شیطانیه ، قوت غضبیه سبعیه ، غالبا په " فحشاء " سره هغه د بې حیائې خبرې مراد دی چه د کوم منشاء د شهوت او د بهیمیت افراط وی او " منکر " د معروف ضد دې یعنی د نامعقول کار چه د هغې نه فطرت سلیمه او صحیح عقل انکار کوی - ګویا د قوت وهمیه شیطانیه په غلبې سره د قوت عقلیه ملکیه دباویږی - دریم څیز " بغی " دې یعنی سرکشی کول او د حد نه وتل ظلم او زیاتئ ته ملا تړل د درندګانو په شان خوړلو او خېرې کولو ته ورمنده وهل او د نورو د ځان او د مال او د عزت ناموس وغیره اخستو دپاره ناحق دست درازی کول ، دا قسم ټول حرکتونه کول د قوت سبعیه غضبیه په بې ځایه استعمال سره پیدا کیږی ، حاصل دا چه په آیت کښې ئې تنبیه ورکړیده چه انسان تر کومې دغه درې قوتونه په قابو کښې او نه ساتی او قوت عقلیه ملکیه د دې ټولو حاکم نه کړی نو دې مهذب او پاک نه شی کیدې -

اکثم بن صفی چه دا آیت کریمه واوریدو نو ده خپل قوم ته اوویل "خه وینم چه دا پیغمبر د تمامو ښو او د اعلی اخلاقو تعلیم ورکوی او د بدو اخلاقو او اعمالو نه منع کول کوی ، نو تاسو دده په منلو کښې تُندی اوکړئ ، فكونوا في هذا الأمر رؤوسا و لا تكونوا فيه أذنابا ( يعنی تاسو دې سلسله کښې سر جوړ شئ او تاسو لکئ مه جوړيږئ ) حضرت عثمان بن مظعون فرمائی چه هم دا آیت کریمه ما واوریدلو نو خما زړه کښې ایمان مضبوط شو او د محمد ﷺ محبت مې په زړه کښې ځائې اونیولو " (١)

دویم آیت د سورة یونس دې ( إنما بغيكم على أنفسكم ) يعنی د ستاسو بغاوت او سرکشی به په خپله د ستاسو دپاره وبال او عذاب جوړ شی ، او دریم آیت کریمه د سورة حج دې ( ثم بغي عليه لينصرنه الله ) يعنی کُه د چا سره ظلم شوې وی د هغه به الله تعالی مدد او نصرت اوکړی -

**قوله: وترك إثارة الشرّ على مسلم أو كافر:** إثارة په معنی د رااوچتولو او د رابرخیره کولو دې يعنی د یو مسلم او د کافر خلاف شر رابرخیره کول پریخودل امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې بیان کړیدې -

د باب لاندې امام بخاری رحمه الله هغه حدیث ذکر کړیدې چه هغې کښې په رسول الله ﷺ د جادو کیدو واقعه ذکر شویده ، د دې تفصیل کتاب الطب ، باب " سحر " و باب هل یستخرج السحر کښې تیر شویدې - (٢)

**د حدیث د ایاتونو سره مناسبت:** د حدیث د آیتونو سره بیانولو کښې شارحین لیکی چه دې آیتونو کښې الله تعالی د بغی او د ظلم نه منع کړیده او دا ئې خودلې ده چه د سرکشئ نقصان خپله سرکشئ او ظلم کوونکی ته واپس کیږی او دا چه د مظلوم به الله جل شانه امداد کوی ...... د الله تعالی د طرفه د مظلوم دپاره د مدد او د نصرت راتلل تقاضا کوی چه د الله په دې احسان او فضل باندې شکر ادا کړې شی ، او د دې شکر یو صورت دا دې چه دا ظالم معاف کړې ، لکه چه روایت کښې رسول الله ﷺ جادو کوونکی کس معاف کړو او ورته ئې اوفرمائل " أما أنا فأكره أن أثير على الناس شرا " ( په خلقو کښې شر رااوچتول ما ته خوښ نه دی )

حاصل دا دې چه آیتونو کښې د فضل او د احسان او د الله تعالی د امداد ذکر دې چه د هغې تقاضا شکر دې او د مظلوم د ظالم نه بدله نه اخستل هم د دې شکر یو صورت دې (٣)

حافظ ابن حجر رحمه الله یو بل مناسبت بیان کړیدې هغه لیکی :

**ويحتمل أن تكون مطابقة الترجمة للآيات و الحديث من جهة أنه ترك استخراج السحر خشية أن يثور على الناس منه شر، فسلك مسلك العدل في أن لا يحصل لمن لم يتعاط السحر شيء من أثر الضرر الناشيء عن**

---

(١) تفسير عثمانی : ٣٦٧ ، سورة النحل : الآية : ٩٠ )

(٢) ١٨ كشف الباری : باب السحر : ١٠٤ ، ١١٠ )

(٣) فتح الباری : ١٠\٥٨٨ ، ارشاد الساری : ١٣\٨٣ ، عمدة القاری : ٢٢\١٣٤ )

السحر شرا، وسلك مسلك الإحسان فى ترك عقوبة الجانى" (١)

د دې حاصل دا دې چه آيت كريمه كښې د عدل او احسان ذكر دې او رسول الله ﷺ هم د جادو په دې واقعه كښې په عدل او په احسان دواړو عمل كړيدې ، په عدل داسې چه د جادو دا واقعه دوى مشهوره نه كړه دې دپاره چه كوم خلق دوى كښې شريك نه دى چه دوى كښې شر او فساد خور نه شى ، ځكه چه كه دوى د سحر كوونكو يهوديانو نومونه خودلې وې نو مسلمانانو به د دوى خلاف كارروائى كوله نو دا معامله به نزاع او جنګ او جدل ته رسيدلې وه ... دې وجه نه دا معامله دوى دباو كړه او د عدل او د انصاف لار ئې اختيار كړه ، بل طرف ته ئې د جادو كولو مجرم معاف كړو په احسان ئې عمل اوكړو داسې په آيت كريمه كښې چه د كوم عدل او احسان حكم دې په دې باندې دوى عمل اوكړو -

## ٥٧- بَابُ مَا يُنْهَى عَنِ التَّحَاسُدِ وَالتَّدَابُرِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ [٥]

[٥٧١٧] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا [ر:٤٨٤٩]

[٥٧١٨] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ [ر:٥٧٢٦]

دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د دوه څيزونو ممانعت بيان كړيدې ، يو د حسد او بل د تدابر -

**د حسد معنى او ددې علاج :** د حسد معنى ده چه څوك په نعمت او په خوشحالو كښې اووينې او د دې د زوال تمنا اوكړې ، دا جائز نه ده (٣)

خو كه څوك دې په نعمت كښې اوليدلو او دې سره دې دا جذبه او تمنا پيدا شى چه ما سره دې هم داسې نعمت وى نو ديته غبطه وائى او دا جائز دې- (٤)

حسد يو مهلكه باطنى بيمارى ده ، د دې په وجه انسان هيڅ بې هيڅه چه د خلقو سره د الله

---

١) فتح البارى : ١٠\٥٨٨)

٢) ٥٧١٨) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الأدب ، باب الهجرة ( رقم الحديث ٥٧٢٦ ) و أخرجه مسلم فى كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب تحريم التحاسد و التباغض و التدابر : ٤\١٩٨٣ ( رقم الحديث : ٢٥٥٩ )

٣) فتح البارى : ١٠\٥٩١ ، عمدة القارى : ٢٢\١٣٦ ، ارشاد السارى : ١٣\٨٣)

٤) فتح البارى ، كتاب العلم ، باب الإغتباط فى العلم و الحكمة : ١\١٦٧ ، عمدة القارى ، كتاب العلم باب الإغتباط فى العلم و الحكمة : ٢\٥٧ ، معارف القرآن : ٨\٨٤٩)

نعالى نعمتونه اووينى نو دې سوزي او ويلې کيږي -
صوفيان حضرات د حسد علاج دا ذكر كوى چه حاسد دې په زړه باندې جبر اوكړى او څو خله دې په مختلفو مجلسونو كښې د محسود تعريف دې اوكړى ، او ده دپاره دې دعا اوغواړى نو داسې به رو رو د ده حسد ختميږى - (١)

په قرآن كريم كښې د حاسد د حسد د شر نه پناه غوستې شويده (ومن شر حاسد إذا حسد) "إذا حسد" معنى ده إذا أظهر حسده وعمل بمقتضاه يعنى چه حاسد كله خپل حسد ظاهر كړى او ددې مطابق د محسود خلاف د دښمنۍ شروع اوكړى ، ځكه چه د اظهار د حسد نه وړاندې محسود ته د حاسد د شر نه څه نقصان نه شى رسيدې - (٢)

د تدابر معنى علامه ابن اثير ليكلې ده : التدابر: هوأن يعطى كل واحد من الناس أخاه دبره وقفاه، فيعرض عنه ويهجره (٣)
يعنى چه سړې خپل رور ته شا واړوى او ده نه اعراض اوكړى او دې پريږدى -
علامه هروى د تدابر ترجمه په تقاطع سره كړيده ، وائى : تدابر القوم أى أدبر كل واحد عن صاحبه يعنى چه قطع تعلق اوكړې شى (٤) امام مالك رحمه الله په موطاء كښې فرمائى أحسب التدابر إلا الإعراض عن المسلم يدبر عنك بوجهه فتدبر عنه بوجهك (٥) يعنى د تدابر معنى دا ده چه د مسلمان نه اعراض اوكړې او مخ واړولې شى -

**قوله:** حدثنا بشر بن محمد..... : حضور اكرم ﷺ فرمائى چه تاسو د بدګمانۍ نه بچ شئ ځكه چه بدګمانى د ټولو نه زياته دروغژنه خبره ده او مه د چا عيبونه تلاش كړې او مه تجسس كوئ او مه د يو بل سره حسد كوئ او مه د يو بل سره قطع تعلق كوئ او مه د يو بل سره بغض ساتئ اے د الله بندګانو خپلو كښې رونړه شئ -

**قوله:** إياكم والظن : د ظن نه بدګمانى مراد ده يعنى صرف د ګمان په بنياد په چا تهمت مه لګوئ - حديث كښې ئې " ظن " ته " أكذب الحديث " ويلې دې ، حال دا دې چه كذب او صدق د قول صفت دې او د " ظن " تعلق د قول سره نه دې -
د دې جواب دا وركړې شويدې چه دلته د كذب نه خلاف واقع مراد دې ، برابره خبره ده چه دا قول وى او كه فعل وى - (٦)

---

(١) بهشتى زيور ، حصه هفتم ، ٤١ ، دارنګه اوګورئ تربيت السالك : ١١ \ ٣٢٨)
(٢) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى ، سورة الفلق : ٢ \ ٢٥٩ ، روح المعانى ، سورة الفلق : ١٥ \ ٣٢٧)
(٣) النهاية لابن الأثير ،مادة " دبر " : ٢ \ ٩٧)
(٤) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٣٦ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٩٢ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٨٥)
(٥) الموطاء للإمام مالك ، كتاب الجامع ، باب ما جاء فى المهاجرة : ٧٠٦)
(٦) عمدة القارى: ٢٢ \ ١٣٦، فتح البارى: ١٠ \ ٥٩١ ،ارشادالسارى : ١٣ \ ٨٥ ، شرح الكرمانى : ٢١ \ ٢٠٢)

او دا هم ويلې شي چه د ظن نه مراد ، د ظن نه پيدا كيدونكې قول دې مجازا ديته ئې ظن ويلې دي (۱)

**قوله: ولا تحسّسوا ولا تجسّسوا:** علامه كرمانى رحمه الله فرمايى چه تحسس او تجسس دواړه په يو معنى دى - (۲)

د ابراهيم حربى او د ابن الانبارى هم دا خيال دي - (۳)

**د تحسس او د تجسس په مينځ كښې فرق:** خو علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د دواړو په مينځ كښې فرق دې : ① يو فرق دا بيان شويدې چه تجسس ( په جيم سره ) عيبونو تلاش كولو ته وائى او تحسس د يو قوم خبرو اوريدو ته وائى - (۴)

② بعضې وائى چه تجسس د باطنى امورو په باره كښې تحقيق او تلاش ته وائى او عموما د شر دپاره استعماليږى او تحسس د هغه څيزونو متعلق جستجو او تلاش ته وائى چه د هغې د ادراك تعلق د سترګو او د غوږونو سره وى ، علامه قرطبى رحمه الله ديته ترجيح وركړيده او تفسير قرطبى كښې دوى دا اعرف ګرځولې دې - (۵)

③ بعضې وائى تجسس وائى ديته چه د يو سړى تتبع د غير په وجه كول او تحسس ديته وائى چه د يو سړى تتبع د خپل ځان دپاره كول دى د نحو مشهور امام ثعلب هم دا اختيار كړيدې - (۶)

**قوله: وكونوا عباد الله إخوانا:** ديكښې "إخوانا" د "كونو" خبر دې او "عبادالله" منادى دې ، حرف نداء محذوف دې ...... **أى كونوا إخوانا يا عباد الله** او دا د عباد الله نه بدل يا د كونوا دپاره خبر ثانى هم ګرځولې شي - (۷)

دې حديث كښې ئې د حسد ، بغض ، قطع تعلق او د بدګمانئ نه منع كړيده ، مصنف عبد الرزاق كښې يو روايت نقل شويدې حضور اكرم ﷺ فرمائى "**ثلاث لا يعجزهن ابن آدم: الطيرة، و سوء الظن، و الحسد، قال: فينجيك من الطيرة ألا تعمل بها، وينجيك من سوء الظن ألا تتكلم به، وينجيك من الحسد ألا تبغى أخاك سوءً**" (۸)

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۵۹۱ ، ارشاد السارى : ۱۳\۸۵)

۲) شرح الكرمانى : ۲۱\۲۰۲)

۳) عمدة القارى : ۲۲\۱۳۶ ، فتح البارى : ۱۰\۵۹۱ ، ارشاد السارى : ۱۳\۸۵)

۴) عمدة القارى : ۲۲\۱۳۶ ، فتح البارى : ۱۰\۵۹۱ ، ارشاد السارى : ۱۳\۸۵)

۵) عمدة القارى : ۲۲\۱۳۶ ، فتح البارى : ۱۰\۵۹۱ ، ارشاد السارى : ۱۳\۸۵ ، الجامع لاحكام القرآن للقرطبى سورة الحجرات : ۱۶\۳۳۳)

۶) عمدة القارى : ۲۲\۱۳۶ ، فتح البارى : ۱۰\۵۹۱)

۷) ارشاد السارى : ۱۳\۸۵)

۸) المصنف للحافظ عبد الرزاق ، باب الطيرة : ۱۰\۴۰۳ ( رقم الحديث : ۱۹۵۰۴ )

درې ځيزونه ابن آدم لره نه شي عاجز ( ستړې ) كولې ، يو بدشګونې كول ، دويم بدګمانى كول دريم حسد ، د بد شګونۍ نه نجات داسې حاصليدې شى چه په دې عمل اونكړې شى ، د بد ګمانۍ نه د نجات د حاصليدو طريقه دا ده چه ددې په ژبه سره اظهار او نه كړې شى ، او د حسد نه نجات داسې حاصليدې شى چه دخپل زور بدى تلاش نه كړې شى -
علامه قرطبى هم د امام ابوداود په حواله سره د دې مفهوم يو حديث نقل كړيدې - (1)

د باب دويم حديث كښې هم دا خبرې ذكر شويدى ، خو ديكښې دا اضافه هم ده لايحل لمسلم أن يهجر أخاه فوق ثلاثة أيام - يعنى يو مسلمان لره نه دى جائز چه دې د خپل مسلمان رور سره قطع تعلق اوكړى او د درې ورځو نه زيات ئې پرېږدى ، دلته څو خبرې ذهن نشين كړئ :
د درې ورځو نه زيات ترك تعلق جائز نه دې
① لكه چه حديث كښې دى چه د درې ورځو نه زيات د خپل مسلمان رور سره قطع تعلق او اعراض كول جائز نه دى ..... معلومه شوه چه د درې ورځو نه د كمې مدې دپاره قطع تعلق كولو جواز شته - (2)
حكيم الامت تهانوى رحمه الله او نورو بعضو محدثينو ددې وجه دا ليكلې ده چه د تريخوالى او د ترخو خبرو او دغصې په وجه كله قطع تعلق كول راځى ، خو د درې ورځو مده دومره ده چه ديكښې د سړى غصه په خپله ختميږى ، دې وجه نه ده دپاره اوس جائز نه دى چه قطع تعلق لره برقرار اوساتى - (3)
**د فاسق سره قطع تعلق كولې شي :** ② دا حكم د هغه خلقو په باره كښې دې ، چه كوم پابند د صوم او د شريعت وى خو كُه څوك فاسق او فاجر دې يا چا څه شرعى حكم مات كړې وى، د دې په بنياد دوى سره قطع تعلق د درې ورځو نه زيات هم كيدې شى -
په خپله رسول الله ﷺ په غزوه تبوك كښې د درې اصحابو سره د پنځوستو ورځو پورې قطع تعلق كړې وو .دارنګه د ازواج مطهرات نه د يوې مياشتې دپاره په كور كښې جدا شوې وو( 4)
علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه د " أخ " ئې ذكر كولو سره د دې حكم علت طرف ته اشاره كول دى چه تركومې د اخوت تعلق او دا نسبت برقرار دې ، تر هغې دا حكم دې خو كُه چا د دې نسبت په خپله خيال او نه ساتلو ، او دا رابطه ئې ماته كړه نو دده حق كښې به دا حكم لاګو نه وى ، نو د خواهش پرستو او د بدعتيانو سره هميشه دپاره ترك تعلق كول جائز دى ، چه تر څو دې توبه او حق ته رجوع اونكړى ، لكه چه دې ليكى :

---

1) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى سورة الحجرات : ١٦\٣٣٢ )
2) فتح البارى ، كتاب الأدب ، باب الهجرة : ١٠\٦٠٣ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٣ )
3) فتح البارى : ١٠\٦٠٨ ، المرقاة شرح المشكاة ، كتاب الآداب ، باب ما ينهى عنه من التهاجر .... ١٩\٢٦٢ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٣ )
4) شرح الطيبى على مشكاة المصابيح ، شرح المشكاة ، كتاب الآداب ، باب ما ينهى عنه من التهاجر .... ١٩\٢٠٨ ( رقم الحديث : ٥٠٢٧ ) المرقاة شرح المشكاة ، شرح المشكاة ، كتاب الآداب ، باب ما ينهى عنه من التهاجر .... ١٩\٢٦٢ ، عمدة القارى : ٢٢\١٣٧ )

"تخصيص الأخ بالذكر إشعار بالعلية ، ومفهومه أنه إن خالف هذه الشريطة ، وقطع هذه الرابطة جاز هجرانه فوق ثلاثة ، فإن هجرة أهل الأهواء والبدع دائمة على ممر الأوقات مالم تظهر التوبة والرجوع إلى الحق" (۱)

③ اوس دا خبره پاتې کیږی چه قطع تعلقی به څنګه ختمیږی ، جمهور عالمان فرمائی چه صرف کولو سره قطع تعلقی ختمیږی او دې د دې وعید نه بهر کیږی- (۲)

خو امام احمد وائی چه قطع تعلق به هغه وخت ختم اوګنړلې شی چه کله تعلقات په خپل سابقه معمول واپس راشی ، ګه په ترک د تعلقاتو سره ده ته درد رسیدلې وی نو صرف په سلام اچولو سره به هجران نه ختمیږی - (۳)

## ۵۸=باب يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا [الحجرات:۱۲]

[۵۷۱۹] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا [ر:۴۸۴۹]

باب کښې ذکرشوی آیت کریمه کښې د کثرت د ظن نه منع راغلې ده او ویلې شویدی چه د ظن بعض صورتونه په زمره د ګناه کښې راځی -

**د ظن قسمونه** : علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چه د ظن دوه قسمونه دی یو محمود او دویم مذموم ، د چا باره کښې ښه ظن لرل دا په محمود ظن کښې داخل دې او بغیر د څه دلیل او د علامته د چا متعلق بد ګمان کول دا په مذموم ظن کښې داخل دې - (۴)

ګه یو کس کښې آثار د خیر غالب او ښکاره وی ، نو دده متعلق بد ګمانی کول صحیح نه دی ، خو ګه یو کس فاسق او فاجر دې او د ده فسق او فجور مشهور دې نو د ده متعلق بد ګمانی کول (إن بعض الظن إثم) کښې نه دې - (۵)

لکه چه امام بخاری رحمه الله په راتلونکې "باب ما يجوز من الظن" هم دې خبرې ته اشاره کولو دپاره قائم کړیدې ، حضرت حسن بصری رحمه الله به فرمائل - كنافى زمن ، الظن بالناس فيه حرام ، وأنت اليوم فى زمن اعمل واسكت ، وظن فى الناس ما شئت (۶)

---

۱) ارشاد الساری : ۱۳\۸۶)

۲) عمدة القاری : ۲۲\۱۳۷ ، فتح الباری : ۱۰\۶۰۸ ، ارشاد الساری : ۱۳\۹۵)

۳) عمدة القاری : ۲۲\۱۳۷ ، فتح الباری : ۱۰\۶۰۸ ، ارشاد الساری : ۱۳\۹۵)

۴) الجامع لأحكام القرآن للقرطبی ، سورة الحجرات : ۱۶\۳۳۲)

۵) فتح الباری : ۱۰\۵۹۵)

۶) الجامع لأحكام القرآن للقرطبی ، سورة الحجرات : ۱۶\۳۳۲)

يعنى مونږ په يو داسې دور کښې وو چه ديکښې د چا متعلق بد ګمان کول حرام وو او اوس خو د ستاسو زمانه داسې ده چه ديکښې خپل کار اوکړه او چپ شه او د خلقو متعلق هر قسم ګمان کيدې شي (ځکه چه فاسقان او بد خلق ډير شويدی)

**د خلقو عيبونه تلاش کول صحيح نه دی**: بغير د څه دليله او د څه قرينې نه هيڅ بې هيڅه په چا بدګمان کول د خلقو عيبونه تلاش کول او د دوی د کمزورو تجسس کول شرعا ممنوع او ناجائز دی او دې سره ډيرې معاشرتی خرابئ او بې قاعدګئ پيدا کيږی، ظاهره ده چه هر انسان کښې څه نا څه بدی او کمزوری به وی، کُه په تلاش او په جستجو کښې څوك اولګی نو يقينا د هر انسان په باره کښې به عيب او کمزوری درته په نظر راشی او داسې کس ته به ما سوا د خپل ځان نه بل څوك خاوند د نيکئ او ښو په نظر نه راځی، رسول الله ﷺ دې حقيقت ته اشاره کوی او فرمائی "إن اتبعت عورات الناس، أفسدتهم أو كدت أن تفسدهم" [1] (کُه ته د خلقو په عيبونو په تلاش کښې اولګې نو ټولو خلقو لره به خراب او فاسد کړې)

يو بل روايت کښې دی، چه دوی ﷺ فرمائلې دی "إن الأمير إذا ابتغى الريبة فى الناس أفسدهم" [2] (يعنی کُه امير په خلقو کښې تهمتونه او عيبونه تلاش کوی نو دې به دوی لره خراب کړی)

اود حضرت ابو برزه ﷺ روايت دې، چه رسول الله ﷺ فرمائلې دی "يا معشر من آمن بلسانه، ولم يدخل الإيمان قلبه، لا تغتابوا المسلمين، ولا تتبعوا عوراتهم، فإن من اتبع عوراتهم يتبع الله عورته و من يتبع الله عورته يفضحه فى بيته" [3] (دوی ﷺ منافقانو ته خطاب اوکړو او وې فرمائل چه اے هغه خلقو چه دوی په ژبه اسلام قبول کړيدې خو ايمان د دوی په زړونو کښې ځائې نه دې نيولې، د مسلمانانو غيبت مه کوئ او ددوی عيبونه مه تلاش کوئ ځکه چه څوك د مسلمانانو په عيبونو پسې اولګی الله تعالی به دده په عيبونو پسې اولګی او الله تعالی چه د چا په عيبونو پسې اولګی نو ده لره به په کور دننه رسوا کړی)

د دې احاديثو نه دا خبره صفا معلوميږی چه چا پسې لګيدل او د هغه عيبونه تلاش کول او بې د څه قرينې او د دليله بد ګمانی کول صحيح نه دی -

**د لاتناجشوا معنی**: روايت د باب دينه وړاندې باب کښې هم تير شويدې، خو دلته د يو جملې د "و لا تناجشوا" اضافه ده، تناجش دهوکې ته وائی، ددې صورت دا کيږی چه يو څيز اخستل دې مقصود نه وی، خو د نورو خلقو دې طرف ته توجه پيدا کولو دپاره د دې قيمت زيات بيان کړې شي او خلقو ته دا تاثر ورکړی چه دې په دې قيمت اخستو ته تيار دې، حال دا دې چه مقصود ئې په خپل اخستل نه وی، بل په اخستلو تيارول وی - [4]

---

[1]) سنن أبى داود، كتاب الأدب، باب فى النهى عن التجسس: ٤ \ ٢٧٢ (رقم الحديث :٤٨٨٨)..... ) سنن أبى داود، كتاب الأدب، باب فى النهى عن التجسس: ٤ \ ٢٧٢ (رقم الحديث :٤٨٨٨)..... ) سنن أبى داود، كتاب الأدب، باب فى النهى عن التجسس: ٤ \ ٢٧٢ (رقم الحديث :٤٨٨٨).....

[2]) سنن أبى داود، كتاب الأدب، باب فى النهى عن التجسس: ٤ \ ٢٧٢ (رقم الحديث :٤٨٨٩)

[3]) سنن أبى داود، كتاب الأدب، باب الغيبة: ٤ \ ٢٧٠ (رقم الحديث :٤٨٨٠)......

[4]) مجمع بحار الانوار: ٤ \ ٦٦٦٢، النهاية لابن الاثير: ٥ \ ٢١)

شارحينو او اهل لغتو د نجش تعريف كړيدې " هو أن يزيد في السلعة و هو لا يريد شراءها ، بل ليوقع غيره فيها " (١)

## ۵۹= بَاب مَا يَجُوزُ مِنَ الظَّنِّ

[۵۷۲۰] حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَظُنُّ فُلَانًا وَفُلَانًا يَعْرِفَانِ مِنْ دِينِنَا شَيْئًا قَالَ اللَّيْثُ كَانَا رَجُلَيْنِ مِنَ الْمُنَافِقِينَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بِهَذَا وَقَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا وَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا أَظُنُّ فُلَانًا وَفُلَانًا يَعْرِفَانِ دِينَنَا الَّذِي نَحْنُ عَلَيْهِ

حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې رسول الله ﷺ فرمائلې دى ما ته پته نشته چه فلانې فلانې سړې څمونږ د دين باره كښې څه خبره هم ورته معلومه ده ، ليث بن سعد فرمائى چه دا دواړه منافقان وو -

دويم روايت كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى رسول الله ﷺ ما ته راغلو او وې فرمائل :" څه د فلانى فلانى سړى ګمان نه کوم چه مونږ په کوم دين يو چه دوى ته د دې متعلق څه معلوم هم دى " -

**د ترجمة الباب مقصد** : حضرت ګنګوهى رحمه الله د دې باب متعلق فرمائى : " هذا باب بيان جواز إظهار ما في ظن الرجل ، أو المعنى : باب ما يكون في الظن من جواز أو كراهة ، أو حرمة ، فالظن الظاهر دليله جائز كما هو ظاهر الحديث ، والظن الذي ليس عليه قرينة وفيه إساءة ظن بالآخر لا يجوز " (٢)

يعنى دې باب كښې ئې د ظن د اظهار جائز صورت خودلې دې يا دې اوويلې شى چه د ظن يو صورت د جواز او دويم د كراهت او د حرمت دې ، چه د كوم ظن بنياد بالكل په واضح دليل وى نو هغه جائز دې لكه چه حديث د باب كښې دې ، خو هغه بدګمانى چه په هغې څه قرينه او دليل نه وى نو دا جائز نه ده -

شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله فرمائى چه دا باب د سابقه باب نه په منزله د استثناء دې (٣) يعنى په سابقه باب كښې د ظن نه ممانعت راغلې وو او دې باب كښې ئې د جواز او د استثنا صورت بيان كړو -

علامه كرمانى رحمه الله ليكى : " فإن قلت : ترجم بوجود الظن ، وفي الحديث نفي الظن ، قلت : العرف في قول القائل : ما أظن زيدا في الدار : أظنه ليس في الدار " (٤)

---

١) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٣٧ ، فتح البارى : ١٠ \ ٥٩٤ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٨٦ )

٢) لامع الدرارى على جامع البخارى : ١٠ \ ٢٣ )

٣) لامع الدرارى على جامع البخارى : ١٠ \ ٢٣ )

٤) شرح الكرمانى : ٢٢ \ ٢٠٣ )

او علامه قسطلانی رحمه الله لیکی :

"فالنفی فی الحدیث لظن النفی، لا النفی للظن، وفی الترجمة إثبات الظن، فلا تنافی بینه و بین الترجمة" (۱)

حاصل دا دې چه ترجمة الباب کښې د ظن اثبات دې او په حدیث کښې ئې " ما أظن ... "
اوویلې نو حضور ﷺ نفی اوکړه نو د حدیث نه به ترجمة الباب څنګه ثابتیږی -
د دې جواب دا دې چه حدیث کښې د ظن نفی نشته دې بلکه نفی د ظن یعنی د منفی ظن ذکر دې، ظن د یو کار د کیدو متعلق هم کیدې شی او د یو کار دنه کیدو متعلق هم کیدې شی ، حدیث د باب کښې د دې دویم صورت ذکر دې او دا د ترجمة الباب منافی نه دې -
علامه کرمانی په دې د پوهیدو دپاره یو مثال ذکر کړیدې چه یو سړې وائی ما أظن زیدا فی الدار (د زید متعلق ځما خیال نه دې چه دې په کور کښې دې ) نو دې جُملہ کښې په حقیقت کښې د ظن نفی نه ده بلکه د منفی ظن ذکر دې او مطلب ئې دا دې چه أظنه لیس فی الدار یعنی ځما خیال دې چه دې په کور کښې نشته دې -
روایت د باب کښې چه د کومو دوه سړو متعلق حضور اکرم ﷺ اوفرمائل چه دوی ځمونږ د دین نه ناخبره دی ، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ما ته ددې دواړو نومونه معلوم نه شو - (۲)

## ٦٠ = بَاب سَتْرِ الْمُؤْمِنِ عَلَى نَفْسِهِ

[٥٧٢١] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ ابْنِ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ كُلُّ أُمَّتِي مُعَافًى إِلَّا الْمُجَاهِرِينَ وَإِنَّ مِنْ الْمُجَاهَرَةِ أَنْ يَعْمَلَ الرَّجُلُ بِاللَّيْلِ عَمَلًا ثُمَّ يُصْبِحَ وَقَدْ سَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ فَيَقُولَ يَا فُلَانُ عَمِلْتُ الْبَارِحَةَ كَذَا وَكَذَا وَقَدْ بَاتَ يَسْتُرُهُ رَبُّهُ وَيُصْبِحُ يَكْشِفُ سِتْرَ اللَّهِ عَنْهُ

[٥٧٢٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحْرِزٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ كَيْفَ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي النَّجْوَى قَالَ يَدْنُو أَحَدُكُمْ مِنْ رَبِّهِ حَتَّى يَضَعَ كَنَفَهُ عَلَيْهِ فَيَقُولُ عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا فَيَقُولُ نَعَمْ وَيَقُولُ عَمِلْتَ كَذَا وَكَذَا فَيَقُولُ نَعَمْ فَيُقَرِّرُهُ ثُمَّ يَقُولُ إِنِّي سَتَرْتُ عَلَيْكَ فِي الدُّنْيَا فَأَنَا أَغْفِرُهَا لَكَ الْيَوْمَ [ر: ٢٣٠٩]

امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د مؤمن نه ګناه کیږی خو د دې ښکاره او خورول نه

---

۱) ارشاد الساری : ۱۳ \ ۸۷ )
۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۵۹۵ )
۳) ۵۷۲۱ ) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب الزهد و الرقائق . باب النهی عن هتک الإنسان ستر نفسه : ۱۴ \ ۲۲۹۱ رقم الحدیث : ۲۹۹۰ )

دی پکار ، په ښکاره کولو او په خورولو د معصيت سره په معاشره کښې گناه خوريږی او ددې بد والي د خلقو د زړه نه اوځی -
حديث د باب کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه ځما د تمام امت گناهونه به معاف شی . خو د هغه خلقو چه کوم علانيه گناه کوی ( دوی ته به معافی نه ملاويږی ) بې شك دا ډيره د بې حيائی خبره ده چه يو سړې د شپې يو د بدئ کار اوکړی او الله تعالى په ده پرده واچوی خو سحر کيدو باندې دا سړې په خپله اووائی ( ښکاره ئی کړی ) ، اے فلانی ما د شپې دا دا حرکت کړې وو ، حال دا دې چه ده دا شپه په داسې حالت کښې تيره کړه چه الله تعالى په ده باندې پرده اچولې وه ، خو ده په سحر کيدو سره د الله تعالى پرده اوچته کړه -

**قوله:** كل أمتي معافى : مُعافى د باب مفاعله نه د اسم مفعول صيغه ده ، په ميم پيش دې يعنى ځما ټول امت به معاف کړې شی - (١)

**قوله:** إلا المجاهرين : د مجاهر تعريف دې هوالذی جاهر بمعصيته وأظهرها (٢) يعنى چه کوم علانيه گناه کوونکې وی -

" المجاهر " په حالت نصبى سره د اکثرو روايت دې ، (٣) او په ترکيب کښې مستثنى متصل واقع کيږی ، مستثنى متصل منصوب وی -
په بعض روايتونو کښې " المجاهرون " په حالت رفعى سره راغلې دې (٤) دې صورت کښې د کوفيانو په مسلك خو هيڅ اشکال نشته دې ځکه چه د دوی په نزد دا استثناء منقطع ده....... او " إلا " د لكن په معنى دې ، " المجاهرون " د مبتداء کيدو په وجه مرفوع دې او ددې خبر د " لا يعافون " محذوف دې ، تقدير د عبارت دا دې " لكن المجاهرون بالمعاصى لا يعافون...." (٥)

**قوله:** وإن من المجانة : مَجانة: د ميم په فتحه سره بې باکي ، بې حيائې او بې پرواهئ ته وائی - (٦)

د باب بل روايت کښې دی چه يو سړی د حضرت ابن عمر نه تپوس اوکړو چه تا د رسول الله ﷺ نه ( د بنده او د رب په مينځ ) د سرگوشئ ( راز خبرې کول ) متعلق ځنگه اوريدلې دی نو دوی اوويل : رسول الله ﷺ فرمائی چه تاسو کښې به يو سړې خپل رب ته نزدې وی تر دې چه الله تعالى به په ده خپله پرده واچوی او ده نه به تپوس اوکړی چه تا دا کار کړيدې

---

(١) فتح البارى : ١٠\٥٩٥ ، عمدة القارى : ٢٢\١٣٨ )
(٢) عمدة القارى : ٢٢\١٣٩ )
(٣) عمدة القارى : ٢٢\١٣٩ )
(٤) عمدة القارى : ٢٢\١٣٩ )
(٥) فتح البارى : ١٠\٥٩٦ )
(٦) عمدة القارى : ٢٢\١٣٩ ، ارشاد السارى : ١٣\٨٨ )

؟ سړي به اووائي " هو جي " بیا به الله تعالی تپوس اوکړی چه تا دا دا کار کړیدې ؟ نو دې به اووائي : هو جي " الله تعالی به دده نه اقرار واخلی بیا به ده ته اووائي چه ما په تا په دنیا کښې پرده اچولې وه نن هم څه د ستا دغه ګناهونه معاف کوم -

**یدنو:** دا دنونه دې : نزدې کیدل ، علامه عینی رحمه الله فرمائی : دینه قرب مکانی نه دې مراد ، قرب رتبی مراد دې - (١)

**کنفه:** کَنَف ( د کاف او د نون په فتحه سره ) پردې ته وائي - (٢)

**فیقرره:** أی یجعله مُقِرًّا بذلك یعنی الله تعالی د ده نه به اقرار واخلی -

## ٦١=بَابُ الْكِبْرِ

وَقَالَ مُجَاهِدٌ ثَانِيَ عِطْفِهِ [الحج: ٩] مُسْتَكْبِرٌ فِي نَفْسِهِ عِطْفُهُ رَقَبَتُهُ

[٥٧٢٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مَعْبَدُ بْنُ خَالِدٍ الْقَيْسِيُّ عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ الْخُزَاعِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَاعِفٍ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ [ر: ٤٦٣٣]

[٥٧٢٤] وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ الطَّوِيلُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ إِنْ كَانَتِ الْأَمَةُ مِنْ إِمَاءِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَتَأْخُذُ بِيَدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَنْطَلِقُ بِهِ حَيْثُ شَاءَتْ (٣)

علامه عینی رحمه الله لیکی : " أی هذا باب فی بیان ذم الکبر (بکسر الکاف و سکون الباء) و هو ثمرة العجب و قد هلك بها کثیر من العلماء و الزهاد ، و الکبر و التکبر و الإستکبار متقارب ، و التکبر هو الحالة التی یتخصص بها الإنسان من إعجابه بنفسه ، و ذلك أن یری نفسه أکبر من غیره ، و أعظم ذلك أن یتکبر علی ربه بأن یمتنع من قبول الحق و الإذعان له بالتوحید و الطاعة " (٤)

یعنی دا باب دکبر دمذمت په باره کښې دی دکبراو دتکبر د دواړو یومعنی ده ، دا د عجب نتیجه وی چه انسان خپل ځان د نورو نه لوی او نورو لره سپك ګڼړی ، د تکبر یو خطرناك صورت دا دې چه انسان د خپل رب په مقابله کښې تکبر اختیار کړی داسې چه د حق د قبلولو نه او د الله تعالی د توحید او د اطاعت نه او ده ته د سر خکته کولو نه انکار اوکړی-

**قوله:** وقال مجاهد: ثانی عطفه: مستکبر فی نفسه-عطفه: رقبته: د سورة حج آیت

---

١) عمدة القاری : ٢٢\١٣٩ )

٢) عمدة القاری : ٢٢\١٣٩ . فتح الباری : ١٠\٥٩٨ )

٣) ٥٧٢٤ ) هذا الحدیث من إفراد الإمام الخاری ، عمدة القاری : ٢٢\١٤١ )

٤) عمدة القاری : ٢٢\١٤٠ )

كريمه كښې دى ﴿ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۙ لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ﴾ (١)
مجاهد فرمائى چه دې آيت كريمه كښې د " ثانى عطفه " نه هغه كس مراد دې چه كوم په زړه كښې خپل ځان لوې ګڼړى - (٢)
د عطف ترجمه ئې په رقبه يعن څټ سره كړيده ، د مجاهد دا تعليق فريابى موصولا نقل كړيدې - (٣)

**قوله: كل ضعيف متضاعف:** د ضعيف نه ضعيف الحال مراد دى ، ضعيف البدن مراد نه دې او د متضاعف نه متواضع مراد دې - (٤)

**قوله: كل عتل جواظ:** د عتل څو معانى بيان شويدى چه د يو بل سره نزدې دى : الجافى الشديد فى كفره ، الشديد الخصومة بالباطل ، الأكول الشروب القوى الشديد ، الفاحش السيء الخلق (٥)
حاصل ددې ټولو دا دې چه داسې سړې چه اړت ناغيجه وى مضبوط وى په باطل انختونكې بد اخلاقه كمينه وى نو ده ته عتل وائى -

**جَوّاظ:** چه ډير زيات بخيل ، متكبر او په تكبر تلل كوى په يو حديث كښې د رسول الله ﷺ نه د جواظ تشريح منقول ده ، دوى فرمائى " الجَوّاظ الذى جمع و منع " يعنى جواظ هغه كس دې چه كوم مال جمع كوى او د دې واجب حقوق نه اداء كوى يو بل روايت كښې دوى فرمائل "الجماع المناع" (٦)

**قوله: وقال محمد بن عيسى......:** محمد بن عيسى د " ابن الطباع " په نوم مشهور دې ، امام ابوداود رحمه الله فرمائى چه دوى ته څلويښت زره احاديث حفظ وو خو تدليس ئې كولو ، سن ٢٢٤ هجرئ كښې وفات شويدې (٧) علامه مزى په تهذيب الكمال كښې ليكلې دى چه امام بخارى رحمه الله دوى نه تعليقا روايت نقل كوى -(٨)
په ائمه د جرح او تعديل كښې امام ابوداود ، ابوحاتم ، امام نسائى او على مدينى د دوى توثيق كړيدې - (٩)

---

(١) سورة الحج : ٩)
(٢) شرح ابن بطال لصحيح البخارى : ٩\٢٦٥ ، عمدة القارى : ٢٢\١٤٠ ، فتح البارى : ١٠\٦٠٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٠)
(٣) عمدة القارى : ٢٢\١٤٠ ، فتح البارى : ١٠\٦٠٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٠)
(٤) عمدة القارى : ٢٢\١٤٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٠)
(٥) الجامع لأحكام القرآن للقرطبى : ١٨\٢٣٣)
(٦) مسند الإمام أحمد بن حنبل فى مسانيد أنس بن مالك : ١٣\١٤٥)
(٧) تهذيب الكمال : ٢٦\٢٦٠ ( رقم الترجمة : ٥٥٣٤)
(٨) تهذيب الكمال : ٢٦\٢٦٠ ( رقم الترجمة : ٥٥٣٤ )
(٩) تهذيب الكمال : ٢٦\٢٦٠ ( رقم الترجمة : ٥٥٣٤ )

ابن حبان په کتاب الثقات کښې د دوی ذکر کړیدې - (۱)
په اصحابو د صحاح سته کښې امام ترمذی ، نسائی ، او ابن ماجه د دوی روایتونه نقل کړیدی - (۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی "لم أر له فی البخاری سوی هذا الموضع" (۳)
خو علامه عینی رحمه الله فرمائی : "قلت : قال الذی جمع رجال الصحیحین روی عنه البخاری فی آخر الحج و الأدب ، و قال فی الموضعین : قال محمد بن عیسی" (۴) علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د صحیح بخاری او د صحیح مسلم رجال جمع کوونکو دا تصریح کړیده چه امام بخاری رحمه الله د محمد بن عیسی نه د کتاب الحج په آخر کښې او کتاب الادب کښې روایت نقل کړیدې او دواړو ځایونو کښې " قال محمد بن عیسی " الفاظ ذکر کړیدی دینه معلومه شوه چه دکتاب الادب نه علاوه په کتاب الحج کښې هم ددوی روایت امام بخاری رانقل کړیدې.
حدیث کښې دی چه د مدینې منورې یوه وینځه رسول الله ﷺ ایساروی او چه کوم خوا ئې غواړی اخوا ئې بوځی ... دینه د رسول الله ﷺ د تواضع د اوچت مقام اندازه لګیدې شی چه دوی ﷺ د هر قسم تکبر نه بری پاک او صفا وو -

## ٦٢=بَاب الْهِجْرَةِ

وَقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ

[٥٧٢٥] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَوْفُ بْنُ مَالِكِ بْنِ الطُّفَيْلِ هُوَ ابْنُ الْحَارِثِ وَهُوَ ابْنُ أَخِي عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُمِّهَا أَنَّ عَائِشَةَ حُدِّثَتْ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ قَالَ فِي بَيْعٍ أَوْ عَطَاءٍ أَعْطَتْهُ عَائِشَةُ وَاللَّهِ لَتَنْتَهِيَنَّ عَائِشَةُ أَوْ لَأَحْجُرَنَّ عَلَيْهَا فَقَالَتْ أَهُوَ قَالَ هَذَا قَالُوا نَعَمْ قَالَتْ هُوَ لِلَّهِ عَلَيَّ نَذْرٌ أَنْ لَا أُكَلِّمَ ابْنَ الزُّبَيْرِ أَبَدًا فَاسْتَشْفَعَ ابْنُ الزُّبَيْرِ إِلَيْهَا حِينَ طَالَتْ الْهِجْرَةُ فَقَالَتْ لَا وَاللَّهِ لَا أُشَفِّعُ فِيهِ أَبَدًا وَلَا أَتَحَنَّثُ إِلَى نَذْرِي فَلَمَّا طَالَ ذَلِكَ عَلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ كَلَّمَ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْأَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوثَ وَهُمَا مِنْ بَنِي زُهْرَةَ وَقَالَ لَهُمَا أَنْشُدُكُمَا بِاللَّهِ لَمَّا أَدْخَلْتُمَانِي عَلَى عَائِشَةَ فَإِنَّهَا لَا يَحِلُّ لَهَا أَنْ تَنْذِرَ قَطِيعَتِي فَأَقْبَلَ بِهِ الْمِسْوَرُ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ مُشْتَمِلَيْنِ بِأَرْدِيَتِهِمَا حَتَّى اسْتَأْذَنَا عَلَى عَائِشَةَ فَقَالَا السَّلَامُ عَلَيْكِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ أَنَدْخُلُ قَالَتْ عَائِشَةُ ادْخُلُوا قَالُوا كُلُّنَا قَالَتْ نَعَمْ ادْخُلُوا كُلُّكُمْ وَلَا تَعْلَمُ أَنَّ مَعَهُمَا ابْنَ الزُّبَيْرِ فَلَمَّا دَخَلُوا دَخَلَ ابْنُ الزُّبَيْرِ الْحِجَابَ فَاعْتَنَقَ عَائِشَةَ وَطَفِقَ يُنَاشِدُهَا وَيَبْكِي وَطَفِقَ الْمِسْوَرُ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ يُنَاشِدَانِهَا إِلَّا مَا

---

۱) كتاب الثقات لابن حبان : ۹\۴)
۲) تهذيب الكمال : ۲۶\۱۰۲ ( رقم الترجمة : ۵۵۳۴)
۳) فتح الباری : ۱۰\۶۰۱)
۴) عمدة القاری : ۲۲\۱۴۰)

كَلَّمْتُهُ وَقَبِلَتْ مِنْهُ وَيَقُولَانِ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَمَّا قَدْ عَلِمْتِ مِنَ الْهِجْرَةِ فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ فَلَمَّا أَكْثَرُوا عَلَى عَائِشَةَ مِنَ التَّذْكِرَةِ وَالتَّحْرِيجِ طَفِقَتْ تُذَكِّرُهُمَا نَذْرَهَا وَتَبْكِي وَتَقُولُ إِنِّي نَذَرْتُ وَالنَّذْرُ شَدِيدٌ فَلَمْ يَزَالَا بِهَا حَتَّى كَلَّمَتِ ابْنَ الزُّبَيْرِ وَأَعْتَقَتْ فِي نَذْرِهَا ذٰلِكَ أَرْبَعِينَ رَقَبَةً وَكَانَتْ تَذْكُرُ نَذْرَهَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَتَبْكِي حَتَّى تَبُلَّ دُمُوعُهَا خِمَارَهَا [ر: ۳۳۱۳]

[۵۷۲٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللّٰهِ إِخْوَانًا وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ [ر: ۵۷۱۸]

[۵۷۲۷] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هٰذَا وَيُعْرِضُ هٰذَا وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ [ر: ۵۸۸۳]

د يو مسلمان سره د ترک تعلقات متعلق تفصيلي خبرې څو بابه وړاندې اوشوې ( باب ما ينهى من التحاسد و التدابر ... ) ، امام بخارى رحمه الله دلته د حضرت عبد الله بن زبير - رضي الله عنهما - چه کوم روميې روايت ذکر کړيدې ، هغه امام په مناقب د قريش کښې دوه ځايه ذکر کړيدې (۲) خو هلته ئې نسبتا مختصر ذکر کړيدې او دلته ئې تفصيل سره -

**د حضرت عبد الله بن زبير نه د حضرت عائشه د ناراضتيا واقعه** : عوف بن مالك چه د حضرت عائشه وراره دې ، نقل کوى چه دوى ته دا خبره اوشوه چه عبد الله بن زبير د څه بيع يا د څه عطيه متعلق چه کومه حضرت عائشه ته ورکړې وه اوويل چه والله ! عائشه ( کُه د داسې عطياتو ورکولو نه ) منع نه شوه نو څه به په دې پابندى اولګوم ، حضرت عائشه تپوس اوکړو، آيا واقعى ده داسې ويلې دى ؟ نو خلقو اوويل هَو ، حضرت عائشه اوويل : **هو لله علىّ نذر أن لا أكلم ابن الزبير أبدا** ( د الله تعالى دپاره په ما دا نذر واجب دې چه څه به د ابن زبير سره کله هم خبرې نهِ کوم ) -

چه کله ددې جدايئ ډيره زمانه تيره شوه نو ابن زبير سفارشونه شروع کړل ، حضرت عائشه اوويل چه څه به د چا سفارش هم نه قبلوم ، او نه خپل قسم ماتوم .......بيا چه کله ابن زبير

---

(۱) ۵۷۲۷ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الاستئذان ، باب السلام للمعرفة و غير المعرفة ( رقم الحديث : ۵۸۸۳ ) و أخرجه مسلم فى كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب تحريم الهجر فوق ثلاث بلا عذر شرعى : ٤ \ ۱۹۸٤ ( رقم الحديث : ۲۵٦۰ ) و أخرجه الترمذى فى كتاب البر و الصلة ، باب ما جاء فى كراهية الهجر للمسلم : ٤ \ ۳۲۷ ( رقم الحديث : ۱۹۳۲ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فيمن يهجر أخاه المسلم : ٤ \ ۲۷۸ ( رقم الحديث : ٤۹۱۱ )

(۲) صحيح البخارى ، أبواب المناقب ، باب مناقب قريش ( رقم الحديث : ۳۵۰۳ - ۳۵۰۵ )

باندې دا خبره ډيره سخته شوه نو دوی مسور بن مخرمه او عبد الرحمن بن الاسود ته ( چه د قبيله بنی زهره وو ) اوويل چه څه تاسو ته د الله تعالى واسطه درکوم چه ما حضرت عائشه ته بوځئ ، ځکه چه دوی دپاره جائز نه ده چه ماسره قطع تعلق دپاره قسم برقرار اوساتی .. .... نو مسور او عبدالرحمن خپل خپل څادرونه ځان نه تاو کړل او ابن زبير ئې د ځان سره واخستو ، دواړو د حضرت عائشه نه د ننوتلو اجازت اوغوښتلو او وې ويل : السلام عليك ورحمة الله وبركاته ! آيا مونږ در ننووځو ؟ ...... " نو حضرت عائشه اوفرمائل : هَو ، دوی تپوس اوکړو : ټول درشو ؟ وې فرمائل : هَو ټول راځئ ، دوی ته معلومه نه وه چه دوی سره ابن زبير هم دې ، نو چه کله دوی دننه شو نو ابن زبير پردې ته دننه لاړو او حضرت عائشه ته ورترغاړه وتلو او دوی ته ئې د الله تعالى خاطر واچولو او په ژړا شو ، مسور او عبد الرحمن هم دوی ته د الله تعالى خاطر واچولو چه ده سره خبرې اوکړئ او ددوی عذر قبول کړئ.... دواړو دا هم ويلې چه تاسو ته پته ده چه رسول الله ﷺ د قطع تعلق نه منع کړيده ، چه د چا مسلمان دپاره جائز نه دی چه دخپل رور نه د درې شپو نه زيات جدائی اختيار کړی ( او ترک تعلق اوکړی )

چه کله دې خلقو ډير زيات حضرت عائشه ته نصيحت او اصرار اوکړو نو دا هم په ژړا شوه چه ما نذر منلې دې او د نذر معامله ډيره سخته ده ..... خو دې دواړو مسلسل اصرار کولو تر دې چه دوی ابن زبير سره خبرې اوکړې او ددې نذر په کفاره کښې دوی څلويښت غلامان ازاد کړل ..... او دينه پس به چه کله هم دوی ته دا نذر راياد شو نو دوی به دومره ژړل چه د دوی لوپټه به لونده شوه په اوښکو -

ياد اوساتئ چه دې حديث کښې چه د حضرت عبد الله بن زبير کومه واقعه ذکر ده نو دا د هغه وخت ده چه کله حضرت عبد الله بن الزبير لا حکمران شوې نه وو - ځکه چه د حضرت عائشه وفات په سن ۵۷ هجرئ کښې د حضرت معاويه په دور کښې شويدې ، او د حضرت عبد الله بن زبير دور د خلافت روستو شروع کيږی - ([1])

**دسند وضاحت** : حدثني عوف بن مالك بن الطفيل هو ابن الحارث وهو ابن أخي عائشة لأمها

① دلته سند کښې لږ غونده اختلاف دې ، يو روايت کښې دی عوف بن مالك بن طفيل بن الحارث دې -

② د صالح بن کيسان د روايت په طريق کښې دی عوف بن طفيل بن الحارث -

③ يو بل روايت کښې دی عوف بن الحارث بن الطفيل ، ديته على ابن المدينى صحيح ويلې دی - ([2])

يعنى د عوف په نوم کښې خو اختلاف نشته دې ، د دوی د والد په نوم کښې اختلاف دې ، په بعضو کښې طفيل بن الحارث دې ، په بعضو کښې مالك بن الطفيل دې او په بعض روايتونو کښې حارث بن طفيل دې -

---

[1]) عمدة القارى : ۲۲\۱٤۲ )

[2]) عمدة القارى : ۲۲\۱٤۲ . ارشاد السارى : ۱۳\۹۲ . فتح البارى : ۱۰\٦۰٤ )

ابراهيم حربی ددې تفصيل ليکلې دي چه د طفيل پلار د حضرت ام رومان سره واده کړې ، ده د يمن قبيلې ازد سره تعلق لرلو ، د هلته نه مکې مکرمې ته راغلو ، ام رومان نه د دوی يو بچې طفيل پيدا شو د دوی د مرګ نه پس ام رومان سره حضرت صديق اکبر ﷺ واده اوکړو او دوی نه حضرت عائشه او حضرت عبد الرحمن پيدا شو نو طفيل د حضرت عائشه د مور د طرفه رور شو (١) او علامه ذهبی فرمائی چه دې صحابي وو (٢) ابن عبد البر په " الاستيعاب کښې دوی د اصحابوپه فهرست کښې شامل کړيدې ، (٣) د ده خوې د حضرت عائشه ورازه شو يعنی د دوی د مور د طرفه د رور خوې وو -

**قوله:** أن عائشة حُدِّثت: حُدِّثَت صيغه د مجهول ده ، يعنی حضرت عائشه ته دا خبره بيان کړې شوه ، د اوزاعي په روايت کښې دی " أن عائشة بلغها ..." (٤)

**قوله:** في بيع أو عطاء أعطته عائشة: يعنی دا خو يا د بيع څه معامله وه يا څه عطيه حضرت عائشه ورکړې وه ، د اوزاعی په روايت کښې دی چه حضرت عائشه خپل يو کور خرڅ کړې وو ، چه په هغې حضرت ابن زبير غصه شوې وو - (٥)

**قوله:** أو لأحجُرَنَّ عليها: ديکښې " أو " په معنی د " إلى " دې او دينه پس " أن " مقدر دې يعنی د ا د " لألزمنك أو تعطيني حقي " د قبيلې نه دې ، يعنی حضرت عائشه دې منع شی ګنی څه به په دې پابندی اولګوم - (٦)

**قوله:** هو لله علي نذر أن لا أكلم ابن الزبير: ابن التين فرمائی " أن لا أكلم " تقدير د عبارت دې " عليّ نذر إن كلّمته " (٧) په مناقبو د قريش کښې چه کوم روايت تير شويدې هغې کښې هم دی " لله عليّ نذر ، إن كلمته ،

په بعض روايتونو کښې دي " لله عليّ نذر ، إن أكلم ابن الزبير " (٨) د شرط او جزاء په صورت کښې جمله شرطيه ده نو ددې روايت مطابق به دا نذر معلق شی -

---

(١) فتح الباری : ٦٠٣\١٠ ، ذكر هذا فی عمدة القاری من الواقدی : ١٤٢\٢٢ ، و كذا فی تهذيب الكمال : ٣٩٠\١٣ ( رقم الترجمة : ٢٩٦٦ )

(٢) عمدة القاری : ١٤٢\٢٢ )

(٣) الاستيعاب على هامش الإصابة ، باب الطاء : ١١٥\٤ )

(٤) ارشاد الساری : ٩٢\١٣ ، فتح الباری : ٦٠٤\١٠ )

(٥) فتح الباری : ٦٠٥\١٠ ، عمدة القاری : ١٤٢\٢٢ ، ارشاد الساری : ٩٢\١٣ )

(٦) عمدة القاری : ١٤٢\٢٢ )

(٧) عمدة القاری : ١٤٢\٢٢ ، فتح الباری : ٦٠٥\١٠ ، ارشاد الساری : ٩٢\١٣ )

(٨) عمدة القاری : ١٤٢\٢٢ ، فتح الباری : ٦٠٥\١٠ ، شرح الكرمانی : ٢٠٦\٢١ ، أخرجه البخاری فی كتاب المناقب ، باب فی مناقب قريش ( رقم الحديث : ٣٥٠٥ )

**قوله: فاستشفع ابن الزبير حين طالت الهجرة:** يعنى چه كله د حضرت عائشه د طرفه دا جُدائى اوږده شوه ، نو حضرت عبدالله بن الزبير دوى ته سفارشونه شروع كړل چه دا راضى شى ، د اوزاعى په روايت كښې دى " فطالت هجرتها إياه ، فتقصه الله بذلك فى أمره كله فاستشفع لكل جدير أنها تقبل عليه ...."(1) يعنى د حضرت عائشه د قطع تعلق زمانه چه اوږده شوه نو د حضرت ابن زبير په تمام معاملاتو كښې د قدرت د طرفه نقصان شروع شو نو دوى په هر مناسب ذريعه سره سفارشونه شروع كړل چه حضرت عائشه ده ته متوجه شى او ده نه راضى شى -

**قوله: فقالت: لا والله لا أشفّع فيه أحدا:** شَفَّعَ د باب تفعيل نه دې د دې معنى د سفارش قبلولو راځى - لا أتحنث إلى نذر يعنى څه په خپل نذر كښې به نه حانثه كيږم ، د معمر په روايت كښې دى " لا أحنث فى نذرى "(2)

**قوله: وهما من بنى زهرة:** بنو زهره چه د رسول الله ﷺ ماماګان لګيدل (3) د مور د طرفه ئې رشته داران وو نو د دې رشتې به حضرت عائشه رعايت كولو ، نو حضرت عبدالله بن زبير د سفارش دپاره مسور او عبد الرحمن راوستل خكه چه دوى دواړو د بنوزهره سره تعلق لرلو -

**قوله: أنشدكما بالله لمّا أدخلتمانى:** لمّا د ميم په تشديد او په تخفيف دواړو سره صحيح دې ، دا د "إلا" حرف استثناء په معنى كښې دې لكه په قرآن كريم كښې ﴿إن كل نفس لما عليها حافظ﴾ "لمّا" د "إلا" په معنى دې ، يعنى څه تاسو دواړو ته د الله تعالى خاطر اچوم چه ما عائشه ته بوځئ ، د اوزاعى روايت كښې دا هم دى چه ده دوى ته اوويل : تاسو ما ته خپل څادر واغوندوئ -

**قوله: من التذكرة والتحريج:** د تذكره نه تذكير مراد دې يعنى د صله رحمئ د فضيلت او د اهميت يادول ئې ورته اوكړه ، د تخريج معنى ده چا لره په حرج كښې اچول يعنى دوى حضرت عائشه باندې اصرار اوكړو چه كله دوى بنه تنګول اوكړو نو حضرت عائشه خبرې اوكړې او په طور د كفاره ئې څلويښت غلامان ازاد كړل -

**يو اشكال او ددې جواب** : په ظاهره دلته اشكال كيږى چه د درې ورځو نه زيات د يو مسلمان سره قطع تعلق كول جائز نه دى نو حضرت عائشه داسې ولې اوكړل ؟

ددې جواب وړاندې تير شويدې چه دڅه دينى مصلحت په وجه يا د څه نافرمانئ او د معصيت په وجه ترك د تعلق اوكړې شى نو د دې جواز شته ، لكه چه امام بخارى په

---

1) فتح البارى : ١٠\٦٠٥)

2) عمدة القارى : ٢٢\١٤٢ ، فتح البارى : ١٠\٦٠٥)

3) فتح البارى : ١٠\٦٠٥)

راتلونكى باب " باب مايجوز الهجران لمن عصى " سره دا ثابت كړيده -
د حضرت عبد الله بن زبير سره د حضرت عائشه ډير محبت وو (١) او ده به د دوى ډير خيال هم ساتلو ، نو چه كله د ده د طرفه داسې سخته جمله اوويلې شوه ، نو دا يو قسم نافرمانى وه ، د محبوب خورئى د طرفه دا جمله دوى ته ډيره سخته اولګيدله او دده د تاديب دپاره ده سره ترك تعلق اوكړو - (٢)

## ٦٣=بَاب مَا يَجُوزُ مِنْ الْهِجْرَانِ لِمَنْ عَصَى

وَقَالَ كَعْبٌ حِينَ تَخَلَّفَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِينَ عَنْ كَلَامِنَا وَذَكَرَ خَمْسِينَ لَيْلَةً [ر:٤١٥٦]

[٥٧٢٨] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْرِفُ غَضَبَكِ وَرِضَاكِ قَالَتْ قُلْتُ وَكَيْفَ تَعْرِفُ ذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ إِنَّكِ إِذَا كُنْتِ رَاضِيَةً قُلْتِ بَلَى وَرَبِّ مُحَمَّدٍ وَإِذَا كُنْتِ سَاخِطَةً قُلْتِ لَا وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ قَالَتْ قُلْتُ أَجَلْ لَسْتُ أُهَاجِرُ إِلَّا اسْمَكَ [ر:٤٩٣٠]

د معصيت په وجه كُه د چا سره تعلق پريخودې شى نو د دې جواز شته او د سلف نه داسې ترك تعلق منقول دې ، مهلب فرمائى :

غرض البخارى فى هذا الباب أن يبين صفة الهجران الجائز وأنه يتنوع بقدر الجرم ، فمن كان من أهل العصيان يستحق الهجران بترك المكالمة ، كما فى قصة كعب و صاحبيه ، و ما كان من المغاضبة بين الأهل و الإخوان ، فيجوز الهجر فيه بترك التسمية مثلا ، أو بترك بسط الوجه مع عدم هجر السلام و الكلام " (٣)

يعنى امام بخارى رحمه الله په دې باب كښې د ترك تعلق د جواز صورت بيانول غواړى ، د جرم په اعتبار سره د مختلف قسم ترك تعلق كيدې شى ، كُه څوك نافرمانى كوونكې وى نو ده سره خبرې پريخودې شى او ترك د تعلق ورسره كيدې شى لكه چه د حضرت كعب بن مالك ﷺ په قصه كښې ترك د كلام شوې وو - دارنګه د رور او د اهل و عيال سره د ناراضګئ صورت كښې ترك تعلق داسې كيدې شى چه د ده نوم وانه خستې شى چه د چا سره ترك تعلق شويدې نور ده سره سلام كلام خو كيږى خو په رونړ تندى او په خندا خوشحالئ ورسره ملاويدل پريخودې شى -

---

(١) لكه چه د بخارى په يو روايت كښې د دې تصريح ده " عن عروة بن الزبير قال : كان عبد الله بن الزبير أحب البشر إلى عائشة بعد النبى صلى الله عليه و سلم و أبى بكر ، و كان أبر الناس بها ، و كانت لاتمسك شيئا مما جاءها من رزق الله تصدقت ...... صحيح البخارى ، كتاب المناقب ، باب مناقب قريش ( رقم الحديث : ٣٥٠٥ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٦٠٨ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٣ ، شرح صحيح البخارى لابن البطال : ٩\٢٧١ )

(٣) فتح البارى : ١٠\٦١٠ ، عمدة القارى : ٢٢\١٤٤ ، ابن بطال هم ددې ترجمه دا مقصد بيان كړيدې شرح ابن بطال : ٩\٢٧٢ )

**يو اشكال او ددې جوابونه** : دلته يو اشكال كيږي د مسلمان فاسق او فاجر سره ترك خو جائز دې خو كافر لره پريخودل جائز نه دى ، حال دا دې چه كافر د مسلمان فاسق په مقابله كښې زيات سخت دې ؟

① د دې يو جواب خو دا وركړې شويدې ، يو هجران بالقلب دې او بل هجران باللسان دې، د مسلمان سره هجران باللسان كيږي او د كافر سره هجران بالقلب وى اگر چه د ژبې خبرې اترې ده سره جارى وى خو د زړه محبت ورسره نه وى - (١)

② شارح د بخارى ابن بطال رحمه الله رجحان دې طرف ته دى چه دا د الله حكم دې او بنده د الله د حكم پابند دې ، د الله په احكامو كښې مختلف مصلحتونه وى او الله تعالى ته دا مصلحتونه په بهتر طريقه معلوم دى (٢) گويا دې دا يو امر تعبدى گرځوى -

## ٦٤= بَاب هَلْ يَزُورُ صَاحِبَهُ كُلَّ يَوْمٍ أَوْ بُكْرَةً وَعَشِيًّا

[٥٧٢٩] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمْ أَعْقِلْ أَبَوَيَّ إِلَّا وَهُمَا يَدِينَانِ الدِّينَ وَلَمْ يَمُرَّ عَلَيْهِمَا يَوْمٌ إِلَّا يَأْتِينَا فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَرَفَيْ النَّهَارِ بُكْرَةً وَعَشِيَّةً فَبَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ فِي بَيْتِ أَبِي بَكْرٍ فِي نَحْرِ الظَّهِيرَةِ قَالَ قَائِلٌ هَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِينَا فِيهَا قَالَ أَبُو بَكْرٍ مَا جَاءَ بِهِ فِي هَذِهِ السَّاعَةِ إِلَّا أَمْرٌ قَالَ إِنِّي قَدْ أُذِنَ لِي بِالْخُرُوجِ [ر: ٤٦٤]

**د ترجمة الباب مقصد** : د دې باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه كُه يو سړې روزانه د خپل دوست او د متعلق كور ته ورځى نو دې كښې څه حرج نشته دې ، په حديث كښې ددې اصل شته دې ، روايت د باب كښې دى چه رسول الله ﷺ به د حضرت صديق اكبر كورته د ورځ په شروع كښې يا د دې په آخره حصه كښې تشريف راوړو -

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دا باب قائم كړو شايد ددې مشهور حديث ضعف ته اشاره كوى ، چه هغې كښې دى "زرغبا تزدد حبا" يعنى د يو ورځ په ناغه سره ملاقات كوه نو يو بل سره محبت كښې به مو اضافه راځى ، حافظ وائى چه دا حديث اگر چه په مختلف طريقو سره روايت دې خو يو طريق هم د ضعف او د كلام نه خالى نه ده - (٣)

خو علامه عينى رحمه الله د حافظ ترديد كړيدې او فرمائى چه " هذا تخمين فى حق البخارى لأنه حديث مشهور " (٤) يعنى د امام بخارى رحمه الله په باره كښې دا ويل چه دوى د يو مشهور

---

١) فتح البارى : ١٠\٦١٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٩٥)
٢) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ٩\٢٧٣ )
٣) فتح البارى : ١٠\٦١١)
٤) عمدة القارى : ٢٢\١٤٥)

حديث ضعف ته اشاره کړيده ، نو دا د خپل ځان د طرفه د هغه په حق کښې اندازه کول او د اټکل خبره ده ، د حقيقت سره د دې هيڅ تعلق نشته دې ، مشهور حديث ته هغه څنګه ضعيف ويلې شی -

دا حديث واقعتا مشهور دې او د حضرت ابوهريره نه علاوه د نورو څو اصحابو نه هم منقول دې (١) ابو نعيم ددې تمام طرق راجمع کړيدی ، حافظ ابن حجر فرمائی و قد جمعتها فی جزء مفرد (٢)

او په دواړو حديثونو کښې څه تضاد نشته دې ، کُه دوست اوملګرې بې تکلفه وی او خپل مينځ کښې ئې محبت او خصوصی تعلق بالکل بې غباره وی نو داسې صورت کښې روزانه ملاقات کيدې شی خو کُه تعلق او محبت زيات نه وی نو بيا کله کله ملاقات زيات بهتر او باعث د زيات والی د محبت دې - (٣)

حديث د باب دينه وړاندې څو ځايه تير شويدې او تفصيل سره په **باب الهجرة** کښې تير شويدې -

**يو شبه او ددې جواب** :د چا په ذهن کښې دا شبه راتلې شی چه حضور اکرم ﷺ به حضرت صديق اکبر کره روزانه تلو ، حال دا دې چه حضرت صديق اکبر هم راتلې شو ؟ چه کُه دې راتلې نو شايد د دوی تللو ته به ضرورت نه راپيښيدو ؟

د دې جواب دا دې چه حضرت صديق اکبر به هم يقينا راتللو ، دلته روايت کښې د دې ذکر نشته دې ، دلته د حضرت صديق اکبر سره د محبت او د خصوصی تعلق په بناء د رسول الله ﷺ معمول نقل کړې شو -(٤) ابن التين هم ددې يو جواب ورکړيدې خو دا جواب تسلی بخش نه دې - (٥)

## ٦٥=بَابُ الزِّيَارَةِ

وَمَنْ زَارَ قَوْمًا فَطَعِمَ عِنْدَهُمْ وَزَارَ سَلْمَانُ أَبَا الدَّرْدَاءِ فِي عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَ عِنْدَهُ [ر:١٨٦٧]

[٥٧٣٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَارَ أَهْلَ بَيْتٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَطَعِمَ عِنْدَهُمْ طَعَامًا فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ أَمَرَ بِمَكَانٍ مِنَ الْبَيْتِ فَنُضِحَ لَهُ عَلَى بِسَاطٍ

---

١) عمدة القاری : ٢٢\١٤٥ )

٢) فتح الباری : ١٠\٦١١ )

٣) فتح الباری:١٠\٦١٢،ارشاد الساری : ١٣\٩٦ ،عمدة القاری : ٢٢\١٤٥ ،شرح ابن بطال : ٩\٢٧٤)

٤) فتح الباری : ١٠\٦١١ )

٥) فتح الباری : ١٠\٦١١ و أجاب ابن التين بأنه لم يكن يجيء إلى أبی بكر لمجرد الزيارة بل لما يتزايد عنده من علم الله ، قال ابن حجر : و لم يتضح لی هذا الجواب ، و يحتمل أن يكون منزل أبی بكر كان بين بيت النبی صلى الله عليه و سلم،و بين المسجد، فكان يمربه ، والمقصود المسجد ،و كان يشهده ، كلما مربه )

فَصَلَّى عَلَيْهِ وَدَعَا لَهُمْ [ر:٦٣٩]

**د ملاقات دپاره د راتلونكو په خدمت كښې طعام دې پيش كړې شي** : د چا د ملاقات دپاره چه تلل اوشي او هلته د خوراك كولو موقع ملاو شي نو خوراك كول صحيح دى او سنت كښې د دې اصل شته ، اصحاب حضرات به د يو بل كور ته تلل او هلته به ئې خوراك كولو لكه چه دلته ترجمة الباب كښې دى چه حضرت سلمان فارسى ﷺ د حضرت ابو الدرداء ﷺ د ملاقات دپاره تشريف يوړو او دوى سره ئې خوراك اوكړو ، د زيارت كوونكى او د ملاقات كوونكي په خدمت كښې چه څه حاضر وى هغه پيش كول د اسلام په آدابو كښې يو ادب دې او خپل مينځ كښې د محبت د زياتيدو يو مؤثر ذريعه ده ، علامه ابن بطال رحمه الله ليكي:- "من تمام الزيارة إطعام الزائر ما حضر وإتحافه بما تيسر ، وذلك من كريم الأخلاق ، وهو مما يثبت المودة ويؤكد المحبة" ([1])

روايت د باب كښې دى چه رسول الله ﷺ د يو انصارى كور ته د ملاقات دپاره تشريف يوړو ( دا د عتبان بن مالك كورنۍ وه ) هلته ئې خوراك اوكړو ، چه كله راوتلو نو وې فرمائل د كور يو حصه دې صفا كړې شي ، نو هلته ئې اوبه چړكاؤ كړې او يو پوزې ئې خور كړو ، په دې ئې مونځ اوكړو ، او د دې خلقو دپاره ئې دعاء اوكړه فنضح له على بساط : د نضح معنى ده اوبه چړكاول ، يعني اوبه ئې چړكاو كړې او يو پوزې وغيره ئې خور كړو - ددې حديث نه يو ادب دا معلوم شو چه كله د چا سره خوراك اوكړې شى نو دوى ته دعا كول د خوراك نه پس سنت دې - ([2]) او رسول الله ﷺ به په داسې موقعو باندې د دغه كور والا دپاره د بركت دعاء كوله

**د مسلمان د زيارت او د ملاقات كولو فضائل** : د چا د ملاقات او د زيارت دپاره د تلو باره كښې په احاديثو كښې ډير فضيلت راغلې دې ، امام ترمذى رحمه الله د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت نقل كړيدې ، چه حضور فرمائلي دى " من عاد مريضا أو زار أخاله فى الله ، ناداه مناد: أن طبت وطاب ممشاك وتبوأت من الجنة منزلا" ([3]) ( چه كوم سړې د يو مريض تپوس كوى يا د يو رور ملاقات دپاره ځى نو يو اواز كوونكې آواز كوى " ته دې ښه ئې او د ستا د ا تلل دې ښه وى او د ستا منزل دې جنت وى " - )

امام مالك رحمه الله هم د حضرت معاذ بن جبل نه يو حديث قدسى نه نقل كړيدې چه حضور ﷺ فرمائلي دى "وجبت محبتى للمتحابين فيَّ ، والمتجالسين فيَّ والمتزاورين فيَّ والمتباذلين فيَّ" ([4]) ( ځما محبت د هغه خلقو دپاره ثابت دې چه كوم ځما په وجه د يو بل سره محبت لرى او ديو بل سره كښينى او يو بل سره ملاقات كوى او په يو بل خرچ كوى )

---

[1]) شرح بن بطال : ٩\٢٧٥ )

[2]) فتح البارى : ١٠\٦١٣ ، شرح ابن بطال : ٩\٢٧٥ )

[3]) أخرجه الترمذى فى كتاب البروالصلة ،باب ما جاء فى زيارة الإخوان : ٤\٣٦٥ ( رقم الحديث : ٢٠٠٨)

[4]) الموطاء للإمام مالک رحمه الله فى كتاب الشعر ، باب ما جاء فى المتحابين فى الله : ٢\٩٥٤ ) ....

او امام احمد رحمه الله یو روایت د عتبان بن مالك نه رانقل کړیدې ، د دې الفاظ دی " من زار أخاه المؤمن خاض في الرحمة حتى يرجع " (١) ( چه کوم کس د خپل مومن رور ملاقات کوی نو دې د واپس راتلو وخته پورې د الله تعالی د رحمت په غیږه کښې وی - )

## ٦٦=بَابٌ مَنْ تَجَمَّلَ لِلْوُفُودِ

[٥٧٣١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ قَالَ لِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ مَا الْإِسْتَبْرَقُ قُلْتُ مَا غَلُظَ مِنَ الدِّيبَاجِ وَخَشُنَ مِنْهُ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ يَقُولُ رَأَى عُمَرُ عَلَى رَجُلٍ حُلَّةً مِنْ إِسْتَبْرَقٍ فَأَتَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ اشْتَرِ هَذِهِ فَالْبَسْهَا لِوَفْدِ النَّاسِ إِذَا قَدِمُوا عَلَيْكَ فَقَالَ إِنَّمَا يَلْبَسُ الْحَرِيرَ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فَمَضَى مِنْ ذَلِكَ مَا مَضَى ثُمَّ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ إِلَيْهِ بِحُلَّةٍ فَأَتَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعَثْتَ إِلَيَّ بِهَذِهِ وَقَدْ قُلْتَ فِي مِثْلِهَا مَا قُلْتَ قَالَ إِنَّمَا بَعَثْتُ إِلَيْكَ لِتُصِيبَ بِهَا مَالًا فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَكْرَهُ الْعَلَمَ فِي الثَّوْبِ لِهَذَا الْحَدِيثِ [ر: ٨٣٦]

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د بهر راتلونکو وفدونو د ملاویدو دپاره د خپل عادت نه لر زیات زیب و زینت اختیار کړې شی نودا جائزدې اوسنت کښې ددې اصل شته.

علامه انورشاه کشمیری رحمه الله د صاحب د فتح القدیر په حواله سره په فیض الباری کښې لیکی :

" إن الجمال غير الزينة ، فإن التزين يكون من الأوصاف الرديئة ، بخلاف الجمال ، فإنه من الخصال الحميدة ، ثم فرق أن الزينة هو جلب الحسن و التطرية ، ليكون له منظرا حسنا عند الخلائق ، بخلاف الجمال ، فإنه : اكتساب الحسن لئلا يكون قبيح المنظر ، مشارا إليه بالأصابع يضرب به مثل بين الناس " (٢)

د دې حاصل دا دې چه په زینت او په جمال کښې فرق دې زینت کول ښه عادت نه دې خو جمال ښه خصلت دې ، زینت او جمال کښې فرق دا دې چه زینت خپل ځان په تکلف سره خوبصورته کولو او د ښائسته کولو نوم دې دې دپاره چه خلقو کښې ښائسته په نظر راشم او د جمال معنی دا ده چه سړې هغه بې ډوله طریقې پریږدی چه هسې نه بې ډبه ښکاره شی او په خلقو کښې مسخره جوړ شی او ده پورې خندا ګانې شروع شی ، نو داسې بې ډولتیا ختمولو ته جمال وائی او دا ممدوح هم دې او مقصود هم دې -

---

(١) فتح الباری : ١٠ \ ٦١٢)

(٢) فیض الباری: ٤ \ ٣٩١)

# ٦٧= بَابُ الإِخَاءِ وَالحِلْفِ

وَقَالَ أَبُو جُحَيْفَةَ آخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ [ر: ١٨٦٧]

وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ آخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِي وَبَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ [ر: ١٩٤٣]

[٥٧٣٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَآخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ [ر: ١٩٤٤]

[٥٧٣٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَبَلَغَكَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ فَقَالَ قَدْ حَالَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ قُرَيْشٍ وَالْأَنْصَارِ فِي دَارِي [ر: ٢١٧٢]

إخاء رورولئ ته وائی او حِلْف د حاء په کسره سره او د لام په سکون سره معاهدې ته وائی (١) نبی کریم ﷺ مدينې ته د هجرت په ابتدائي ورځو کښې د اصحابو په مينځ کښې رورولي قائم کړې وه - د ابوجحيفه ( د جيم په ضمه او د حاء په فتحه سره ) نوم وهب بن عبد الله دې، د حضرت ابو الدرداء نوم " عويمر " دې (٢) د ابوجُحيفه دا تعليق د حديث موصول حصه ده چه کوم امام بخاری په باب الهجرة إلى المدينة کښې ذکر کړيدې - (٣)

دارنګه د عبد الرحمن بن عوف او د سعد بن الربيع په مينځ کښې مواخاة قائم کړې وو ، دا حديث هم موصولا په کتاب البيوع ، باب ما جاء فی قول الله تعالى ( فإذا قضيت الصلوة ....... ) کښې تير شويدې -

د باب بل روايت کښې دی چه د حضرت انس رضی الله عنه نه چا تپوس اوکړو چه د رسول الله ﷺ دا حديث تا ته رارسيدلې دې لاحِلْفَ فی الإسلام نو دوی اوويل چه رسول الله ﷺ د قريشو او د انصارو په مينځ کښې خما په کور کښې معاهده کړې وه ، دينه د رورولئ معاهده مراد ده - ديکښې چه د کوم حديث حواله ورکړې شويده ، دا امام مسلم رحمه الله رانقل کړيدې "لا حلف فی الإسلام، وأيما حلف كان فی الجاهلية، لم يزده الإسلام إلا شدة" (٤)

حاصل دا دې چه زمانه د جاهليت کښې به خلقو به د يو بل سره ملګرتيا کولو او امداد

(١) عمدة القاری : ٢٢\١٤٨، ارشاد الساری : ١٣\٩٩)

(٢) ارشاد الساری : ١٣\٩٩) ......

(٣) أخرجه البخاری فی کتاب الصوم ، باب من أقسم على أخيه ليفطر فی التطوع ( رقم الحديث : ١٩٦٨ )

(٤) أخرجه مسلم فی كتاب فضائل الصحابة ، باب مؤاخاة النبی صلى الله عليه و سلم بين أصحابه رضی الله عنهم ؛ ٤\١٩٦٠ ( رقم الحديث : ٢٥٣٠ )

كولو دپاره معاهده كوله ، بيا د ده حليف قبيلې به د ده امداد او حمايت كولو اګر چه دې به په ناجائزه او په باطله وو ..... رسول الله ﷺ د داسې معاهدو رد اوكړو او وې فرمائل لا حلف فى الإسلام -

او داسې معاهده او ميثاق چه د نيكو كارونو دپاره يا د څه امر د خير دپاره وى نو دې باره كښې دوى ﷺ فرمائلې دى لم يزده الإسلام إلا شدة يعنى اسلام داسې معاهدې ته نور هم مضبوط والې وركوى -

امام نووى رحمه الله فرمائى " المنفى حلف التوارث و ما يمنع منه الشرع ، أما التحالف على طاعة الله و نصر المظلوم و المؤاخاة فى الله تعالى فهو أمر مرغب فيه " (1) يعنى ميراث او خلاف شرع امورو كښې خو حلف او معاهده ممنوع ده او د الله تعالى په اطاعت كښې او د مظلوم په نصرت او د رورولئ دپاره كُه په خپل مينځ كښې معاهده اوشى نو د دې ترغيب وركړې شويدې او دا ممنوع نه ده -

د حضرت انس ؓ په حديث كښې دى " قد حالف النبى صلى الله عليه و سلم بين قريش و الأنصار فى دارى" سفيان بن عيينه وايى چه ديكښې د حالف نه مراد مؤاخاة دې - (2)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله ليكي :

لكن سياق عاصم عنه يقتضى أنه أراد المحالفة حقيقة ، ....و ترجمة البخارى ظاهرة فى المغايرة بينهما " (3)

يعنى دينه رورولى نه ده مراد بلكه حقيقتاً حلف او معاهده مراد ده ، امام بخارى رحمه الله هم ترجمة الباب كښې دواړه جُدا كړيدى -

## ٦٨ = بَاب التَّبَسُّمِ وَالضَّحِكِ

وَقَالَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَام أَسَرَّ إِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكْتُ [ر:۳۴۲۶]

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ إِنَّ اللَّهَ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَى [ر:۱۲۲۶]

[۵۷۳۳] حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رِفَاعَةَ الْقُرَظِيَّ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ فَبَتَّ طَلَاقَهَا فَتَزَوَّجَهَا بَعْدَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الزَّبِيرِ فَجَاءَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَهَا آخِرَ ثَلَاثِ تَطْلِيقَاتٍ فَتَزَوَّجَهَا بَعْدَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الزَّبِيرِ وَإِنَّهُ وَاللَّهِ مَا مَعَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِلَّا مِثْلُ هَذِهِ الْهُدْبَةِ لِهُدْبَةٍ أَخَذَتْهَا مِنْ جِلْبَابِهَا قَالَ وَأَبُو بَكْرٍ جَالِسٌ عِنْدَ

---

(1) فتح البارى : ۱۰\۶۱۶ ، شرح مسلم للنووى ، كتاب فضائل الصحابة ، باب مؤاخاة النبى صلى الله عليه وسلم بين أصحابه : ۲\۳۰۸)

(2) فتح البارى : ۱۰\۶۱۵)

(3) فتح البارى : ۱۰\۶۱٤)

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَابْنُ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ جَالِسٌ بِبَابِ الْحُجْرَةِ لِيُؤْذَنَ لَهُ فَطَفِقَ خَالِدٌ يُنَادِي أَبَا بَكْرٍ يَا أَبَا بَكْرٍ أَلَا تَزْجُرُ هٰذِهِ عَمَّا تَجْهَرُ بِهِ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يَزِيدُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى التَّبَسُّمِ ثُمَّ قَالَ لَعَلَّكِ تُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ لَا حَتَّى تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ [ر: ۲۴۹۶]

[۵۷۳۵] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ يَسْأَلْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ عَلَى صَوْتِهِ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ تَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَأَذِنَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ فَقَالَ أَضْحَكَ اللّٰهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي فَقَالَ عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَاءِ اللَّاتِي كُنَّ عِنْدِي لَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ تَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَقَالَ أَنْتَ أَحَقُّ أَنْ يَهَبْنَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْهِنَّ فَقَالَ يَا عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ أَتَهَبْنَنِي وَلَمْ تَهَبْنَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ إِنَّكَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيهٍ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ سَالِكًا فَجًّا إِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ [ر: ۳۱۲۰]

[۵۷۳۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالطَّائِفِ قَالَ إِنَّا قَافِلُونَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَقَالَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَبْرَحُ أَوْ نَفْتَحَهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْدُوا عَلَى الْقِتَالِ قَالَ فَغَدَوْا فَقَاتَلُوهُمْ قِتَالًا شَدِيدًا وَكَثُرَ فِيهِمُ الْجِرَاحَاتُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا قَافِلُونَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ قَالَ فَسَكَتُوا فَضَحِكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بِالْخَبَرِ كُلِّهِ [ر: ۴۰۷۰]

[۵۷۳۷] حَدَّثَنَا مُوسَى حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ أَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَكْتُ وَقَعْتُ عَلَى أَهْلِي فِي رَمَضَانَ قَالَ أَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ لَيْسَ لِي قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ فَأَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا أَجِدُ فَأُتِيَ بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ قَالَ إِبْرَاهِيمُ الْعَرَقُ الْمِكْتَلُ فَقَالَ أَيْنَ السَّائِلُ تَصَدَّقْ بِهَا قَالَ عَلَى أَفْقَرَ مِنِّي وَاللّٰهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنَّا فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ قَالَ فَأَنْتُمْ إِذًا _ [ر: ۱۸۳۴]

[۵۷۳۸] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنْتُ أَمْشِي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَعَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيظُ الْحَاشِيَةِ فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيدَةً قَالَ أَنَسٌ فَنَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ أَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الرِّدَاءِ مِنْ شِدَّةِ جَبْذَتِهِ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ مُرْ لِي مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي عِنْدَكَ فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ فَضَحِكَ ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ [ر: ٢٩٨٠]

[٥٧٣٩] حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ أَسْلَمْتُ وَلَا رَآنِي إِلَّا تَبَسَّمَ فِي وَجْهِي وَلَقَدْ شَكَوْتُ إِلَيْهِ أَنِّي لَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَضَرَبَ بِيَدِهِ فِي صَدْرِي وَقَالَ اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا [ر: ٢٨٥٧]

[٥٧٤٠] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ أُمَّ سُلَيْمٍ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ هَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ غُسْلٌ إِذَا احْتَلَمَتْ قَالَ نَعَمْ إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ فَضَحِكَتْ أُمُّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ أَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبِمَ شَبَهُ الْوَلَدِ [ر: ١٣٠]

[٥٧٤١] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنَا عَمْرٌو أَنَّ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَجْمِعًا قَطُّ ضَاحِكًا حَتَّى أَرَى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ [ر: ٤٥٥١]

[٥٧٤٢] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ ح وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَهُوَ يَخْطُبُ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ قَحَطَ الْمَطَرُ فَاسْتَسْقِ رَبَّكَ فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ وَمَا نَرَى مِنْ سَحَابٍ فَاسْتَسْقَى فَنَشَأَ السَّحَابُ بَعْضُهُ إِلَى بَعْضٍ ثُمَّ مُطِرُوا حَتَّى سَالَتْ مَثَاعِبُ الْمَدِينَةِ فَمَا زَالَتْ إِلَى الْجُمُعَةِ الْمُقْبِلَةِ مَا تُقْلِعُ ثُمَّ قَامَ ذَلِكَ الرَّجُلُ أَوْ غَيْرُهُ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَالَ غَرِقْنَا فَادْعُ رَبَّكَ يَحْبِسْهَا عَنَّا فَضَحِكَ ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا فَجَعَلَ السَّحَابُ يَتَصَدَّعُ عَنِ الْمَدِينَةِ يَمِينًا وَشِمَالًا يُمْطَرُ مَا حَوَالَيْنَا وَلَا يُمْطِرُ مِنْهَا شَيْءٌ يُرِيهِمُ اللَّهُ كَرَامَةَ نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِجَابَةَ دَعْوَتِهِ [ر: ٨٩٠]

علامه عيني او علامه قسطلاني فرمائي : "هذا باب فى إباحة التبسم و الضحك" (١) تبسم مسکې کيدلو ته وائي ، ضحك داسې خندا ته وائي چه ديکښې اواز ډير نرې وی چه نزدې سړې ئې هم واونه رى ، او كه اواز دومره اوچت وى چه ټول ئې واورى نو ديته قهقهه وائي -

**د حضور د خندلو كيفيت** : رسول الله ﷺ به په عام حالاتو كښې تبسم كولو ، كله كله به ئې ضحك كولو - (٢) علامه شامي او نورو فقهاءو د تبسم تعريف کړيدې چه كوم بغير د اوازه وى چه هغې ته مسكاوائي ، ضحك هغه دې چه ديكښې دې په خپله آواز واورى ، او قهقهه

---

(١) ارشاد السارى : ١٣ \ ١٠٠ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٤٧)

(٢) زاد المعاد ، فصل فى هديه صلى الله عليه و سلم فى كلامه و سكونه ، و ضحكه ، و بكائه : ١ \ ١٨٢)

دا ده چه ديکښې په خوا کښې خلق اواز واوری - (۱)

علامه بن قيم رحمه الله په زاد المعاد کښې فرمائى "وكان رجل ضحكه التبسم، بل كله التبسم، فكان نهاية ضحكه أن تبدو نواجذه..... لم يكن ضحكه بقهقهة" (۲)

( د رسول الله ﷺ خندا به بس تبسم وو ، د دوى د خندا انتهاء به دا وه چه د دوى غاښونه مبارك به ښكاره شو ، په قهقهه به دوى كله هم نه خندل )

د رسول الله ﷺ د زيات نه زيات خندا چه كوم كيفيت په روايتونو كښې منقول دى ، نو هغه په الفاظو د " حتى بدت نواجذه .... " سره منقول دې ، لكه دې باب كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كښې دى ...... دينه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ كله هم قهقهه نه ده كړې ، لكه چه وړاندې د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت راځى ، ما رأيت رسول الله صلى الله عليه و سلم مستجمعا ضاحكا"- ( ما كله هم رسول الله ﷺ په پوره خندا نه دې ليدلې - )

خو بعض فقهاء حضراتو د " بدت نواجذه " والا كيفيت په قهقهه كښې شامل كړيدې او ويلې دى چه دې كيفيت سره په مانځه كښې څوك اوخاندى نو د مانځه سره ئې اودس هم ماتيږى (۳) ددې تفسير مطابق د رسول الله ﷺ نه قهقهه ثابته ده، خو جمهور د قهقهه دا تعريف نه كوى - (۴)

د باب تر لاندې امام بخارى رحمه الله اته حديثونه رانقل كړيدى او ديكښې هر يو كښې د ضحك او د تبسم ذكر شته دې -

د دريم حديث په آخر كښې دى ، قال الحميدى : حدثنا سفيان : بالخبر كله " حميدى د امام بخارى رحمه الله شيخ دې او د ده نوم عبد الله بن الزبير دې ، فرمائى چه سفيان بن عيينه دا حديث ماته په صيغه د اخبار سره اورولې دې چرته هم په كښې عنعنه نشته دې -

**قوله: ما رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم مستجمعا ضاحكا:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي ، چه رسول الله ﷺ ما كله هم په پوره خندا نه دې ليدلې ، داسې چه د دوى تالو په نظر راغلې وى . **لَهَوات:** د لهاة جمع ده تالو ته وائى - (۵)

---

۱) رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الطهارة ، مطلب نوم الأنبياء غير ناقض : ۱\۱۰۷ )

۲) زاد المعاد ، فصل فى هديه صلى الله عليه و سلم فى كلامه و سكونه ، و ضحكه ، و بكائه : ۱\۱۸۲)

۳) رد المحتار على الدر المختار ، كتاب الطهارة ، مطلب نوم الأنبياء غير ناقض : ۱\۱۰۷ )......

۴) مجمع بحار الأنوار مادة " لها " : ۴\۵۲۰ ، النهاية لابن الأثير : " باب اللام مع الهاء " : ۴\۲۸۳ )

۵) عمدة القارى : ۲۲\۱۵۲ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۰۸ )

## ۶۹ = باب قول الله تعالی یا أیها الذین آمنوا اتقوا الله وکونوا مع الصادقین [التوبة: ۱۱۹] وما ینهی عن الکذب

[۵۷۴۳] (۱) حدثنا عثمان بن أبي شیبة حدثنا جریر عن منصور عن أبي وائل عن عبد الله رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم قال إن الصدق یهدي إلی البر وإن البر یهدي إلی الجنة وإن الرجل لیصدق حتی یکون صدیقا وإن الکذب یهدي إلی الفجور وإن الفجور یهدي إلی النار وإن الرجل لیکذب حتی یکتب عند الله کذابا

[۵۷۴۴] حدثني محمد بن سلام حدثنا إسماعیل بن جعفر عن أبي سهیل نافع بن مالك بن أبي عامر عن أبیه عن أبي هریرة أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال آیة المنافق ثلاث إذا حدث کذب وإذا وعد أخلف وإذا اؤتمن خان [ر: ۳۳]

[۵۷۴۵] حدثنا موسی بن إسماعیل حدثنا جریر حدثنا أبو رجاء عن سمرة بن جندب رضي الله عنه قال قال النبي صلی الله علیه وسلم رأیت اللیلة رجلین أتیاني قالا الذي رأیته یشق شدقه فکذاب یکذب بالکذبة تحمل عنه حتی تبلغ الآفاق فیصنع به إلی یوم القیامة [ر: ۸۰۹]

**د صدق او د رښتیا اهمیت**: امام بخاری رحمه الله چه دې ابواب کښې د ژوند آداب بیانوی دې وجه نه ئې مختلف اسلامي آدابو او احکامو باندې ابواب قائم کړل، دا باب د صدق او د رښتیا د اهمیت او د دروغو په ممانعت قائم شویدې -

سورة توبة آیت کریمه ئې نقل کړیدې چه هغې کښې الله تعالی د رښتونو سره د کیدو حکم ورکوی، یعنی هغه خلق چه کوم په خپل ایمان، عمل او اقوالو کښې رښتوني دی دروغژن او منافقان نه دې (۲)

د باب ړومبې حدیث د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دې، فرمائی چه صدق او رښتیا نیکي ته هدایت کوی، اونیکی جنت ته هدایت کوی، سړې رښتیا وائی، تر دې چه "صدیق" جوړ شی، او دروغ فسق او فجور ته بوتلل کوی او فسق جهنم ته بوتلل کوی او سړې دروغ وائی وائي تر دې چه د الله تعالی په نزد دې "کذاب" اولیکلې شی -
دا روایت امام بخاری رحمه الله دلته په ړومبې ځل ذکر کړیدې -

---

(۱) ۵۷۴۳) الحدیث أخرجه مسلم فی کتاب البر و الصلة و الآداب، باب قبح الکذب و حسن الصدق: ۴\۲۰۱۲ (رقم الحدیث: ۲۶۰۷) و أخرجه أبوداود فی کتاب الأدب، باب فی التشدید فی الکذب: ۴\۲۹۷ (رقم الحدیث: ۴۹۸۹) و أخرجه الترمذی فی کتاب البر و الصلة، باب ما جاء فی الصدق و الکذب: ۴\۳۴۷ (رقم الحدیث: ۱۹۷۱)

(۲) عمدة القاری: ۲۲\۱۵۲، ارشاد الساری: ۱۳\۱۰۸)

## د دروغو نقصان:

**قوله: حتى يُكتب عند الله كذّاباً:** د حضرت عبد الله بن مسعود په یو بل روایت کښې د دې تفصیل راغلې دې ددې الفاظ دی "لایزال العبد یکذب و تنکت فی قلبه نکتة سوداء حتی یسود قلبه ، فیکتب عند الله من الکاذبین" (۱) (سړې دروغ وائی نو د ده په زړه کښې یو تور داغ لګې تر دې چه د ده زړه پوره تور شی او د الله تعالی په نزد دې په دروغژنو کښې اولیکلې شی)
امام غزالی رحمه الله فرمائي چه کذب قبیح لعینه نه دی ، بلکه دیکښې چه د نورو خلقو ضرر دې نو دې وجه نه دا قبیح دی ، (۲) بعض عالمان دیته قبیح لعینه وائی ځکه چه دا خلاف واقع او خلاف حقیقت خبره اګر چه د چا دپاره مضر نه وی فی نفسه هم قبیح ده -
په بعضې خاص صورتونو کښې د کذب اجازت په خپله احادیثو کښې هم نقل دې ، مثلاً د دوه سړو په مینځ کښې د صلح کولو په غرض سره که د دروغو ضرورت راپیښ شی نو د دې جواز شته ، د ښځې سره په مخصوص صورتونو کښې د دروغو ویلو او په جنګ کښې کافرانو ته د نقصان رسولو په غرض سره د کذب جواز شته دی - (۳)
د باب دویم روایت په تفصیل سره په کشف البارى کتاب الایمان کښې تیر شویدې - (۴)
د کذب په مقابله کښې صدق دې ، صدق فی القول ، صدق فی العمل ، صدق فی العزم او صدق في الایمان ، دا ټول مطلوب او محبوب دی -
د باب آخری روایت کښې دی ، رسول الله ﷺ فرمائي : چه ما اولیدل چه ما ته دوه سړی راغلل (دوی نه مراد حضرت جبرائیل علیه السلام او حضرت میکائیل علیه السلام دی) (۵) او دې دواړو ما ته اوویل ، چه کوم سړې تا اولیدلو چه د ده وخکي شلولې کیږی ، دې کذاب وو ، بخاری ، کتاب الجنائز کښې دی : ده به د دروغو خبرې داسې خورولې چه د دنیا په ټولو ګوټونو کښې به خوریدلې ، د قیامت ورځې پورې به ده سره داسې کیږی ، دلته په روایت کښې اختصار دې ، په جنائز کښې دا روایت په تفصیل سره تیر شویدې ، هلته الفاظ دی :
" رأیت اللیلة رجلین أتیانی فأخذا بیدی و أخرجانی إلی أرض مقدسة ، فإذا رجل جالس ، و رجل قائم ، بیده كلوب من حدید یدخله فی شدقه حتی یبلغ قفاه ، ثم یفعل بشدقه الآخر مثل ذلك ویلتئم شدقه هذا ، فیعود ، فیصنع مثله ، فقلت : ما هذا ؟ قالا : ......" (۶) یعنی ما اولیدل چه د شپې ما ته دوه کسان راغلل ځه دوی مقدس زمکې ته بوتلم ، ما یو سړې اولیدو چه ولاړ دې او دده په لاس کښې د

---

۱) المؤطاء للإمام مالک ، کتاب الجامع ، باب ما جاء فی الصدق و الکذب : ۷۳۲ ؛
۲) فتح البارى : ۱۰\۶۲۲)
۳) رد المحتار ، کتاب الحظر و الإباحة ، فصل فی البیع : ۵\۳۰۳)
۴) کشف البارى ، کتاب الإیمان ، باب علامة المنافق : ۲\۲۷۰ (رقم الحدیث : ۳۳)
۵) لکه چه هم د بخاری په یو روایت کښې د دې دواړو فرشتو نومونه ذکر دی - کتاب الجنائز ، باب بلا ترجمة (رقم الحدیث : ۱۳۲۰)
۶) أخرجه البخاری فی کتاب الجنائز ، باب بلا ترجمة (رقم الحدیث : ۱۳۸۶)

اوسپنې كونده ده چه د يو ناست سړی په وخكې كښې نې ورننه باسی او تر ختته پورې نې راكاږی بيا د بل طرف وخكې سره داسې اوكړې ، او دې وختة پورې رومبې وخكې نې ورغلې وی، بيا دې ورغلې وخكې سره دا عمل په دوباره اوكړی،ما تپوس اوكړو داخه دې؟ نو دوی اوويل ( دې كذاب دې )

## ۷۰=بَاب فِي الْهَدْيِ الصَّالِحِ

[۵۷۴۶] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي أُسَامَةَ أَحَدَّثَكُمْ الْأَعْمَشُ سَمِعْتُ شَقِيقًا قَالَ سَمِعْتُ حُذَيْفَةَ يَقُولُ إِنَّ أَشْبَهَ النَّاسِ دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَابْنُ أُمِّ عَبْدٍ مِنْ حِينِ يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ إِلَيْهِ لَا نَدْرِي مَا يَصْنَعُ فِي أَهْلِهِ إِذَا خَلَا [ر:۳۵۵۱]

[۵۷۴۷] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُخَارِقٍ سَمِعْتُ طَارِقًا قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ إِنَّ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابُ اللَّهِ وَأَحْسَنَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۶۸۴۹]

هَدْی ( د هاء په فتحه او دال په سكون سره ) طريقه ته وائی (۲) امام بخاری رحمه الله د حديث په الفاظو سره دا ترجمه قائم كړيده ، امام بخاری رحمه الله په " الادب المفرد " او امام ابوداود په خپل سنن كښې دا حديث رانقل كړيدې "إن الهدى الصالح و السمت الصالح و الاقتصاد جزء من خمسة وعشرين جزء من النبوة" (۳) ( ښه طريقه ، نيك عادت او ميانه روی د نبوت په پنځويشتو اجزاءو كښې يو جزء او يو حصه ده - )

رومبی روايت كښې حضرت حذيفه رضی الله عنه فرمائی ، خلقو كښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د عادتونو طور او طريقو اوخصلتونو كښې زيات مشابه ابن ام عبد ( حضرت عبد الله بن مسعود ) دې ، د كور نه وتلو نه واخله واپس كيدو پورې ( چه مونږ ته د دوی د ژوند دا معمولات په نظر راځی ، اوس چه كور ته لاړ شی هلته څه كوی هغه مونږ ته نه دی معلوم څكه چه د كور ژوندون خو صرف كور والا ته معلوميدې شی )

په حديث كښې درې لفظونه استعمال شويدی دَل (د دال په فتحه سره) ترجمه ده حسن الحركة فى المشى والحديث وغيرهما (۴) يعنی د انسان د حركاتو او سكناتو ښائست ته دَل وائی - سَمْت ( د سين په فتحه او د ميم په سكون سره ) ښه منظر ته هم وايی او طور طريقو ته هم وائی - (۵)

---

۱) ( ۵۷۴۷ ) الحديث أخرجه البخاری أيضا فی كتاب الإعتصام بالكتاب و السنة ، باب الاقتداء بسنن رسول الله صلى الله عليه و سلم ( رقم الحديث : ۶۸۴۹ )

۲) مجمع بحار الأنوار " مادة هدى " : ۵\۱۴۵ ، النهاية لابن الأثير : ۵\۳۵۳ )

۳) أخرجه أبوداود فی كتاب الأدب ، باب فی الوقار : ۴\۲۴۷ (رقم الحديث : ۴۷۷۶ ) ، الأدب المفرد مع فضل الله الصمد ، باب الهدی و السمت الحسن : ۲\۲۶۰ ( رقم الحديث : ۷۹۱ )

۴) ارشاد الساری : ۱۳\۱۱۱ )

۵) مجمع بحار الأنوار " مادة سمت " : ۳\۱۱۳ ، النهاية لابن الأثير : ۲\۳۹۷ )

هَدْی طور طریقه سکینت او وقار ته وائی ، هدي او دل قریب المعنی دی - (۱)
ددې حدیث په سند کښې اسحاق بن ابراهیم وائي ، ما ابو اسامه (حماد بن اسامه) نه تپوس اوکړو چه اعمش دا حدیث تا ته بیان کړیدې ، نو دوی په هو یا په نه سره جواب رانکړو ، بلکه وړاندې ئې سند نقل کړو او وې ویل: سمعت شقیقا قال سمعت حذیفة..."
شارحین لیکی چه د دوی دا خاموشی او جواب نه ورکول د دوی تصدیق او د "هو" د جواب ورکولو قائم مقام وو (۲) چه د دې حاصل دادې چه د ابواسامه شیخ اعمش دې او دې فرمائی چه ما د شقیق بن سلمه نه اوریدلې دې -
د باب دویم حدیث هم د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ دې ، او امام بخاری رحمه الله په رومبی خل دلته رانقل کړیدې ، هغه فرمائی ، چه د ټولو نه ښائسته کلام کتاب الله دې او د ټولو نه ښائسته طریقه او سیرت د نبي کریم ﷺ طریقه او سیرت دې -
دا حدیث دلته موقوف روایت دې په بعض طریقو کښې مرفوع هم راغلې دې (۳) او د عبد الله بن مسعود په بعض طرق کښې دا اضافه هم شته " وشر الأمور محدثاتها، وإن ما توعدون لآت ، وما أنتم بمعجزین" (۴) اصحاب السنن دا حدیث په مختلف الفاظو سره نقل کړیدې - (۵)
**فائده** : دلته د باب په روایت کښې دی چه حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ په طور طریقو کښې د رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زیات مشابه وو ..... خو بعض روایتونو کښې دا حضرت فاروق اعظم ، او د حضرت فاطمه او د حضرت عمرو بن الاسود په باره کښې راغلې دی ، چه دوی د حضور ﷺ سره د ټولو نه زیات مشابه وو - (۶)
د دې جواب دا ورکولې کیدې شی چه دا د مختلفو اصحابو خپله خپله مشاهده وه ، چا ته په یو کښې او چا ته په بل کښې د حضور ﷺ سره زیات مشابهت په نظر راغلو -
حافظ ابن حجر د دې نور جوابونه هم ذکر کړیدی ، خو راجح هم دا خبره معلومیږی چه کوم مونږ ذکر کړه (۷)

---

۱) عمدة القاری : ۲۲\۱۵٤ ، شرح الکرمانی : ۲۱\۲۲۲ ، فتح الباری : ۱۰\۶۲۵)
۲) عمدة القاری : ۲۲\۱۵٤ ، ارشاد الساری : ۱۳\۱۱۱)
۳) امام احمد رحمه الله دا د حضرت جابر رضی الله عنه نه مرفوع نقل کړیدې د "شر الأمور محدثاتها" اضافې سره (مسند الإمام أحمد بن حنبل فی مسانید جابر بن عبد الله : ۳\۳۱۹)
٤) أخرجه البخاری فی کتاب الإعتصام بالکتاب و السنة ، باب الإقتداء بسنن رسول الله صلی الله علیه و سلم (رقم الحدیث : ۷۲۷۷)
۵) فتح الباری : ۱۰\۶۲۶)
۶) فتح الباری : ۱۰\۶۲۵)
۷) لکه چه حافظ ابن حجر فرمائی " و یحتمل أن تکون مقالة حذیفة و قعت بعد موت عمر " او چه کوم روایت کښې د حضرت فاطمه رضی الله عنها ذکر دې چه د دې د رسول الله صلی الله علیه و سلم سره زیات مشابهت وو او نو دې باره کښې حافظ فرمائی :" قلت: و یجمع بالحمل فی هذا علی نساء " او د حضرت عمرو بن الاسود د زیاتوالی د مشابهت په باره کښې فرمائی...[بقیه برصفحه آئنده..

# ٧١ - باب: الصبر على الأذى

وقوله الله تعالى: إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ (الزمر: ١٠)

[٥٧٤٨] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي الْأَعْمَشُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ أَحَدٌ أَوْ لَيْسَ شَيْءٌ أَصْبَرَ عَلَى أَذًى سَمِعَهُ مِنَ اللَّهِ إِنَّهُمْ لَيَدْعُونَ لَهُ وَلَدًا وَإِنَّهُ لَيُعَافِيهِمْ وَيَرْزُقُهُمْ [ر: ٦٩٩٣]

[٥٧٤٩] حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ شَقِيقًا يَقُولُ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِسْمَةً كَبَعْضِ مَا كَانَ يَقْسِمُ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ وَاللَّهِ إِنَّهَا لَقِسْمَةٌ مَا أُرِيدَ بِهَا وَجْهُ اللَّهِ قُلْتُ أَمَا أَنَا لَأَقُولَنَّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ فِي أَصْحَابِهِ فَسَارَرْتُهُ فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ وَغَضِبَ حَتَّى وَدِدْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ أَخْبَرْتُهُ ثُمَّ قَالَ قَدْ أُوذِيَ مُوسَى بِأَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ فَصَبَرَ [ر: ٢٩٨١]

**د صبر لغوی او صطلاحی معنی او قسمونه:** د صبر لغوی معنی د بندیدو ، ایساریدو راځي او اصطلاح کښې صبر په دري معنی مشهور دې ، یو : صبرعلی المصیبة " دویم : صبرعلی الطاعة او دریم : صبرعن المعصیة -

صبرعلی المصیبة معنی دا ده چه انسان په کوم آزمائش او تکلیف کښې مبتلا وی په هغې د الله تعالی نه هیڅ قسم شکوه او شکایت او د ناراضګئ اظهار اونکړي ، او ددې په وجه د الله تعالی په اطاعت او عبادت کښې هیڅ قسم فرق رانه ولی ، بلکه استقامت سره رضاء بالقضاء باندې عمل کوی ..... (١) دیته " صبرعلی المصیبة " ..... وائي ، قرآن کریم کښې صبر په دې معنی سره ډیر استعمال دې ، او صبر هم په دې معنی د ټولو نه زیات مشهور دې - دلته دې دا خبره یاده وی چه د مصیبت په وخت شکوه شکایت نه کول او راضی بالقضاء اوسیدو اصل اعتبار په ابتدائي وخت کښې دې ، حدیث کښې دی ، الصبرعند صدمة الأولی (٢) روستو چه وخت تیریږی نو صبر خو خود راځی -

دویم قسم صبرعلی الطاعة دې چه د هغې حاصل دا دې چه د الله تعالی په اطاعت او په عبادت باندې سړې په استقامت سره اوسی - (٣)

دریم قسم صبرعن المعصیة دې یعنی د الله تعالی د نافرمانئ او د معصیت نه انسان خپل

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] " قلت : و یجمع بالحمل علی من بعد الصحابة " فتح الباری : ١٠\٦٢٥ )

(١) معارف القرآن ، سورة البقرة : ١\٣٩٤ ، الجامع لأحکام القرآن للقرطبی : ٢\١٧٣ )

(٢) أخرجه البخاری فی کتاب الجنائز ، باب الصبر عند الصدمة الأولی ( رقم الحدیث : ١٣٠٢ )......

(٣) الجامع لأحکام القرآن للقرطبی : ٢\١٧٤ ، معارف القرآن ، سورة البقرة : ١\٣٩٤ )

خان بند اوساتي - (۱)
قران کريم د صابرينو ډير لوې فضيلت بيان کړيدې ، او په قرآن کښې صبر تقريبًا په پنځه نوی ځايونو کښې ذکر شويدې - (۲)
د باب ړومبی روايت کښې حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه فرمائی چه حضور اکرم ﷺ فرمائلې دی ، چه هيڅ يو سړې هم په تکليف ده خبره اوريدو کښې د الله تعالى نه زيات صابر نشته دې چه خلق ده دپاره ځوې وائی او دې ( سره د دې په دنيا ) ده لره معاف کوی او ده ته رزق ورکوی -
ليس أحداو ليس شيء کښې راوی ته شك دې چه کوم لفظ ئې استعمال کړيدې -
**قوله: أصبر على أذى سمعه من الله:** د " من الله " تعلق د أصبر سره دې " من" ... د" أصبر" صله ده ، أذى موصوف او سمعه ئې صفت دې تقدير د عبارت دې .... "ليس أحد أصبر من الله على أذى سمعه..... " د باب دويم حديث کښې هم د صبر ذکر دې -
د امام بخارى رحمه الله مقصد په دې باب کښې د خلقو په اذيت ملاويدو باندې د صبر کولو بيانول دی ، امام ابن ماجه په خپل سنن کښې يو روايت نقل کړيدې ، چه دا د امام بخاری رحمه الله په شرط نه دې ، دې وجه نه امام د دې ذکر اونکړو ، د هغې الفاظ دی "المؤمن الذى يخالط الناس و يصبر على أذاهم أعظم أجرا من المؤمن الذى لايخالط الناس و لا يصبر على أذاهم" (۳) يعنې چه کوم سړې د خلقو سره اوسيږی او د دوی په اذيتونو صبر کوی نو دده ثوابونه د هغه سړې په مقابله کښې زيات دی چه کوم د خلقو سره نه اوسيږی او د دوی په اذيتونو ورکولو صبر نه کوی -

## ۷۲=بَاب مَنْ لَمْ يُوَاجِهِ النَّاسَ بِالْعِتَابِ

[۵۷۵۰] (۴) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَتْ عَائِشَةُ صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَرَخَّصَ فِيهِ فَتَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَطَبَ فَحَمِدَ اللَّهَ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَتَنَزَّهُونَ عَنْ الشَّيْءِ أَصْنَعُهُ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْلَمُهُمْ بِاللَّهِ وَأَشَدُّهُمْ لَهُ خَشْيَةً [ر:۶۸۷۱]
[۵۷۵۱] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ هُوَ ابْنُ أَبِي عُتْبَةَ

---

(۱) معارف القرآن : ۱۱ \ ۳۹۴ )
(۲) ارشاد السارى : ۱۳ \ ۱۱۲ )
(۳) سنن ابن ماجه ، کتاب الفتن ، باب الصبر على البلاء : ۲ \ ۱۳۳۸ ( رقم الحديث : ۴۰۳۲ )
(۴) ۵۷۵۰ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الاعتصام بالكتاب و السنة (رقم الحديث : ۶۸۷۱ ) و أخرجه مسلم فى الفضائل ، باب علمه صلى الله عليه وسلم بالله تعالى و شدة خشيته : ۴ \ ۱۸۲۹ ( رقم الحديث : ۲۳۵۶ )

مَوْلَى أَنَسٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا فَإِذَا رَأَى شَيْئًا يَكْرَهُهُ عَرَفْنَاهُ فِي وَجْهِهِ [ر:٣٣٦٩]

د رسول الله ﷺ يو عادت مباركه دا وو چه دوى ته به د چا خبره بده اولګيده نو خاص ده ته به ئې په تعين سره خطاب د عتاب ( زورنې ) ورکولو نه کولو ، بلکه کُه چا ته به دوى په يو خبره د عتاب ورکولو ضرورت محسوسولو نو عمومى خطاب کښې به ئې عتاب بيان کړو - د حياء د غلبې په وجه به دوى په تعين سره يو خاص کس ته عتاب نه ورکولو ، لکه امام ابوداود رحمه الله د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت رانقل کړيدې " كان النبى صلى الله عليه و سلم إذا بلغه عن الرجل الشىء لم يقل : ما بال فلان يقول ، ولكن يقول : ما بال أقوام يقولون كذا و كذا " (١)

لکه چه د باب په ړومبى روايت کښې دى ، رسول الله ﷺ يو کار اوکړو او ديکښې ئې رخصت هم ورکړو خو خلقو به دينه ځان ساتلو ، نو رسول الله ﷺ ته چه کله معلومه شوه نو دوى خطبه کښې ارشاد اوکړو ، په خلقو څه شويدى چه ما يو کار اوکړو خو خلق دينه بيا هم ځان ساتى ، د الله قسم دې چه څه د خلقو نه الله تعالى زيات پيژنم او ده نه زيات يريږم- دې حديث کښې چه د کوم کار ذکر دې شارحين د بخارى دينه لا علمى ښکاره کوى - (٢)

ديکښې رسول الله ﷺ ما بال أقوام په خطبه کښې ارشاد کړو او نه ئې څوك متعين کړو او نه ئې چا ته په شخصى طور خطاب اوکړو -

د مسلم شريف په روايت کښې دومره اضافه هم ده " فبلغ ذلك النبى صلى الله عليه و سلم ، فغضب حتى بان الغضب فى وجهه " (٣)

**قوله: عن الشىء أصنعه:** د شىء نه مراد کار دې لکه چه د جرير په روايت کښې دى " بلغهم عنى أمر ترخصت فيه فكرهوه و تنزهوا عنه " (٤) او د ابومعاويه په روايت کښې دى " يرغبون عما رخصت فيه " (٥) يعنى چه کوم کار کښې رخصت ورکړې شويدې ، خلقو دې رخصت نه اعراض اوکړو او ددې په کولو شرميږى ، د شعبى مشهور قول دې ، إن الله يحب أن يعمل برخصه كما يحب أن يعمل بعزائمه (٦) يعنى الله تعالى ته لاچه څنګه په عزيمت باندې عمل خوښ

---

(١) سنن أبى داود ، كتاب الأدب ، باب فى حسن العشرة : ٤ \ ٢٥٠ ( رقم الحديث : ٤٧٨٨ ) د ابوداود يو بل روايت کښې دى " كان رسول الله صلى الله عليه و سلم قلما يواجه رجلا فى وجهه بشىء يكرهه ( سنن أبى داود ، كتاب الأدب ، باب فى حسن العشرة : ٤ \ ٢٥٠ ( رقم الحديث : ٤٧٨٩ )

(٢) ارشاد السارى : ١٣ \ ١١٤ )

(٣) رواه مسلم فى كتاب الفضائل ، باب علمه صلى الله عليه و سلم و شدة خشيه : ٤ \ ١٨٢٩ (رقم الحديث: ٢٣٥٦)

(٤) و رواية جرير أخرجها مسلم فى كتاب الفضائل ، باب علمه صلى الله عليه و سلم و شدة خشيه : ٤ \ ١٨١٩ ( رقم الحديث : ٢٣٥٦ )

(٥) و رواية أبى معاوية أيضا فى مسلم فى كتاب الفضائل ، باب علمه صلى الله عليه و سلم و شدة خشيه : ٤ \ ١٨٢٩ ( رقم الحديث ٢٣٥٦ )

(٦) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ٩ \ ٢٨٧ )

دې نو داسې ورته په رخصتونو هم عمل کول خوښ دې -
د باب دويم روايت کښې دی ، رسول الله ﷺ د پرده دارې پيغلې جينۍ نه هم زيات حياء دار وو ..... عذراء ، پيغلې جينۍ ته وائی ، خدر : پردې ته وائی ، علامه عينی رحمه الله ترجمة الباب سره د حديث مناسبت بيانولو کښې ليکی :
" مطابقته للترجمة من حيث إنه لشدة حيائه لايعاتب أحداً في وجهه " (١) يعنی دوی ﷺ کښې چه حياء ډيره زياته وه نودې وجه نه دوی يو خاص کس مخاطب کړې او زورلې نه دې -

## ۷۳ = بَابُ مَنْ أَكْفَرَ أَخَاهُ بِغَيْرِ تَأْوِيلٍ فَهُوَ كَمَا قَالَ

[۵۷۵۲] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ قَالَا حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِأَخِيهِ يَا كَافِرُ فَقَدْ بَاءَ بِهِ أَحَدُهُمَا وَقَالَ عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ عَنْ يَحْيَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ سَمِعَ أَبَا سَلَمَةَ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[۵۷۵۳] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَيُّمَا رَجُلٍ قَالَ لِأَخِيهِ يَا كَافِرُ فَقَدْ بَاءَ بِهَا أَحَدُهُمَا

[۵۷۵۴] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ عُذِّبَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ وَلَعْنُ الْمُؤْمِنِ كَقَتْلِهِ وَمَنْ رَمَى مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهِ [ر: ۱۲۹۷]

دامام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه که يو مسلمان بل مسلمان بغير د څه قرينې او د دليله او د تاويله تکفير اوکړی نو دې په خپله کافر کيږی ، " بغير د تاويله " قيد ئې ځکه اولګوله چه که د تاويل او د دليل د وجه نه د ده تکفير اوکړی ، نو بيا دې معذور دې - (٣) لکه چه په را روان باب کښې راځی -
د باب لاندې چه کوم احاديث راغلې دی په دې باندې خبرې شو بابه وړاندې باب ما ينهی من السباب و اللعن کښې شويدی ، د " فهو کما قال " يو تاويل ابن بطال کړيدې ، هغه فرمائی ، ما د مهلب نه دې باره کښې تپوس اوکړو دوی په مختلف تعبيرونو کښې هم يو جواب راکړو ، او وې ويل چه د فهو کما قال مطلب دا دې چه دې دروغژن دې ، کافر نه دې

---

(١) عمدة القاری : ۲۲\۱۵۶ )
(٢) ۵۷۵۲ ) هذا الحديث من إفراد الإمام البخاری ، عمدة القاری : ۲۲\۱۵۷ )
(٣) عمدة القاری : ۲۲\۱۵۷ )

يعني چه څنګه په نورو باندې د دروغو فتوى لګوى ، داسي دې په خپله دروغژن دې (۱)
د عكرمه بن عمار تعليق ابونعيم او حارث بن ابى سلمه موصولاً نقل كړيدې - (۲)

## ۷۴=بَاب مَنْ لَمْ يَرَ إِكْفَارَ مَنْ قَالَ ذَلِكَ مُتَأَوِّلًا أَوْ جَاهِلًا

وَقَالَ عُمَرُ لِحَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِنَّهُ مُنَافِقٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ قَدْ اطَّلَعَ إِلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ [ر: ۲۸۴۵]

[۵۷۵۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبَادَةَ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ أَخْبَرَنَا سَلِيمٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ يُصَلِّي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ يَأْتِي قَوْمَهُ فَيُصَلِّي بِهِمْ الصَّلَاةَ فَقَرَأَ بِهِمْ الْبَقَرَةَ قَالَ فَتَجَوَّزَ رَجُلٌ فَصَلَّى صَلَاةً خَفِيفَةً فَبَلَغَ ذَلِكَ مُعَاذًا فَقَالَ إِنَّهُ مُنَافِقٌ فَبَلَغَ ذَلِكَ الرَّجُلَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا قَوْمٌ نَعْمَلُ بِأَيْدِينَا وَنَسْقِي بِنَوَاضِحِنَا وَإِنَّ مُعَاذًا صَلَّى بِنَا الْبَارِحَةَ فَقَرَأَ الْبَقَرَةَ فَتَجَوَّزْتُ فَزَعَمَ أَنِّي مُنَافِقٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مُعَاذُ أَفَتَّانٌ أَنْتَ ثَلَاثًا اقْرَأْ وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا وَسَبِّحْ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَنَحْوَهَا [ر: ۶۶۸]

[۵۷۵۶] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ مِنْكُمْ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ بِاللَّاتِ وَالْعُزَّى فَلْيَقُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ [ر: ۴۵۷۹]

[۵۷۵۷] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ أَدْرَكَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فِي رَكْبٍ وَهُوَ يَحْلِفُ بِأَبِيهِ فَنَادَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ فَمَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللَّهِ وَإِلَّا فَلْيَصْمُتْ [ر: ۲۵۳۳]

**د ترجمة الباب مقصد :** دې باب كښې امام بخارى رحمه الله د هغه خلقو دليل بيان كړيدې چه كوم د جهالت يا د تاويل په بناء باندې د چا تكفير كوونكى ته كافر نه وائى لكه چه مهلب فرمائى :

"معنى هذا الباب أن المتأول معذور غير مأثوم ، ألا ترى أن عمر بن الخطاب قال لحاطب ، لما كاتب المشركين بخبر النبى : إنه منافق ، فعذر النبى عليه السلام عمر لما نسبه إلى النفاق -- وهو أسوأ الكفر -- ولم يكفر عمر بذلك من أجل ما جناه حاطب ، وكذلك عذر عليه السلام معاذ حين قال للذى خفف الصلاة وقطعها خلفه : إنه منافق ، لأنه كان متأولا ، فلم يكفر معاذا بذلك" (۳) يعنى د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه د عذر او د تاويل په وجه كه څوك چا ته كافر اووائى نو دې ګنهګار نه دې ، لكه چه

---

۱) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ۹/ ۲۸۹)
۲) فتح البارى : ۱۰/ ۶۳۱)
۳) شرح ابن بطال : ۹/ ۲۹۱)

حضرت فاروق اعظم حضرت حاطب ته منافق اوویلې خو رسول الله ﷺ دوی معذور اوګرځولو ځکه چه حضرت فاروق اعظم ده ته د خط لیکلو د جرم په وجه منافق ویلې وو ، دارنګه حضرت معاذ بن جبل د مونځ نه تلونکی سړي ته منافق اوویلې ، حضور دې هم معذور اوګرځولو ، ځکه چه ده سره هم د خپلې خبرې تاویل او دلیل وو -

① د شارحینو د کلام حاصل دا دې چه ړومبی باب کښې امام بخاری رحمه الله دا بیان اوکړو چه بغیر د تاویله تکفیر کول باعث د کفر دې او دې باب کښې امام بخاری رحمه الله دا بیانوی چه د تاویل او د عدم واقفیت په بنیاد باندې تکفیر کوونکې معذور دې - (۱)

② شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله یو بله خبره لیکلې ده ، هغه په " الابواب و التراجم " کښې لیکی :

مایخطر بالبال -- و الله أعلم بحقیقة الحال -- أنهما مسألتان مختلفتان ، فالباب الأول کما قال الشراح فی حق من قال للآخر : یا کافر ، بغیر تاویل فی هذا القول ، و أما الباب الثانی فمؤداه عندی مسألة أخری ، وهی تکفیر من قال کلمة الکفر ، أو فعل فعلا یوجب الکفر جاهلا أو متأولا ، فمتعلق التأویل ههنا فعل المقول فیه ، لا فعل القائل ، بخلاف الترجمة السابقة ، فإنها علی عکس ذلك ، وعلی هذا لایلزم التکرار ، فتأمل ، فإنه لطیف مناسب لدقائق تراجم البخاری ، و مطابقة حدیث الباب أعنی قصة حاطب أما علی قول الشراح ، ففی قول عمر : إنه منافق ، فإنما قال عمر ما قاله متأولا ، و أما علی ما اخترته فی معنی الترجمة ، فالمطابقة فی فعل حاطب ، فإنه فعل ما فعله متأولا ، و الله أعلم " (۲)

حضرت شیخ الحدیث صاحب رحمه الله د ویلو حاصل دا دې چه د تیر شوی ترجمة الباب مقصد هم هغه مقصد دې چه کوم شارحینو بیان کړیدې ، چه بغیر د تاویله د چا تکفیر کول جائز نه دی او موجب د کفر دی ، خو ددې باب نه د امام بخاری رحمه الله غرض د تاویل په وجه د تکفیر کوونکی حکم بیانول مقصد نه دې بلکه د هغه سړی دپاره د جواز بیان کول مقصد دې ، چه هغه د تاویل یا د جهالت په وجه څه کافرانه قول یا عمل اختیار کړو نو ړومبی باب د قائل سره متعلق دې یعنی چه نورو ته کافر وائی او دا باب د مقول فیه سره متعلق دې یعنی چه کوم سړی ته کافر اوویلې د ده باره کښې دې چه کُه ده د کفر والا کار د څه تاویل د وجه نه کړې وی نو دې معذور دې لکه چه حضرت حاطب د خط لیکلو تاویل بیان کړو چه ما ته معلومه وه چه مسلمانانو ته به په دې سره څه نقصان نه رسی ، خو ما ته به دا فائده اوشی چه خما اهل و عیال به محفوظ شی -

**قوله: من حلف منکم فقال فی حلفه ......:** د دې حدیث مناسبت د ترجمة الباب د دویم جزء " جاهلا " سره دې چه چا د جهالت په وجه د لات او د عزی قسم اوکړو نو دې دې کلمه د توحید اووائی ، خو چه دغه وخت خلق د زمانه د جاهلیت سره نزدې وو او د جاهلیت

---

۱) عمدة القاری : ۲۲\۱۵۸ ، ارشاد الساری : ۱۳\۱۱٦ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱٦ )
۲) الأبواب و التراجم : ۲\۱۱٦ )

د زماني الفاظ او تعبيرات او كلمات د دوى په ژبو پراته وو ، دې وجه نه حضور اكرم ﷺ د جهالت او د غلطئ په وجه داسې حلف كوونكې معذور اوګرځولو - (1)

## ۷۵- بَابُ مَا يَجُوزُ مِنَ الْغَضَبِ وَالشِّدَّةِ لِأَمْرِ اللَّهِ

وَقَالَ اللَّهُ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ [التوبة: ۷۳]

[۵۷۵۸] حَدَّثَنَا يَسَرَةُ بْنُ صَفْوَانَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي الْبَيْتِ قِرَامٌ فِيهِ صُوَرٌ فَتَلَوَّنَ وَجْهُهُ ثُمَّ تَنَاوَلَ السِّتْرَ فَهَتَكَهُ وَقَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشَدِّ النَّاسِ عَذَابًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ الَّذِينَ يُصَوِّرُونَ هَذِهِ الصُّوَرَ [ر: ۲۳۴۷] .

[۵۷۵۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي لَأَتَأَخَّرُ عَنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيلُ بِنَا قَالَ فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطُّ أَشَدَّ غَضَبًا فِي مَوْعِظَةٍ مِنْهُ يَوْمَئِذٍ قَالَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ مِنْكُمْ مُنَفِّرِينَ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيَتَجَوَّزْ فَإِنَّ فِيهِمُ الْمَرِيضَ وَالْكَبِيرَ وَذَا الْحَاجَةِ [ر: ۹۰]

[۵۷۶۰] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي رَأَى فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ نُخَامَةً فَحَكَّهَا بِيَدِهِ فَتَغَيَّظَ ثُمَّ قَالَ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا كَانَ فِي الصَّلَاةِ فَإِنَّ اللَّهَ حِيَالَ وَجْهِهِ فَلَا يَتَنَخَّمَنَّ حِيَالَ وَجْهِهِ فِي الصَّلَاةِ [ر: ۳۹۸]

[۵۷۶۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ أَخْبَرَنَا رَبِيعَةُ بْنُ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ عَرِّفْهَا سَنَةً ثُمَّ اعْرِفْ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ خُذْهَا فَإِنَّمَا هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ قَالَ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ أَوْ احْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَاؤُهَا وَسِقَاؤُهَا حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا [ر: ۹۱]

**د ترجمة الباب مقصد:** د امام بخاري رحمه الله مقصد ترجمة الباب نه دا دې چه رسول الله ﷺ به د خلقو په اذيت وركولو صبر كولو او د خپل ذات دپاره به ئې د دوى نه انتقام نه اخستلو او دوى سره د شفقت او د نرمئ سلوك كول اګر چه د دوى اخلاق كريمه كښې داخل وو خو دين اود شريعت اود الله تعالى د احكامو په معامله كښې به دوى رعايت نه كولو (2)

---

(1) عمدة القاري : ۲۲\۱۵۹ ، شرح ابن بطال : ۹\۲۹۲ )

(2) فتح الباري : ۱۰\۶۳٤ ، عمدة القاري : ۲۲\۱۶۰ )

بلكه الله جل شانه په قرآن كريم كښې د الله د دښمنانو كافرانو سره د سخت برتاو حكم كړيدې ، ارشاد دې (يآأيها النبى جاهد الكفار و المنافقين و اغلظ عليهم)[1] دا رنګه باب كښې دننه امام بخاري رحمه الله چه كوم روايتونه رانقل كړيدى ، ديكښې د رسول الله ﷺ د غضب او دغصه ذكر دې -

د باب رومبې روايت په كتاب اللباس باب ما وطئ من التصاوير كښې تير شويدې - چه كور كښې ئې تصويرونه اوليدل نو دوى غصه شو او د مخ مبارك رنګ ئې بدل شو -

دويم روايت كښې دى چه اوږد مونځ وركوونكى ته دوى ﷺ غصه شو ، دا روايت هم په كتاب الصلاة كښې تير شويدې - ([2])

دريم روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ مونځ كولو نو د قبلې په طرف د سجدې كولو په ځائې كښې توك ( بلغم يا خړينګ ) اوليدلو نو دا ئې په خپل لاس سره صفا كړو او غصه شو او وې فرمائل چه تاسو كښې كله يو كس په مانځه كښې وى نو الله تعالى دده مخامخ وى ، دې وجه په مانځه كښې خپلې مخې ته د پوزې وغيره رطوبت مه غورزوئ -

نُخامة ( د ميم په ضمه سره ) د پوزې وغيره نه چه كوم رطوبت اوځى هغې ته وائى ، حِيال وجهه : حِيال ( د حاء په كسره سره ) د مخامخ په معنى دې - ([3]) أى مقابل وجهه ، يو روايت كښې " قِبَل وجهه " دې ([4])

د باب څلورم حديث كښې هم د دوى د غصې ذكر دې ، ديكښې دى فغضب رسول الله صلى الله عليه و سلم حتى أحمرت وجنتاه .... وجنة ننګى ته وائى ، وكاء : تار ( د تړلو تار ) ته وائى - عفاص ( د عين په كسره سره ) ګوتئ ته وائى - لايتنخّمن : دباب تفعيل د تنخّم معنى ده پوزه خونړ كول - ([5]) دا حديث كتاب اللقطة ، باب ضالة الإبل كښې تير شويدې -

[٥٧٦٢] وَقَالَ الْمَكِّيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ ح وحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ احْتَجَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُجَيْرَةً مُخَصَّفَةً أَوْ حَصِيرًا فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِيهَا فَتَتَبَّعَ إِلَيْهِ رِجَالٌ وَجَاءُوا

---

[1] سورة التحريم : ٩ )

[2] أخرجه البخاري فى كتاب الصلاة ، باب تخفيف الإمام فى القيام ، و إتمام الركوع و السجود ( رقم الحديث : ٧٠٢ )

[3] فتح البارى : ١٠ \ ٦٣٤ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٢٠ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٦١ )

[4] أخرجه البخارى فى كتاب الصلوة ، باب حك البزاق باليد فى المسجد ( رقم الحديث : ٤٠٦ ) و أخرجه مسلم فى كتاب المساجد و مواضع الصلوة ، باب النهى عن البصاق فى المسجد ... ١ \ ٣٨٨ ( رقم الحديث : ٥٤٧ )

[5] مجمع بحار الانوار : ٤ \ ٦٧٦ )

يُصَلُّونَ بِصَلَاتِهِ ثُمَّ جَاءُوا لَيْلَةً فَحَضَرُوا وَأَبْطَأَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُمْ فَلَمْ يَخْرُجْ إِلَيْهِمْ فَرَفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ وَحَصَبُوا الْبَابَ فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ مُغْضَبًا فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا زَالَ بِكُمْ صَنِيعُكُمْ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُكْتَبُ عَلَيْكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالصَّلَاةِ فِي بُيُوتِكُمْ فَإِنَّ خَيْرَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ [ر:٦٩٨]

د باب آخری روایت د مکی بن ابراهیم دې ، مکی د ده نوم دې دا مکه ته نسبت نه دې ، علامه مزی او ائمه رجال ددې تصریح کړېده - (١)

**محمد بن زیاد:** د محمد بن زیاد ذکر دلته په رومبي خل راغلی دې ، صحیح بخاری کښې د ده صرف هم دا یو حدیث دې (٢) ابن حبان په کتاب الثقات کښې د ده ذکر کړیدې - (٣) ابن عساکر فرمائی " روی عنه البخاری کالمقرون " (٤) ابن منده ده ته ضعیف ویلې دې (٥) حافظ ابن حجر په " تقریب " کښې فرمائی " صدوق یخطي " (٦) په دوه سوه او پنځوستمه هجری کال کښې د ده وفات شوې وو - (٧)

**قوله: احتجر رسول الله صلی الله علیه وسلم حُجَيْرَةً مُخَصَّفَةً أو حصيرا:** د احتجر معنی ده په زمکه باندې نخه او علامه وغیره لګول چه څوك په دې کښېنه نی ، حُجَيْرَة په تصغیر سره هم دې او حَجِيْرَة ( د حاء په فتحه او جیم په کسره سره ) هم دې ، بیل او خانله خائې ته وائی - مُخَصَّفَة : د باب تفعیل نه صیغه د اسم مفعول ده - خصفه نه جوړ شویدې ، امام نووی فرمائی خصفه او حصیر دواړه په یو معنی دی ، و المعنی احتجر حجرة أی حوط موضعا من المسجد بحصیر یستره لیصلی فیه ولا یمر علیه أحد ویتوفر علیه فراغ القلب (٨)

یعنی رسول الله ﷺ یو خانلا خائې د کجورو د ښاخونو یا دپوزو نه جوړ کړې وو دې دپاره چه دیکښې په سکون سره مونځ اوکړې شی -

**قوله: وحصبوا الباب:** په دروازه کُتکانړي ویشتل - حصبوا : أی رموه بالحصباء ، حصباء کُتکانړو ته وائی - (٩)

---

١) علامه مزی فرمائی : " ذکره الخلیفة بن خیاط فی الطبقة الخامسة من أهل خراسان " او وړاندې فرمائی : " و قال الحافظ ابوبکر الخطیب : إن مکی بن ابراهیم رواه هکذا بالری وهو جائی من خراسان یرید الحج .... تهذیب الکمال : ٢٨ \ ٤٧٩ ، ٤٨٠ ، ( رقم الترجمة : ٦١٧٠ ) و تاریخ الخطیب : ١٣ \ ١١٧ )

٢) فتح الباری : ١٠ \ ٦٣٤ وارشاد الساری : ١٣ \ ١٢٢ )

٣) کتاب الثقات لابن الحبان : ٩ \ ١١٤ )

٤) تهذیب الکمال : ٢٥ \ ٢١٦ ( رقم الترجمة : ٥٢٢١ )

٥) تقریب التهذیب ک ٤٧٨ ( رقم الترجمة : ٥٨٨٧ )

٦) تهذیب الکمال : ٢٥ \ ٢١٧ ( رقم الترجمة : ٥٢٢١ )

٧) تهذیب الکمال : ٢٥ \ ٢١٧ ( رقم الترجمة : ٥٢٢١ )

٨) شرح مسلم للنووی ، کتاب صلوة المسافرین ، باب استحباب صلوة النافلة فی بیته .... : ١ \ ٢٦٦ )

٩) عمدة القاری : ٢٢ \ ١٦٢ )

د روايت حاصل دا دي چه رسول الله ﷺ د مانځه دپاره کوم بيل ځائې جوړ کړې وو ، ديکښې ئې يو شپه مونځ اوکړو ، خلقو هم ديکښې مونځ کول شروع کړل ، په بله ورځ خلق راغلل ، دوی ﷺ رانغللو نو خلقو شور جوړ کړو او په دروازه ئې ټکټکانړې ويشتل شروع کړل ، رسول الله ﷺ د غصې په حالت کښې د کوره راووتلو او وې فرمائل چه څه دې دپاره را اونه وتلم چه څه يريدم چه هسې نه تاسو باندې دا مونځ فرض کړې شي -

رسول الله ﷺ په دې موقع ولې غصه شو حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی :

" والظاهر أن غضبه لكونهم اجتمعوا بغير أمره فلم يكتفوا بالإشارة منه لكونه لم يخرج عليهم بل بالغوا فحصبوا بابه أو غضب لكونه تأخر إشفاقا عليهم لئلا تفرض عليهم ، وهم يظنون غير ذلك " (١)

يعنی رسول الله ﷺ يا خو ددې وجه نه غصه شو چه دغلته موجود خلق په دې اشاره پوهه نه شو چه دوی راونه وتل بلکه دوی د کور په دروازه ټکټکانړې ويشتل شروع کړل نو دوی ﷺ ته دا طريقه ناخوښه شوه او غصه شو -

يا ددې وجه نه غصه شو چه د رسول الله ﷺ تاخير کول په وجه د شفقت وو چه هسې نه دا مونځ په دوی فرض نه شی دې وجه نه دوی راونه وتل ، او خلقو نور څه اوګڼړل -

علامه کرمانی رحمه الله د دوی د غصه کيدو يو بله وجه هم ليکلې ده چه خلقو د دوی د اجازت نه بغير د دوی په جوړ شوی مخصوص ځائې باندې مونځ اوکړو ، دې وجه نه دوی ﷺ غصه شو - (٢)

خو حافظ ابن حجر دا بعيد ګرځولې ده (٣) علامه عينی رحمه الله په حافظ باندې تنقيد کړيدې اوفرمائی چه دا څه بعيد خبره نه ده (٤) دا روايت په كتاب الصلوة کښې تير شويدې (٥)

## ٧٦=بَاب الْحَذَرِ مِنْ الْغَضَبِ

لِقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى وَالَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ [الشورى:٣٧]

وَقَوْلِهِ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنْ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ [ر:آل عمران:١٣٤]

[٥٧٦٣] (٦) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الشَّدِيدُ

---

١) فتح الباری : ١٠\٦٣٥ )

٢) شرح البخاری للكرمانی : ٢١\٢٣٢ )

٣) فتح الباری : ١٠\٦٣٥ )

٤) عمدة القاری : ٢٢\١٦٥ )

٥) صحيح البخاری كتاب الصلوة ، باب شرب الناس و الدواب من الأنهار ( رقم الحديث : ٢٣٧٢ )

٦) ٥٧٦٣ ) الحديث أخرجه مسلم فی كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب فضل...[بقيه برصفحه آئنده....

الصُّرَعَةِ إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ

[۵۷٦۴] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ صُرَدٍ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ عِنْدَهُ جُلُوسٌ وَأَحَدُهُمَا يَسُبُّ صَاحِبَهُ مُغْضَبًا قَدِ احْمَرَّ وَجْهُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ لَوْ قَالَ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ فَقَالُوا لِلرَّجُلِ أَلَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّي لَسْتُ بِمَجْنُونٍ [ر:۳۱۰۸]

[۵۷٦۵] (۱) حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا أَبُو بَكْرٍ هُوَ ابْنُ عَيَّاشٍ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصِنِي قَالَ لَا تَغْضَبْ فَرَدَّدَ مِرَارًا قَالَ لَا تَغْضَبْ

دینه د وړاندیني باب حاصل دا وو چه د دیني او شرعي امورو او د الله تعالی د احکامو په سلسله کښې د غصه او د غضبناك کیدو جواز شته ، د دې باب مقصد دا دې چه د الله تعالی د حکم نه علاوه په عام معاشرتي رویو کښې د غصې او د غضب نه حتی الامکان ځان ساتل پکار دی (۲)

ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله دوه آیتونه ذکر کړیدی ، دواړو آیتونو کښې د مؤمنانو صفت بیان کړې شویدې چه دوی غصه خوری ، د غصې د تقاضو مطابق عمل کولو په ځائې معاف کول کوی او دارنګه د غصې د بدو نتائجو نه محفوظ پاتې کیږی ، یو د سورة شوری آیت کریمه دې چه دیکښې دی ( وإذا ما غضبوا هم يغفرون ) د غصې په وخت معاف کول د غصې نه بچ کیدل دی -

دویم آیت د سورة آل عمران دې چه هغې کښې دی ( والكاظمين الغيظ والعافين عن الناس )

د باب رومبې روایت کښې دی چه پهلوان هغه کس نه دې چه کوم زیات راپرزول کوی بلکه پهلوان هغه کس دې چه د غصې په وخت په خپل نفس قابو اوساتی -

صُرَعة د صاد په ضمه او د راء په فتحه سره پهلوان ته وائی ، دا د فُعَلة وزن د مبالغې صیغه ده لکه چه حُقَظَة او ضُحَكة دې یعنی هغه کس چه ډیر راپرزول کوی - (۳)

...بقیه ازحاشیه گذشته] من یملك نفسه عند الغضب : ۴ \ ۲۰۱۴ ( رقم الحدیث : ۲٦۰۹ ) و أخرجه النسائی فی کتاب عمل الیوم و اللیلة : ٦ \ ۱۰۵ ( رقم الحدیث : ۱۰۲۲٦ )

۱) ۵۷٦۵ ) الحدیث أخرجه الترمذی فی کتاب البر و الصلة ، باب ما جاء فی کثرة الغضب : ۴ \ ۳۷۱ (رقم الحدیث : ۲۰۲۰ )

۲) عمدة القاری : ۲۲ \ ۱٦۳ )

۳) فتح الباری : ۱۰ \ ٦۳٦ ، شرح الکرمانی : ۲۱ \ ۲۳۳ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۱٦۳ ، وقال ابن الأثیر : " الصُّرَعة بضم الصاد و فتح الراء : المبالغة فی الصراع الذی لا یُغلب ، فنقله إلی الذی...[بقیه برصفحه آئنده....

د باب آخری روایت کښې دی چه یو سړي رسول الله ﷺ ته درخواست اوکړو چه ما ته وصیت اوکړئ ، نو دوی ﷺ اوفرمائل :" غصه مه کوه " درې ځله دوی دا ارشاد اوکړو ، د مسند احمد او د صحیح ابن حبان په روایت کښې د ده نوم جاریه بن قدامه راغلې دې - (۱)

د لاتغضب دا معنی هم کیدې شی چه د غصې او د غضب اسباب مه اختیاروه ځکه چه غصه خو یو طبعی څیز دې دینه نهی نه صحیح کیږی خو اسباب د غضب اختیاری دی ، علامه خطابی رحمه الله هم دا معنی اخستې ده - (۲)

او دا مطلب هم کیدې شی چه د غصې په تقاضو عمل مه کوه یعنی د غصې په حالت کښې چه دې زړه څه ویل او څه کول غواړی دینه خپل ځان بند کړه - (۳)

درې ځله دوی د تاکید دپاره اوفرمائل ، چه کله به هم د دوی ﷺ دیو خبرې تاکید مقصود وو نو دوی به درې ځله ارشاد فرمائلو - (۴)

او دا وجه هم کیدې شی چه سائل کښې غصه زیاته وه ، دې وجه نه دوی ﷺ په ده د قابو ساتلو دپاره دا درې ځله ویلې وی - (۵)

## ٧٧= بَابُ الْحَيَاءِ

[٥٧٦٦] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِي السَّوَّارِ الْعَدَوِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ فَقَالَ بُشَيْرُ بْنُ كَعْبٍ مَكْتُوبٌ فِي الْحِكْمَةِ إِنَّ مِنْ الْحَيَاءِ وَقَارًا وَإِنَّ مِنْ الْحَيَاءِ سَكِينَةً فَقَالَ لَهُ عِمْرَانُ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتُحَدِّثُنِي عَنْ صَحِيفَتِكَ

[٥٧٦٧] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَجُلٍ وَهُوَ يُعَاتِبُ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] يغلب نفسه عند الغضب و يقهرها ، فإنه إذا ملكها كان قد قهر أقوى أعدائه و شر خصومه ، و لذلك قال : " أعدى عدو لك نفسك التى بين جنبيك " النهاية : ٣ \ ٢٤ ، مجمع بحار الأنوار : ٣ \ ٣١٣ )

۱) مسند الإمام أحمد بن حنبل فى مسانيد جارية ابن قدامة : ٥ \ ٣٤ ، لاإحسان بترتيب صحيح ابن حبان ، كتاب الحظر و الإباحة ، باب الاستماع المكروه ، و سوء الظن ، و الغضب ، و الفحش : ٨ \ ٤٧٩ ( رقم الحديث : ٥٦٦٠ ، ٥٦٦١ )

۲) فتح الباري : ١٠ \ ٦٣٧ ، عمدة القاري : ٢٢ \ ١٦٤ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ١٢٦ )

۳) فتح الباري : ١٠ \ ٦٣٧ ، عمدة القاري : ٢٢ \ ١٦٤ ، شرح الكرمانى : ٢١ \ ٢٣٤ )

۴) لکه چه د حضرت انس روایت دې : " عن أنس عن النبى صلى الله عليه و سلم ، أنه كان إذا تكلم بكلمة ، أعادها ثلاثا حتى تفهم عنه ... " صحيح البخارى ، كتاب العلم ، باب من أعاد الحديث ثلاثا ليُفهم عن ، رقم الحديث : ٩٥ )

۵) فتح الباري : ١٠ \ ٦٣٧ )

أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ يَقُولُ إِنَّكَ لَتَسْتَحْيِي حَتَّى كَأَنَّهُ يَقُولُ قَدْ أَضَرَّ بِكَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيمَانِ [ر:٢٤]

[٥٧٦٨] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ مَوْلَى أَنَسٍ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي عُتْبَةَ سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ يَقُولُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا [ر:٣٣٦٩]

حياء په انسان كښې يو داسې صفت دې چه د ډيرو بدو نه د انسان په بندولو موثر كردار كوى ، امام بخارى رحمه الله چه اخلاق او اداب بيانوى نو دې وجه نه دلته ئې د حياء متعلق درې بابه قائم كړل - د حياء متعلق تفصيل كتاب الايمان ، باب الحياء من الايمان كښې تير شويدې - دلته څو خبرې په دوباره اوګورئ :

**د حياء لغوى او اصطلاحى معنى** : لغت كښې حياء د ماتيدلو او د انكسارپه معنى ده ، ابن دقيق العيد فرمائى چه حياء په اصل كښې په معنى د امتناع يعنى د بنديدو راځى ، بيا دا د انقباض په معنى كښې استعمال شوه - (١)

او په اصطلاح كښې امام راغب د حياء تعريف كړيدې " خلق يبعث على اجتناب القبيح و يمنع عن التقصير فى حق ذى الحق " (٢)

او د بعض عالمانو نه دا تعريف منقول دې " الحياء حالة تتولد من رؤية النعماء و رؤية التقصير " (٣)

( يعنى حياء د هغه حالت او كيفيت نوم دې چه كوم د الله تعالى په بې شماره نعمتونو كښې او په خپلو كوتاهو كښې د غور كولو نه راپيدا كيږى - )

بعض عالمانو حياء په شرعى ،عرفى او په عقلى خانو كښې تقسيم كړيده ، ځكه چه اسباب د حياء شرع ، عقل او عرف درې واړه كيدې شى ، دې وجه نه چه كوم سبب هم بيا موندې شو ، نو ديته به د حياء نسبت كيږى - (٤)

علامه انور شاه كشميرى رحمه الله په فيض البارى كښې فرمائى چه څيز هم يو دې خو د سبب په نسبت سره ئې نوم كښې فرق راځى - (٥)

بعض امور عرف كښې باعث د شرم جوړيږى ، اصل حياء شرعى ده ، حياء عرفى محمود ده ، خو هله چه كله د شريعت سره متصادم نه وى (٦) مثلاً بعض قومونو كښې طلاق باعث

---

(١) شرح الطيبى ، كتاب الإيمان ، الفصل الأول : ١\١١٣ ( رقم الحديث : ٥ ) المرقاة شرح المشكاة ، كتاب الإيمان ، الفصل الأول : ١\٧٠ ، النهاية لابن الأثير : ١\٤٧٢ )

(٢) شرح الطيبى ، كتاب الإيمان ، الفصل الأول : ١\١١٣ ( رقم الحديث : ٥ ) المرقاة شرح المشكاة ، كتاب الإيمان ، و قول النبى صلى الله عليه و سلم : بنى الإسلام على خمس : ١\١٢٩ )

(٣) أشعة اللمعات : ١\٦٣ ، عمدة القارى ، كتاب الإيمان ، باب الإيمان و قول النبى صلى الله عليه و سلم بنى الإسلام على خمس : ١\٢٢٩ )...

(٤) فضل البارى : ١\٣٢٢ )

(٥) فيض البارى ، كتاب الايمان باب امور الايمان : ١\٧٩ )

(٦) فضل البارى : ١\٣٢٢ ، ٣٢٣ )

د عار او باعث د شرم دي ، دې وجه نه دې عرفي حياء د وجه نه څه خلق د ظلم داسې ارتكاب هم كوي چه ښځې ته طلاق هم نه وركوي او ددې حقوق هم قطعا نه اداء كوي ، نتيجه ئې د ظلم په صورت كښې رااوځي او دا ظلم د عرفي حياء نتيجه ده ، نو داسې عرفي حياء محمود نه ده چه كومه د شريعت سره متصادم وي ... دارنگه د پټو مسئلو نه د عرفي حياء د وجه جاهل پاتې كيدل هم صحيح نه دي ، حضرت عائشه رضي الله عنها د انصارو د ښځو تعريف اوكړو او فرمائلې وو "نعم النساء نساء الأنصار ، لم يكن يمنعهن الحياء أن يتفقهن في الدين"[1] ( د انصارو ښځې ډيرې ښې دي د دين په مسئلو خان پوهولو كښې نه شرميږي - )

دلته د باب رومبې روايت د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه دې ، رسول الله ﷺ فرمائي چه حياء نيكي راولي ، بشير بن كعب وائي چه د حكمت په كتابونوكښې ئې ليكلې دي ، چه حياء د وقار او د سكون سبب دې .... عمران بن حصين رضي الله عنه چه دا واوريدل نو خفه شو او وې فرمائل چه څه تا ته د رسول الله ﷺ حديث بيانوم او ته ما ته د خپل كتاب نه خبرې اوروې -

چه حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه حديث د رسول بيان كړو او بشير بن كعب د دې په تائيد كښې د حكمت د كتابونو نه د حياء متعلق خبره رانقل كړه ، نو حضرت عمران بن حصين ته دا تقابل ښه اونه لگيدو ، دا رنگه دې كښې د حديث د رسول او د يو عام قول د گډيدو هم يره كيده ، نو دې وجه نه دا په دوى بده اولگيده - ([2])

د باب دويم حديث كښې دي چه رسول الله ﷺ د يو سړي په خوا كښې تيريدو ، ده خپل رور ..... چه ډير شرميدونكې وو ........ رټلو او ورته ئې ويل چه ته دومره حياء كوې ؟ گويا ده دا ويل چه تا ته به د دينه نقصان ملاو شي ، رسول الله ﷺ اوفرمايل دې پريږده ، ځكه چه حياء د ايمان حصه ده - حافظ ابن حجر فرمائي چه ددې سړي او دده د رور نوم ما ته معلوم نه شو - ([3])

د حياء طبعي په وجه انسان چه د ډيرو زياتو مصيبتونو او گناهونو نه بچ كيږي ، دې وجه نه حضور ﷺ اوفرمائل : چه دا د ايمانه ده ، يو حديث كښې ئې حياء د ايمان شعبو نه يو شعبه گرځولې ده - ([4])

---

[1]) أخرجه مسلم في كتاب الحيض ، باب استحباب استعمال المغتسلة من الحيض : ١ \ ٢٦١ ( رقم الحديث : ٣٣٢ )

[2]) فتح الباري : ١٠ \ ٦٣٩ ، ٦٤٠ ، ارشاد الساري : ١٣ \ ١٢٨ )

[3]) فتح الباري : ١٠ \ ٦٤٠ )

[4]) عن أبي هريرة عن النبي صلى الله عليه و سلم قال : الإيمان بضع و سبعون شعبة و الحياء من الإيمان ، أخرجه البخاري في كتاب الإيمان ، باب أمور الإيمان ( رقم الحديث : ٩ ) و أخرجه مسلم في كتاب الإيمان ، باب بيان عدد شعب الإيمان : ١ \ ٦٣ ( رقم الحديث : ٣٥ )

## ٧٨=بَاب إِذَا لَمْ تَسْتَحِي فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ

[٥٧٦٩] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مَنْصُورٌ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ حَدَّثَنَا أَبُو مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى إِذَا لَمْ تَسْتَحِي فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ [ر: ٣٢٩٦]

فارسى كښې دې ترجمه شويده چه كومه محاوره جوړه شويده چه .... " بې حياء باش و هر چه خواهى كن " حياء چه دې د ستركو نه لاړه شى او د بې حيائۍ مرض راپيدا شى نو بيا د معاصى او د ګناهونو سلسله نه بنديږى -

## ٧٩=بَاب مَا لَا يُسْتَحْيَا مِنْ الْحَقِّ لِلتَّفَقُّهِ فِي الدِّينِ

[٥٧٧٠] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحِي مِنْ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ غُسْلٌ إِذَا احْتَلَمَتْ فَقَالَ نَعَمْ إِذَا رَأَتْ الْمَاءَ [ر: ١٣٠]

[٥٧٧١] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مُحَارِبُ بْنُ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُولُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ شَجَرَةٍ خَضْرَاءَ لَا يَسْقُطُ وَرَقُهَا وَلَا يَتَحَاتُّ فَقَالَ الْقَوْمُ هِيَ شَجَرَةُ كَذَا هِيَ شَجَرَةُ كَذَا فَأَرَدْتُ أَنْ أَقُولَ هِيَ النَّخْلَةُ وَأَنَا غُلَامٌ شَابٌّ فَاسْتَحْيَيْتُ فَقَالَ هِيَ النَّخْلَةُ وَعَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنَا خُبَيْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ مِثْلَهُ وَزَادَ فَحَدَّثْتُ بِهِ عُمَرَ فَقَالَ لَوْ كُنْتَ قُلْتَهَا لَكَانَ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا [ر: ٦١]

[٥٧٧٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا مَرْحُومٌ سَمِعْتُ ثَابِتًا أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْرِضُ عَلَيْهِ نَفْسَهَا فَقَالَتْ هَلْ لَكَ حَاجَةٌ فِيَّ فَقَالَتْ ابْنَتُهُ مَا أَقَلَّ حَيَاءَهَا فَقَالَ هِيَ خَيْرٌ مِنْكِ عَرَضَتْ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهَا _ [ر: ٤٨٢٨]

امام بخارى رحمه الله د دې باب سره مقصد واضح دې چه حياء اګر چه يو محمود وصف دې خو د دين حكم معلومولو دپاره حياء مانع كيدل نه دى پكار لكه چه په باب كښې د ذكر شوې روايتونو نه معلوميږى -

دويم روايت كښې حضرت ابن عمر رسول الله ﷺ ته د سوال جواب ورنكړې شو حال دا وو چه ده ته جواب ورتلو ، حضرت فاروق اعظم د دوى په نه خودلو باندې افسوس ښكاره كړو چه دينه معلومه شوه چه د دين په معاملاتو كښې حياء نه دى كول پكار ، هم د دې په مناسبت سره دا حديث امام بخارى رحمه الله دلته ذكر كړيدې ....... لكه چه علامه عينى رحمه الله ليكى : قيل : لا مطابقة هنا بين الحديث و الترجمة ، لأن الترجمة فيما لايستحيا وفى الحديث

استحى يعني عبد الله، قلت: تفهم المطابقة من كلام عمر بأن عبد الله كان صغيرا فاستحى أن يتكلم عند الأكابر، وقول عمر رضي الله عنه يدل على أن سكوته غير حسن، لأنه لو كان حسنا، لقال له: أصبت، فبالنظر إلى كلام عمر يدخل في:

"باب ما لا يستحيا" (١)

د باب دريم روايت كښې دى فقالت ابنته: ما أقل حياءها

د حضرت انس لور اوويل: چه كومې ښځې خپل خان دوى ﷺ ته پيش كړې وو دا څومره كمې حياء والا وه . نو حضرت انس لور ته اوويل: دا د ستا نه بهتره وه څكه چه دې خان رسول الله ﷺ ته پيش كړې وو (او ظاهره ده چه دا ئې د حضور د ذات سره عقيدت او محبت وو)

حافظ ابن حجر د دوى ددې لور نوم "أمينة" ليكلې دې (٢)

ددې حديث ترجمة الباب سره مناسبت بيانولو كښې علامه عينى رحمه الله ليكى:

مطابقته للترجمة من حيث إن المرأة المذكورة لم تستحى فيما سألته، لأن سؤالها كان للتقرب إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم، وتصير من أمهات المؤمنين المتضمنة لسعادات الدارين (٣)

يعني مذكوره ښځې چه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې كوم درخواست كړې وو ، ديكښې دا څكه نه وه شرميدلې چه د دې مقصد د حضور ﷺ نزديكت حاصلول وو او په امهات المؤمنين كښې خپل نوم شاملول وو چه دې سره به ديته د دنيا او د آخرت دواړه سعادتونه نصيب شى!

## ٨٠ = بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا وَكَانَ يُحِبُّ التَّخْفِيفَ وَالْيُسْرَ عَلَى النَّاسِ

[٥٧٧٣] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ لَمَّا بَعَثَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَالَ لَهُمَا يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَتَطَاوَعَا قَالَ أَبُو مُوسَى يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضٍ يُصْنَعُ فِيهَا شَرَابٌ مِنْ الْعَسَلِ يُقَالُ لَهُ الْبِتْعُ وَشَرَابٌ مِنْ الشَّعِيرِ يُقَالُ لَهُ الْمِزْرُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ [ر: ٢٨٧٣]

[٥٧٧٤] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا وَسَكِّنُوا وَلَا تُنَفِّرُوا [ر: ٦٩]

---

[١] عمدة القارى: ٢٢ \ ١٦٦ )
[٢] فتح البارى: ١٠ \ ٦٣٢ )
[٣] عمدة القارى: ٢٢ \ ١٦٧ )

[۵۷۷۵] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ قَطُّ إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فِي شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا أَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمَ بِهَا لِلّٰهِ [ر: ۳۳۶۷]

[۵۷۷۶] حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنِ الْأَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ كُنَّا عَلَى شَاطِئِ نَهَرٍ بِالْأَهْوَازِ قَدْ نَضَبَ عَنْهُ الْمَاءُ فَجَاءَ أَبُو بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيُّ عَلَى فَرَسٍ فَصَلَّى وَخَلَّى فَرَسَهُ فَانْطَلَقَتِ الْفَرَسُ فَتَرَكَ صَلَاتَهُ وَتَبِعَهَا حَتَّى أَدْرَكَهَا فَأَخَذَهَا ثُمَّ جَاءَ فَقَضَى صَلَاتَهُ وَفِينَا رَجُلٌ لَهُ رَأْيٌ فَأَقْبَلَ يَقُولُ انْظُرُوا إِلَى هَذَا الشَّيْخِ تَرَكَ صَلَاتَهُ مِنْ أَجْلِ فَرَسٍ فَأَقْبَلَ فَقَالَ مَا عَنَّفَنِي أَحَدٌ مُنْذُ فَارَقْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ إِنَّ مَنْزِلِي مُتَرَاخٍ فَلَوْ صَلَّيْتُ وَتَرَكْتُهُ لَمْ آتِ أَهْلِي إِلَى اللَّيْلِ وَذَكَرَ أَنَّهُ قَدْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى مِنْ تَيْسِيرِهِ [ر: ۱۱۵۳]

[۵۷۷۷] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يُونُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَعْرَابِيًّا بَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَثَارَ إِلَيْهِ النَّاسُ لِيَقَعُوا بِهِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوهُ وَأَهْرِيقُوا عَلَى بَوْلِهِ ذَنُوبًا مِنْ مَاءٍ أَوْ سَجْلًا مِنْ مَاءٍ فَإِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِينَ وَلَمْ تُبْعَثُوا مُعَسِّرِينَ [ر: ۲۱۷]

**بې ځایه سختي په شریعت کښې محبوب نه ده**: د دین په معامله او په دینی امورو کښې سختی او خامخا بې ځایه شدت په شریعت کښې خوښ عمل نه دې ، بلکه چه کوم ځائې شریعت وسعت او رخصت ورکړیدې ، هلته دینه استفاده کول پکار دی .... د خپل ځان دپاره خو بیله خبره ده ، که څوك صاحب عزیمت وی او د خپل مضبوط ایمان په وجه ځان دپاره اوچت معیار قائموی نو دا بیله خبره ده خو د عامو خلقو دپاره د عزیمت هم دغه معیار نه شئ قائمولې ، ځکه چه عام خلق په دې عمل نه شی کولې -

په باب کښې ذکر شوی ټول روایتونه وړاندې تیر شویدی او دیکښې د اسانو او د رخصت ذکر دې -

نَضَبَ عنه الماءُ : د دې اوبه اوچې شوې وې ، د نَضَبَ معنی د اوچیدو راځی -

**قوله: وفینا رجل له رأيٌ**: مونږ کښې یو سړې وو هغه یو فاسده رائي لرله " له رأيٌ " کښې تنوین د تحقیر دپاره دې : **أی له رأيٌ فاسد**، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : چه د رائ نه د خوارج رائ مراد ده ، لکه چه کتاب الصلاة، **باب إذا انفلتت الدابة في الصلوة** په روایت کښې دی " **فجعل رجل من الخوارج یقول** " (۱)

(۱) فتح الباری : ۱۰\۶۴۴)

**قوله: ليقعوا به:** وقع به: تكليف وركول، اذيت وركول، ذنوب (د ذال په فتحه سره) دولچې ته وائى [1]

حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى: "وفى هذه الأحاديث أن الغلو ومجاوزة القصد فى العبادة وغيرها مذموم، وأن المحمود من جميع ذلك ما أمكنت المواظبة معه، وأمن صاحبه العجب وغيره من المهلكات" [2]

يعنى دې احاديثو نه معلومه شوه چه عبادت كښې غلو او د ميانه روئ نه تجاوز كول مذموم دى، چه په كومه اندازه د عبادت مواظبت او دوام كيدې او انسان د عجب وغيره مهلكو باطنى مرضونو نه محفوظ پاتې كيدې شى هم دا محمود او خوښ دې-

## ۸۱=بَابُ الِانْبِسَاطِ إِلَى النَّاسِ

وَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ خَالِطِ النَّاسَ وَدِينَكَ لَا تَكْلِمَنَّهُ وَالدُّعَابَةِ مَعَ الْأَهْلِ

[۵۷۷۸] ([3]) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقُولُ إِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُخَالِطُنَا حَتَّى يَقُولَ لِأَخٍ لِي صَغِيرٍ يَا أَبَا عُمَيْرٍ مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ [ر: ۵۸۵۰]

[۵۷۷۹] ([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ لِي صَوَاحِبُ يَلْعَبْنَ مَعِي فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ يَتَقَمَّعْنَ مِنْهُ فَيُسَرِّبُهُنَّ إِلَيَّ فَيَلْعَبْنَ مَعِي

د خلقو سره په رونړ تندى او په روښانه مخ ملاويدل او دوى ته مخامخ راتلو باره كښې امام بخارى رحمه الله دا باب قائم كړيدې .... ترجمة الباب كښې د حضرت عبد الله بن مسعود قول نقل كړيدې چه دا طبرانى په "معجم كبير" كښې موصولا نقل كړيدې [5]

---

[1] مجمع بحار الانوار: ۲\۲۵۰، النهاية لابن الاثير: ۲\۱۷۱)

[2] فتح البارى: ۱۰\۶۴۴)

[3] ۵۷۷۸) الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى كتاب الأدب، باب الكنية للصبى وقبل أن يولد للرجل (رقم الحديث: ۵۸۵۰) و أخرجه الترمذى فى كتاب البر و الصلة، باب ما جاء فى المزاح: ۴\۳۵۷ (رقم الحديث: ۱۹۷۹) و أخرجه مسلم فى الآداب، باب استحباب تحنيك المولود عند ولادته و حمله إلى صالح يحنكه ..... ۳\۱۶۹۳ (رقم الحديث: ۲۱۵۰) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب، باب ما جاء فى الرجل يتكنى وليس له ولد: ۴\۲۹۳ (رقم الحديث: ۴۹۶۹) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الأدب، باب المزاح: ۲\۱۲۲۴ (رقم الحديث: ۳۷۱۶)

[4] ۵۷۷۹) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب فضائل الصحابة، باب فى فضل عائشة رضى الله عنها: ۴\۱۸۹۰ (رقم الحديث: ۲۴۴۰)

[5] معجم كبير للطبرانى، مرويات عبد الله بن مسعود رضى الله عنه: ۹\۳۵۳ ...[بقيه برصفحه آئنده....

چه د خلقو سره ملاويږئ او ګډون ساتئ خو خپل دين مه زخمي کوئ -

لاتكلمنه: د باب ضرب نه د نهى بانون ثقيله صيغه ده ، كَلَمَ يكلِم--كَلْمًا : زخمى كول -

**قوله: الدُعابة مع الأهل :** دُعابة ( د دال په ضمه سره ) مزاح او لطافت او ظرافت ( **توقي** ) ته وائي ، اهل لغتو ددې ترجمه کړيده الملاطفة في القول بالمزاح (۱)

د کور والا سره ، دارنګه د ملګرو او د متعلقينو سره داسې مزاح کول چه هغې کښې د شرعى حدودو رعايت وى ، نه صرف جائز بلکه مستحب ده ، په خپله رسول الله ﷺ نه داسې مزاح کول ثابت دی - (۲) خو مزاح معمول او مشغله جوړول ناخوښه عمل دې - (۳)

د باب ړومبى روايت کښې حضرت انس فرمائی چه رسول الله ﷺ به مونږ سره ګپ شپ کولو ، تر دې چه څما يو کشر روز ته به ئې ويلې اے ابو عمير : نغير باندې څه اوشو -

د حضرت انس د مور د طرفه يو کشر رور وو ، چه د حضرت ابوطلحه خوې وو ، د دوی نوم " عمر " وو ، رسول الله ﷺ به ده سره خوش طبعى کوله (۴)، ده د نغير نومې يو مارغه ساتلې وو چه ديته په پښتو کښې بلبل وائى (۵) دا ئې مړه شوې وه يا چرته روکه شوې نو دوى به فرمائل : ابو عمير ! په بلبل څه اوشو ؟

**د حديث نه مستنبط فائدې** : د دې مختصر غونده حديث نه عالمانو تقريبًا سلو ته نزدې نزدې مسئلې مستنبط کړيدې ، امام نووى رحمه الله بعضو ته اشاره کوى او ليکى :

" وفى الحديث جواز تكنية من لم يولد له ، وتكنية الطفل ، وأنه ليس كذبا ، وجواز المزاح فيما ليس بإثم ، وجواز السجع فى الكلام الحسن بلا كلفة ، وملاطفة الصبيان وتأنيسهم ، وبيان ما كان عليه النبى صلى الله عليه وسلم من حسن الخُلُق وكرم الشمائل والتواضع " (۶)

① دې حديث نه معلومه شوه چه د چا اولاد نه وى شوې ، هغه هم کنيت ايخودې شى ، د ماشوم کنيت هم ايخودې شى ، ده ته " ابو فلان " ويلې شى دا به په دروغو کښې شمار نه وى - ② مزاح کول جائز دى - ③ کلام کښې بې تکلفه سجع جائز ده -

④ د ماشومانو سره توقې کول جائز دى -

⑤ دې حديث نه د نبى کريم ﷺ د مبارك اخلاقو يو نمونه مخې ته راځى -

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] (رقم الحديث : ۹۷۵۷ ، پوره روايت طبرانى کښې دارنګه دې : عن عبد الله بن باباه عن ابن مسعود قال : خالطو الناس و صافوهم مما يشتهون و دينكم فلا تكلمنه - )

۱) النهاية لابن الأثير : ۲\۱۱۸ ، مجمع بحار الأنوار : ۲\۱۷۴ ، فتح البارى : ۱۰\۶۴۵ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۳۵ )

۲) فتح البارى : ۱۰\۶۴۵ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۲۹ )

۳) قال الإمام الغزالى : من الغلط أن يتخذ المزاح حرفة ، فتح البارى : ۱۰\۱۵۴ )

۴) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۰ )

۵) القاموس الوحيد : ۱۶۷۶ )

۶) شرح مسلم للنووى ، كتاب الآداب ، باب جواز تكنية من لم يولد له ..... : ۲\۲۱۰ )

د باب دويم حديث كښې حضرت عائشه ﵂ فرمائي چه ما به رسول الله ﷺ کره د ګډيانو لوبې کولې ، څما ملګرو به ماسره لوبې کولې ، چه کله به دوی ﷺ تشريف راوړلو نو دوی به پټې شوې ، دوی ﷺ به دوی رااوغوښتلې او ما ته به ئې راوستې ، ما به بيا دوی سره لوبې شروع کړې -

**قوله:** كنت ألعب بالبنات: د بنات نه دلته ګډيانې مراد دی ، ماشومانې د جامو وغيره نه ورې ورې ګډيانې جوړوی بيا دې سره لوبې کوی -

بعض خلقو ويلې دی چه " بنات " نه ملګرې مراد دی،او"باء " په معنی د " مع " سره ده يعنی ما د خپلو ملګرو سره لوبې کولې - (١)

خو دا صحيح نه ده څکه چه دې پسې جمله : و كان لی صواحب .... " کښې د ملګرو ذکر راځی - بلکه د جرير عن هشام په روايت کښې تصريح ده چه د بنات نه ګډيانې مراد دی ، ديکښې دی "كنت ألعب بالبنات وهن اللعب" (٢)

بلکه د سنن ابی داود او د سنن نسائی په يو روايت کښې ددې تفصيل هم شته چه حضور ﷺ يوځل ګډيانې اوليدلې نوحضرت عائشه ﵂ نه ئې تپوس اوکړو "ماهذا ياعائشة؟قالت: بناتی، قالت : و رأى فرسا مربوطا له جناحان ، فقال : ما هذا ؟ قلت : فرس ، قال : فرس له جناحان ؟ قلت : الم تسمع أنه كان لسليمان خيل لها أجنحة فضحك" (٣)

**قوله:** يتقمعن منه فيسربهن: تقمع معنی دپټيدو راځی ، چه کله ميوه په خپله خوشه او پلی کښې دننه وی نو ويلې کيږی تقمع الثمرة - يسربهن : دا د تسريب نه دې أی يبعثهن و يرسلهن يعنی دوی ﷺ به دوی لره څما طرفته رااوليږلې - (٤)

دې حديث نه استدلال کوی او جمهور عالمان فرمائی چه ماشومان ګُه د ګډيانو سره لوبې کوی نو جائز ده - (٥) خو ګډيانو لره به باقاعده سترګو جوړولو نه او د پوزې جوړولو نه او د خلې جوړولو چه باقاعده ورته د بت شکل ورکړې شی څان ساتل پکار دی -

بعض عالمانو دې حديث ته منسوخ ويلې دې او ليکلې دی چه دا د تصويرونو د حرمت نه وړاندې واقعه ده خو دوی سره د تنسيخ دپاره څه دليل نشته دې او دې دپاره دليل ضروری دې - (٦)

---

(١) فتح الباری : ١٠\٦٣٦ ، عمدة القاری : ٢٢\١٧٠ )
(٢) فتح الباری : ١٠\٦٤٦ ، عمدة القاری : ٢٢\١٣٩ )
(٣) سنن أبي داود ، كتاب الأدب ، باب فی اللعب بالبنات : ٤\٢٨٣ ( رقم الحديث : ٤٩٣٢ ) و أخرجه النسائی فی السنن الكبری ، كتاب عشرة النساء ، باب إباحة الرجل اللعب لزوجته بالبنات : ٥\٣٠٥ ( رقم الحديث : ٨٩٥٠ )
(٤) ارشاد الساری : ١٣\١٣٦ )
(٥) عمدة القاری : ٢٢\١٧٠ ، ارشاد الساری : ١٣\١٣٦ ، فتح الباری : ١٠\٦٣٦ )
(٦) عمدة القاری : ٢٢\١٧٠ ، فتح الباری : ١٠\٦٣٦ )

## ٨٢ = بَابُ الْمُدَارَاةِ مَعَ النَّاسِ

وَيُذْكَرُ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ إِنَّا لَنَكْشِرُ فِي وُجُوهِ أَقْوَامٍ وَإِنَّ قُلُوبَنَا لَتَلْعَنُهُمْ

[٥٧٨٠] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ حَدَّثَهُ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ فَقَالَ ائْذَنُوا لَهُ فَبِئْسَ ابْنُ الْعَشِيرَةِ أَوْ بِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ فَلَمَّا دَخَلَ أَلَانَ لَهُ الْكَلَامَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قُلْتَ مَا قُلْتَ ثُمَّ أَلَنْتَ لَهُ فِي الْقَوْلِ فَقَالَ أَيْ عَائِشَةُ إِنَّ شَرَّ النَّاسِ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللَّهِ مَنْ تَرَكَهُ أَوْ وَدَعَهُ النَّاسُ اتِّقَاءَ فُحْشِهِ [ر:٥٦٨٥]

[٥٧٨١] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُهْدِيَتْ لَهُ أَقْبِيَةٌ مِنْ دِيبَاجٍ مُزَرَّرَةٌ بِالذَّهَبِ فَقَسَمَهَا فِي نَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ وَعَزَلَ مِنْهَا وَاحِدًا لِمَخْرَمَةَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَ قَدْ خَبَأْتُ هَذَا لَكَ قَالَ أَيُّوبُ بِثَوْبِهِ وَأَنَّهُ يُرِيهِ إِيَّاهُ وَكَانَ فِي خُلُقِهِ شَيْءٌ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ وَقَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْبِيَةٌ [ر:٢٤٥٩]

**د خاطر مدارت فضيلت** : د خلقو سره په نرمي سره ملاويدو ته مدارات وائي ، ابن عدي په الكامل كښې او طبرانى په معجم اوسط كښې د حضرت جابر ﷺ نه يو مرفوع روايت رانقل كړيدې ديكښې دى " **مداراة الناس صدقة** "[1] دې سند كښې يوسف بن محمد يو راوى دې - چه دې محدثينو ضعيف گرځولې دې خو ابن عدى فرمائى : أرجو لا بأس به[2]

بزار هم په ضعيف سند سره د حضرت ابوهريره يو روايت رانقل كړيدې " **رأس العقل بعد الإيمان بالله مداراة الناس** "[3] يعنى د ايمان راوړو نه پس د ټولو نه لويه عقل مندى د خلقو سره نرم رويه او مدارات اختيارول دى - ابن بطال فرمائى :

" **المداراة من أخلاق المؤمنين ، وهى خفض الجناح للناس ، ولين الكلمة ، وترك الإغلاظ لهم فى القول ، وذلك من أقوى أسباب الألفة** "[4] يعنى خاطر مدارت د مؤمنانو اخلاق دى ، مدارات د خلقو سره عاجزى ، خبرو اترو كښې نرمى اختيارول ، او تريخ والې پريخودلو ته وائى ، چه كوم په خپل مينځ كښې د الفت او د محبت پيدا كولو يو قوى تر سبب دې -

---

[1] الكامل فى ضعفاء الرجال لابن عدى : ٧\١٥٦ ( رقم الترجمة : ١٢\٢٠٦٥ )

[2] ارشاد السارى : ١٣\١٧٨ ، فتح البارى : ١٠\٦٣٧

[3] فتح البارى : ١٠\٦٤٧ ، ارشاد السارى : ١٣\١٣٨

[4] شرح صحيح البخارى لابن البطال : ٩\٣٠٥

په مدارات او په مداهنت کښې دا فرق دې چه په مداهنت کښې په یو بد کار سره د قدرت لرلو سکوت اختیار کړې شی ، اګر چه دا د زړه نه نه وی او مدارات نرم رویه اختیارولو ته وائی - (۱)ویذکرعن أبی الدرداء : إنالنکشرفی وجوه أقوام وإن قلوبنا لتلعنهم
حضرت ابوالدرداء فرمائی چه مونږ بعض خلقو سره په خندا ملاویږو حال دا دې چه دننه خمونږ زړونه په دوی لعنت وائی ، کَشر .... د باب د ضرب نه دې ، غاښونه ښکاره کولو او د مسکی کیدو په معنی راځی (۲)
ابن ابی الدنیا او ابراهیم حربی دا تعلیق موصولاً نقل کړیدې - (۳)
د حضرت ابوالدرداء ﷺ مطلب دا دې چه بعض خلق د بدکردارئ په وجه مونږ ته ښه نه لګی او خمونږ زړونو کښې دوی دپاره ماسوا د نفرته بل څه نه وی خو د ملاویدو په وخت مونږ دوی ته اظهار د خوشحالئ او د خندا کوو ، دیته مدارات وائی
مُزَرَّرة بالذهب .... یعنی دیکښې د سرو زرو تنړئ لګیدلې وې -
**قوله: قال أیوب بثوبه وأنه یریه إیاه:** شارحینو د دې معنی لیکلې ده " والمعنی: أشار أیوب بثوبه لیری الحاضرین کیفیة ما فعل النبی صلی الله علیه و سلم عند کلامه مع مخرمة ، ولفظ القول یطلق ، و یراد به الفعل"
یعنی راوی د حدیث ایوب د رسول الله ﷺ د جامې ورکولو په کیفیت پوهولو دپاره خپله جامه داسې رااویستله او وې خودله .... قال أیوب د " فعل أیوب " په معنی کښې دې ، قول د فعل په معنی هم کله کله استعمالیږی
**قوله: وکان فی خلقه شیء:** یعنی د مخرمه په اخلاقو کښې څه سختې او تیزی وه ، ړومبی حدیث کښې حضور ﷺ د یو سړی په باره کښې " بئس أخوالعشیرة " فرمائلې وو خو روایت کښې د دې سړی څه تعیین نشته دې بعضو ویلې دی چه دا مخرمه وو (۴)
امام بخاری رحمه الله دویم حدیث دینه پس ذکر کړیدې چه هغې کښې د مخرمه ذکر دې ، غالباً دې خبرې ته اشاره کولو دپاره چه ړومبی روایت کښې د " رجل مبهم " نه مخرمه مراد دې - (۵)
**قوله: وقال حاتم بن وردان : حدثنا أیوب ......:** امام بخاری رحمه الله چه کوم موصول روایت ذکر کړیدې دیکښې د صحابی ذکر نشته دې یعنی دا مرسل دې ، چه دا تعلیق ئې راوړلو نو امام په دې سره د دې موصول کیدو ته اشاره اوکړه ، دیکښې د " مسور

۱) فتح الباری : ۱۰\۶۴۷ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۷۱ ، ارشاد الساری : ۱۳\۱۳۶ )
۲) النهایة لابن الأثیر : ۴\۱۷۶ ، مجمع بحار الانوار : ۴\۴۰۴ )
۳) فتح الباری : ۱۰\۶۴۷ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۷۱ )
۴) ارشاد الساری : ۱۳\۱۳۸ ، عمدة القاری : ۲۲\۱۷۲ )
۵) فتح الباری : ۱۰\۶۳۸ )

بن مخرمه" صحابى تذكره ده - دا تعليق امام په" شهادات " كښي موصولاً ذكر كړيدې (۱)

## ۸۳=بَاب لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ مَرَّتَيْنِ وَقَالَ مُعَاوِيَةُ لَا حَكِيمَ إِلَّا ذُو تَجْرِبَةٍ

[۵۷۸۲] (۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ

رسول الله ﷺ فرمائى چه مؤمن نه د يو سورى نه دوه ځله ټك نه وركولې كيږى ، مطلب دا چه مؤمن دوه ځله دهوكه نه خورى ، يو ځل چه ده سره دهوكه اوشى نو دې محتاط كيږى او په دوباره د دهوكې نخه نه ګرځى -

**د حديث سبب د ورود :** د دې حديث سبب د ورود دا دې چه رسول الله ﷺ د غزوه بدر په موقع باندې مشهور شاعر ابوعزه ګرفتار كړو ، خلقو دده سفارش اوكړو نو دوى ﷺ په ده احسان اوكړو او دې ئې آزاد كړو ، خو دا عهد ئې ترينه واخستو چه بيا به دې د اسلام خلاف او د رسول الله ﷺ په مخالفت كښې اشعار نه وائى ... ده د آزاديدو نه پس دا وعده ماته كړه او د پخوا په شان ئې هجويه اشعار ويلې د غزوه احد په موقع په دوباره ګير شو ، بيا څه خلقو د ده سفارش اوكړو خو رسول الله ﷺ په دې موقع اوفرمائل : چه مؤمن د يو سورې نه دوه ځله ټك نه خورى - (۳) لايُلدَغ د مجهول صيغه ده او ديكښې د مؤمن د يو وصف خبر وركړې شويدې ، خو بيا هم شارحينو ليكلى دى چه دا د نهى په معنى كښې دې - نهې په صورت د خبر ده او مطلب دا دې چه مؤمن دپاره محتاط او بيدار اوسيدل پكار دى چه دې بيا بيا دهوكه اونه خورى - (۴)

**قوله: وقـال معـاوية : لا حكيم إلا ذو تجربة:** حضرت معاويه رضي الله عنه فرمائى چه هم تجربه كار سړې حكيم دې ، بعض روايتو نو كښې دى" لاحليم إلا ذوتجربة " (۵)، حليم بردبار او باوقار ته وائى ، مطلب دا دې چه حكمت او پوهه او حلم او بردبارى انسان كښې په تجربو كولو سره پيدا كيږى او مضبوطيږى ، چه كوم كس تجربه كار نه وى او د زمانې نرمې او سختې ئې نه وى ليدلې ، ده كښې حلم او بردبارى ، صبر او تحمل او حكمت او پوهه نه ښكاره كيږى.....دحديث سره د دې اثر مناسبت بيانولو كښې علامه عينى رحمه الله ليكى:

" ومناسبة ذكر أثره للحديث الذى هو الترجمة : هى أن الحليم الذى ليس له تجربة قد يقع فى أمر مرة بعد

---

۱) صحيح البخارى ، كتاب الشهادات ، باب شهادة الأعمى ..... ( رقم الحديث : ۲۶۵۷ )

۲) ۵۷۸۲ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق ، باب لا يلدغ المؤمن من جحر مرتين : ۱۴ ۳۲۹۵ ( رقم الحديث : ۲۹۹۸ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى الحذر من الناس )

۳) فتح البارى : ۱۰\۶۵۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۴۰ )

۴) فتح البارى : ۱۰\۶۵۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۳۹ )

۵) فتح البارى : ۱۰\۶۴۹ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۳۹ )

أخرى فلذاك قيد الحليم بذى التجربة" (1)

يعنى چه د كوم سړى تجربه نه وى هغه به بيا بيا غلطى كوى او دهوكه به خورى ، خو صاحب د تجربه چه حليم دې هغه به داسې نه وى -

امام بخارى رحمه الله په الادب المفرد كښې دا اثر موصولاً نقل كړيدې (2) او امام احمد او ابن حبان دا مرفوعًا نقل كړيدې -(3)

## ۸۴=بَاب حَقِّ الضَّيْفِ

[۵۷۸۳] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَقُومُ اللَّيْلَ وَتَصُومُ النَّهَارَ قُلْتُ بَلَى قَالَ فَلَا تَفْعَلْ قُمْ وَنَمْ وَصُمْ وَأَفْطِرْ فَإِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَإِنَّكَ عَسَى أَنْ يَطُولَ بِكَ عُمْرٌ وَإِنَّ مِنْ حَسْبِكَ أَنْ تَصُومَ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنَّ بِكُلِّ حَسَنَةٍ عَشْرَ أَمْثَالِهَا فَذَلِكَ الدَّهْرُ كُلُّهُ قَالَ فَشَدَّدْتُ فَشُدِّدَ عَلَيَّ فَقُلْتُ فَإِنِّي أُطِيقُ غَيْرَ ذَلِكَ قَالَ فَصُمْ مِنْ كُلِّ جُمُعَةٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ قَالَ فَشَدَّدْتُ فَشُدِّدَ عَلَيَّ قُلْتُ أُطِيقُ غَيْرَ ذَلِكَ قَالَ فَصُمْ صَوْمَ نَبِيِّ اللَّهِ دَاوُدَ قُلْتُ وَمَا صَوْمُ نَبِيِّ اللَّهِ دَاوُدَ قَالَ نِصْفُ الدَّهْرِ [ر:۱۰۷۹]

**د ميلمستيا وركولو حكم** :د ميلمه حق دې چه په قدر د وس د ده ميلمستيا اوشى ، ميلمستيا وركول د جمهورو عالمانو په نزد مسنون او مستحب ده ، او د امام احمد رحمه الله په نزد واجب ده - (4)

د بعض عالمانو په نزد په كلى والو باندې واجب ده ، او په ښار والا باندې نه ده واجب ځكه چه كلى كښې د خوراك وغيره څه انتظام نه وى او په ښار كښې هوټل وغيره وى او خوراك په اسانه ملاويږى - (5)

**قوله**: فشدّدت فشُدّد عليّ : يعنى ما دسختئ او د قوت مظاهره اوكړه چه څه زياتې روژې ساتلې شم نو د رسول الله ﷺ د طرفه هم سختى اوكړې شوه او دوى ﷺ اوفرمائل چه يو ورځ روژه او بله ورځ كوژه كوه ګنى شروع كښې رسول الله ﷺ په مياشت كښې صرف د

---

1) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۲ )

2) فتح البارى : ۱۰\۶۴۶ )

3) مسند احمد فى مسانيد ابى سعيد : ۳\۶۹ )

4) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ ، مرقاة النفاتيح ، كتاب الأطعمة ، باب القيامة : ۸\۲۰۳ ، الجامع لأحكام القرآن للقرطبى ، سورة هود : ۹\۶۴ ، شرح صحيح البخارى لابن البطال : ۹\۳۱۰ )

5) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ )

دري ورځو روژو نيولو دپاره ويلې وو -

حديث د باب كښې دباب كښې دى إن لزورك عليك حقا، زور ميلمه ته وائى -

## ٨٥= بَاب إِكْرَامِ الضَّيْفِ وَخِدْمَتِهِ إِيَّاهُ بِنَفْسِهِ

وَقَوْلِهِ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ الْمُكْرَمِينَ [الذاريات: ٢٤]

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ يُقَالُ هُوَ زَوْرٌ وَهَؤُلَاءِ زَوْرٌ وَضَيْفٌ وَمَعْنَاهُ أَضْيَافُهُ وَزُوَّارُهُ لِأَنَّهَا مَصْدَرٌ مِثْلُ قَوْمٍ رِضًا وَعَدْلٍ يُقَالُ مَاءٌ غَوْرٌ وَبِئْرٌ غَوْرٌ وَمَاءَانِ غَوْرٌ وَمِيَاهٌ غَوْرٌ وَيُقَالُ الْغَوْرُ الْغَائِرُ لَا تَنَالُهُ الدِّلَاءُ كُلَّ شَيْءٍ غُرْتَ فِيهِ فَهُوَ مَغَارَةٌ تَزَاوَرُ [الكهف: ١٧] تَمِيلُ مِنَ الزَّوَرِ وَالْأَزْوَرُ الْأَمْيَلُ

[٥٧٨٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ جَائِزَتُهُ يَوْمٌ وَلَيْلَةٌ وَالضِّيَافَةُ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ فَمَا بَعْدَ ذَلِكَ فَهُوَ صَدَقَةٌ وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَثْوِيَ عِنْدَهُ حَتَّى يُحْرِجَهُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ مِثْلَهُ وَزَادَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [ر: ٥٦٧٣]

[٥٧٨٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [ر: ٣١٥٣]

[٥٧٨٦] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ عَنْ أَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ قُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ تَبْعَثُنَا فَنَنْزِلُ بِقَوْمٍ فَلَا يَقْرُونَنَا فَمَا تَرَى فَقَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ نَزَلْتُمْ بِقَوْمٍ فَأَمَرُوا لَكُمْ بِمَا يَنْبَغِي لِلضَّيْفِ فَاقْبَلُوا فَإِنْ لَمْ يَفْعَلُوا فَخُذُوا مِنْهُمْ حَقَّ الضَّيْفِ الَّذِي يَنْبَغِي لَهُمْ [ر: ٢٣٢٩]

[٥٧٨٧] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ [ر: ٣١٥٣]

**د ترجمة الباب وضاحت :** د ترجمة الباب دوه جزءه دى :

① رومبۍ جزءدې إكرام الضيف و خدمته إياه بنفسه يعنى د ميلمه عزت كول او دده په خپله خدمت كول ......... يو صورت خو ئې دا دې چه د ميلمه د خدمت دپاره چا ته اوويلې شى ، او دې د ده ميلمستيا اوكړې ، دويم صورت دا دى چه انسان په خپله د ده خدمت اوكړى .... دينه پس ئې د قرآن كريم آيت ( ضيف ابراهيم المكرمين ) ذكر كړو امام بخارى رحمه

الله غالبا دیته اشاره کړیده چه ابراهیم عليه السلام په خپله د خپلو میلمنو خدمت کولو، لکه چه قرآن کریم کښې دی ( و جاء بعجل حنيذ ) ([1])
په بعض روایتونو کښې دی چه د میلمستیا طریقه د ټولو نه ړومبې ابراهیم عليه السلام جاری کړیده ، دوی به بغیر د میلمنو نه خوراك نه کولو - ([2])

② امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب د دویم جزء په طور د سورة حجرات آیت کریمه ذکر کړو ( ضيف إبراهيم البكرمين) المكرمين ، د " ضیف " صفت دې ، ضیف د مفرد او د جمع دواړو دپاره استعمالیږی، دلته د جمع دپاره دې، دې دپاره د دې صفت " المكرمين " جمع راوړیده-
د ضیف جمع قلت أضياف او جمع کثرت ئې ضيوف او ضيفان راځی ([3])
وړاندې امام بخاری رحمه الله د لفظ د ضیف په شان درې نور الفاظ هم ذکر کړیدی چه کوم مفرد او جمع په دواړو طریقو استعمالیږی ، لکه چه دې فرمائی :

**قوله: قال أبوعبدالله: يقال: هوزُورٌ وضيف، ومعناه: أضيافه وزُوّارُه:** یعنی زور او ضیف دواړه مفرد ویلې کیږی خو مراد ترینه جمع اخستې کیږی ، ابو عبدالله نه په خپله امام بخاری رحمه الله مراد دی ....... دلیل ئې دا ذکر کړیدې چه دا مصدر دې او مصدر مفرد جمع دواړو دپاره استعمالیږی ، مثلا ویلې کیږی ، قوم رضا او قوم عدل ... دیکښې رضا او عدل دواړه مصدر دی د جمع دپاره استعمال شویدی -
دارنګه ویلې کیږی ماء غَوْر ، بئرغَوْر ، ماءان غور ، میاه غور ...... غور مصدر دې او د مفرد ، تثنیه او د جمع دپاره استعمالیږی ....... دا تفصیل په اصل کښې امام فراء په " معاني القرآن " کښې لیکلې دې او امام بخاری رحمه الله د ده نه اخذ کړیدې ، دوی د قرآن کریم آیت ( قل أرأيتم إن أصبح ماءكم غورا) ([4]) تر لاندې لیکلې دی چه " غورا " جمع نه استعمالیږی - ([5])

**قوله: ويقال: الغور الغائر لا تناله الدِّلاء، كل شيء غرت فيه فهو مَغارَة:** دا د ابوعبیده کلام دې چه غور د غائر په معنی کښې دې یعنی مصدر د اسم فاعل په معنی دې ، اوبه کمې شی یا اوچې شی ، او په ډولچه کښې رااونه څی نو دغه وخت ویلې کیږی ماء غور .... دلاء ، ډولچې ته وائی ، وړاندې فرمائی هر هغه څیز چه دیکښې ته روان ئې دیته " مغارة " وائی او دیته غار هم وائی - ([6])

**قوله: تزاور: تميل من الزور، والأزور، الأميل:** امام بخاری رحمه الله د خپل عادت

---

[1]) سورة هود : ۶۹ )
[2]) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي ، سورة البقرة ( الآية : ۱۲۴ ) ۲\۹۸ )
[3]) عمدة القاري : ۲۲\۱۷۳ )
[4]) سورة الملك : ۳۰ )
[5]) الجامع لأحكام القرآن للقرطبي : ۱۰\۴۰۹ )
[6]) عمدة القاري : ۲۲\۱۷۳ )

مطابق د لفظي مناسبت سره د سورة كهف آيت تفسير ته منتقل شو ، سورة كهف كښې دى ( و ترالشمس إذا طلعت تزاور عن كهفهم ذات اليمين ) ( [1] ) فرمائى ديكښې تزاور د " تميل " په معنى كښې دې يعنى نمر مائله كيږى ، فرمائى دا د " زَور " نه ماخوذ دې ، د زور معنى كوږ والى او ميلان دې ، د أزور معنى أميل دې يعنى زيات مائله كيدل ، دا تشريح د ابوعبيده د كلام نه امام رانقل كړيده - ( [2] )

**قوله: فليكرم ضيفه جائزته يوم وليلة والضيافة ثلاثة أيام فما بعد ذلك فهو صدقة:**

جائزته په تركيب كښې د " ضيفه " نه بدل اشتمال هم كيدې شى ، دې صورت كښې به دا منصوب وى ځكه چه دده متبوع " ضيفه " د " ليكرم " دپاره مفعول به كيدو په بناء منصوب دې ، او دا مبتداء هم كيدې شى" يوم وليلة " دې دپاره خبر دې ، دې صورت كښې به دا مرفوع وى- ( [3] )

د ميلمستيا مده : دينه پس ئې او فرمائل چه ميلمستيا درې ورځې ده ، دينه پس چه څه وركړې شى دا صدقه ده ،

علامه خطابى او نورو څو محدثينو ددې تشريح داسې كړيده چه ټوله مده د ميلمستيا درې ورځې ، ديكښې په ړومبئ ورځ خو دې ښه أكرام اوكړې شى او د ماحضر او دمعمول نه دې زيات اهتمام اوكړې شى ، په دويمه او په دريمه ورځ دې د ما حضر او د معمول مطابق خدمت اوكړې شى .... دې درې ورځو نه پس چه څه وركړې شى ، دا " حق د ضيافت " نه دې بلكه صدقه ده - ( [4] ) د جائزه معنى عطاء ، تحفه ، هديه او د بخشش ده - ( [5] )

ابن بطال رحمه الله فرمائى چه رسول الله ﷺ ميلمستيا په درې حصو تقسيم كړه ، ړومبئ ورځ خو دده خدمت كښې دې هديه او تحفه وړاندې كړې شى ، په دويمه ورځ دې د معمول نه لږ زيات په خوراك كښې تكلف اوكړې شى او په دريمه ورځ دې ماحضر حاضر كړې شى ، دينه پس كوربه ته اختيار دې ، چه د ده خدمت كوى او كه نه كوى لكه چه ځنګه نفلى صدقه كښې اختيار وى - ( [6] ) د علامه خطابى او د ابن بطال د دواړو د تشريح حاصل هم دا دې چه ټوله مده د ميلمستيا درې ورځې ده -

بعضو عالمانو " يوم الجائزة " بيله شمار كړيده ، د دوى په نزد د ضيافت درې ورځې او يو

---

[1] ) سورة الكهف : ۱۷ )

[2] ) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ )

[3] ) ارشاد السارى : ۱۳\۱۴۳ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ )

[4] ) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۵ ، فتح البارى : ۱۰\۶۵۳ )

[5] ) عمدة القارى : ۲۲\۱۷۳ ، مجمع بحار الانوار ، مادة " جوز " : ۱\۴۱۱ ، النهاية لابن الأثير ، مادة " جوز " : ۱\۳۱۴ )

[6] ) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ۹\۳۰۹ ) .

ورځ د " جائزه " ده [1] نو دارنګه ټولې ورځې څلور جوړيږي ، د دې تائيد د مسلم شريف د يو روايت نه هم کيږي ، ديکښې دى " الضيافة ثلاثة أيام و جائزته يوم و ليلة " [2] دينه دا هم معلوميږي چه د " جائزه " د ضيافت نه روستو ده ، ددې حاصل دا راووتلو چه د ميلمه دې درې ورځو پورې ميلمستيا اوکړې شي چه دا د ده حق دې او دينه پس چه په کومه ورځ دې تلو والا وى نو د ده په خدمت کښې دې څه هديه او تحفه هم وړاندې کړې شي [3] او د وړاندينى منزل ته تللو دپاره دې ده ته زاد راه ( د لارې خرچه ) هم ورکړې شي ، ديته " جيزه " وائى ، يو بل حديث کښې ديته اشاره شته " أجيزوا الوفد بنحو ما كنت أجيزهم " [4]

د " جائزته " يو بله تشريح حافظ ابن حجر رحمه الله کړيده ، هغه ليکى : " ويحتمل أن يكون المراد بقوله : " و جائزته " بيانا لحالة أخرى ، و هى أن المسافر تارة يقيم عند من ينزل عليه ، فهذا لا يزاد على الثلاث بتفاصيلها ، و تارة لا يقيم ، فهذا يعطى ما يجوز به قدر كفايته يوما و ليلة ، و هذا أعدل الوجه " [5]

د دې حاصل دا دې چه ميلمه په دوه قسمه دې ، يو خو هغه ميلمه دې چه د کوربه سره درې ورځو پورې اوسيږي ، د ده دپاره خو هم هغه تفصيل دې چه کوم تير شو چه په ړومبۍ ورځ دې ورته ښه اکرام اوکړې ، په دويمه ورځ دې د معمول نه لږ زيات اوکړې شي ، او په دريمه ورځ دې د معمول مطابق ماحضر وړاندې کړى ، دويم هغه ميلمه دې چه د هغه اراده د اوسيدو نه وى ، د ده د رخصتيدو په وخت دې ده ته دې د لارې دپاره دومره خرچه ورکړې چه دده د يو ورځ او د يو شپې دپاره کافى وى ، خلاصه دا ده چه د " ميلمستيا " تعلق د درې ورځو پورې اوسيدونکى ميلمه سره دې او د " جائزه تعلق د هغه ميلمه سره دې چه کوم د قيام اراده نه لرى ، بلکه چه څه لږ ساعت دپاره راغلې وى -

چه کوم حضرات ضيافت او ميلمستيا ته واجب وائى ، هغوى د حديث د باب نه استدلال کوى چه " فما بعد ذلك فهو صدقة " نه معلوميږي چه دينه وړاندې ضيافت صدقه نه ده ، بلکه واجب ده - [6]

خو چه کوم حضرات د وجوب قائل نه دى هغوى وائى چه د صدقه لفظ دلته دې دپاره استعمال شويدې چه د درې ورځو نه زيات څوك په ضيافت باندې مکلف نه کړې شى ،

---

[1] ) ۱۱۷ مرقاة المفاتيح ، كتاب الأطعمة ، باب الضيافة : ۹\۲۰۲ ، شرح الطيبى ، كتاب الأذعمة ، باب الضيافة : ۸\۱۷۲ ( رقم الحديث : ۴۲۴۴ )

[2] ) رواه مسلم فى كتاب اللقطة ، باب الضيافة و نحوها : ۳\۱۳۵۳ ( رقم الحديث : ۱۷۲۶ )

[3] ) فتح البارى : ۱۰\۶۵۳ ، شرح الطيبى ، كتاب الأطعمة ، باب الضيافة : ۸\۱۷۲ ( رقم الحديث : ۴۲۴۴ ) مرقاة المصابيح ، كتاب الأطعمة ، باب الضيافة : ۸\۲۰۲ )....

[4] ) سنن أبى داود ، كتاب الخراج و الإمارة و الفئ ، باب فى إخراج اليهود من جزيرة العرب : ۳\۱۶۵ ( رقم الجديث : ۳۰۲۹ )

[5] ) فتح البارى : ۱۰\۶۵۳ )

[6] ) ۱۲۲ فتح البارى : ۱۰\۶۵۳ ، ارشاد السارى : ۱۳\ ۱۴۴ )

ښکه چه ډير خلق ، خاصکر دولت مند خلق د صدقې د خوراك نه اعراض كوی - (۱)

**قوله: ولا يحل له أن يثوي عنده حتى يُحْرِجه:** د يو ميلمه دپاره دا جائز نه دی چه د كوربه سره دومره ايسار شی چه دې په حرج ، په تنګسيا او په تكليف كښې مبتلاء كړی ، يُحْرِجه د باب د افعال نه دې ، أحرج په معنی د تنګئ او په حرج كښې د اچولو دې -

د صحيح مسلم په يو روايت كښې دی." حتى يؤثمه " (۲) أی: يوقعه فی الإثم ..... امام نووی رحمه الله فرمائی چه دومره دې ايسار نه شی چه كوربه لره په ګناه كښې مبتلاء كړی ښكه چه د زيات اوسيدو په وجه ممكن ده چه كوربه د ده غيبت شروع كړی يا ده ته څه تكليف وركړی يا څه بد ګمانی پرې اوكړی نو دارنګه به كوربه په ګناه كښې مبتلاء شی- (۳)

خو دا حكم هغه وخت دې چه كله د ميلمه په زيات اوسيدو سره كوربه په حرج او تكليف كښې مبتلاء كيږی ، كه د ميلمه په اوسيدو سره كوربه ته څه حرج او تكليف نه وی ، ظاهره ده چه داسې صورت كښې د عدم جواز دا حكم نه دې - (۴)

**قوله: فخذوا منهم حق الضيف الذي ينبغي لهم:** په زبردستئ د چا مال د ده د رضامندئ نه بغير اخستل په عام حالاتو كښې بالاتفاق ناجائز دې ، اګر چه د ضيافت دپاره ولې نه وی ، دې وجه نه ددې جملې مختلف مطلبونه بيان كړې شويدی-

① دا په حالت اضطرار باندې محمول دې ، يعنی چه كوم ميلمه حالت د اضطرار ته اورسی، او خلق د ده ضيافت نه كوی نو داسې صورت كښې دې دا په زبردستئ سره د خپل خان د بچ كولو دپاره اخستې شی (۵)

الضرورة تبيح المحظورة : ② دا د هغه مخصوص خلقو متعلق ويلې شويدې چه د هغوی سره معاهده شوې وه چه كه د مسلمانانو لښكر په دغه ځائې تيريږی نو دوی به ئې ميلمستيا كوی ، او په معاهده عمل كول واجب دی ، دې وجه نه دوی ته په زبردستئ حق د ضيافت وصولولو اجازت وركړې شو - (۶)

## ۸۶= بَاب صُنْعِ الطَّعَامِ وَالتَّكَلُّفِ لِلضَّيْفِ

[۵۷۸۸] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْعُمَيْسِ عَنْ عَوْنِ بْنِ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ آخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ فَزَارَ

---

۱) فتح الباری : ۱۰\۶۵۳ ، ارشاد الساری : ۱۳\۱۴۴)

۲) رواه مسلم فی كتاب للقطة ، باب الضيافة و نحوها : ۳\۱۳۵۳ ، ( رقم الحديث : ۱۷۲۶ ) .

۳) شرح مسلم للنووی ، كتاب اللقطة ، باب الضيافة و نحوها : ۲\۸۰)

۴) فتح الباری : ۱۰\۶۵۴)

۵) عمدة القاری : ۲۲\۱۷۶)

۶) ارشاد الساری : ۱۳\۱۴۶)

سَلْمَانُ أَبَا الدَّرْدَاءِ فَرَأَى أُمَّ الدَّرْدَاءِ مُتَبَذِّلَةً فَقَالَ لَهَا مَا شَأْنُكِ قَالَتْ أَخُوكَ أَبُو الدَّرْدَاءِ لَيْسَ لَهُ حَاجَةٌ فِي الدُّنْيَا فَجَاءَ أَبُو الدَّرْدَاءِ فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا فَقَالَ كُلْ فَإِنِّي صَائِمٌ قَالَ مَا أَنَا بِآكِلٍ حَتَّى تَأْكُلَ فَأَكَلَ فَلَمَّا كَانَ اللَّيْلُ ذَهَبَ أَبُو الدَّرْدَاءِ يَقُومُ فَقَالَ نَمْ فَنَامَ ثُمَّ ذَهَبَ يَقُومُ فَقَالَ نَمْ فَلَمَّا كَانَ آخِرُ اللَّيْلِ قَالَ سَلْمَانُ قُمِ الْآنَ قَالَ فَصَلَّيَا فَقَالَ لَهُ سَلْمَانُ إِنَّ لِرَبِّكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَلِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقًّا وَلِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا فَأَعْطِ كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ سَلْمَانُ أَبُو جُحَيْفَةَ وَهْبٌ السُّوَائِيُّ يُقَالُ وَهْبُ الْخَيْرِ [ر: ١٨٦٧]

**په میلمستیا کښې تکلف کول** : د میلمه دپاره په قدر د استطاعت دپاره د معمول نه لږ بدل خوراك تیارول پکار دی او په خوراك کښې ورته تکلف کول پکاری ، دا په اسراف یا په تبذیر کښې نه راځی دا د سلف صالحین معمول پاتې شویدې امام بخاری رحمه الله په دې باب کښې هم دا بیانول غواړی -

خو دیکښې د خپل استطاعت مطابق د تکلف اهتمام کول پکار دی ، د وس نه زیات تکلف کولو کښې نور ډیر زیات حقوق العباد متاثر کیږی ، .... بعض خلق مقروض وی خو د میلمنو دمیلمستیا کولو دپاره د نورو قرضونو اخستو اهتمام کوی ، نو دا صحیح نه ده ، ځکه چه قرض اداء کول واجب او میلمستیا کول مستحب دی ، د مستحب د اداء کولو خو دې اهتمام وی او فرض او واجب دې شا ته اوغورزولې شی ، دا شرعاً غلطه ده -

حدیث د باب کښې دی چه حضرت سلمان فارسی ﷺ د حضرت ابو الدرداء میلمه شو ، د شپې هلته پاتې شو ، حضرت ابوالدرداء دوی دپاره خوراك تیار کړو " فصنع له طعامًا ...." سره امام ترجمة الباب ثابت کړیدې -

**قوله: فرأى أم الدرداء متبذلة :** حضرت سلمان فارسی ﷺ حضرت ابو الدرداء ښځه ام الدرداء اولیدله چه دې بالکل ساده جامې اغوستې دی چه کومې عموماً د کار کولو په وخت په کور کښې استعمالیږی ، حضرت سلمان اوویل چه ته دې حالت کښې ولې ئې ؟ نو دې جواب ورکړو چه د ابوالدرداء مونږه ته څه رغبت نشته دې ، بیا د چا دپاره اهتمام اوکړې شی؟ د ام الدرداء نوم خَيْرَه بنت ابی حدرد دې - (١)

مُتَبَذِّلَةً دا د باب تفعل نه د اسم فاعل مونث صیغه ده أی لابسة ثیاب البِذلة -

**قوله: صدق سلمان :** حضرت سلمان فارسی ﷺ حضرت ابوالدرداء ﷺ ته چه کوم نصیحت کړې وو ، رسول الله ﷺ د دې توثیق او تصدیق اوکړو ، د طبرانی په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ دوی ته اوویل " عویمر! سلمان أفقه منك" (٢)

---

(١) ارشاد الساری : ١٣\١٤٧ ، عمدة القاری : ٢٢\١٧٦ ، و الإصابة فی تمییز الصحابة : ٤\٤٤٨ ( رقم الترجمة : ١٢٥٦ )

(٢) ارشاد الساری : ١٣\١٤٨ )

قوله: أبو جُحَيفَةَ وهْب السُّوائي، يقال له وهب الخير: يعنى جحيفه ته وهب الخيرهم وائى.

د ترجمة الباب سره مناسبت : د ترجمة الباب رومبي جزء " سنع طعام " ذكر خو په حديث كښي صراحتاً موجود خو د دويم جزء " التكلف للضيف " ذكر نشته ، مولانا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله په " لامع الدراری " كښي فرمائی :

ولعله قصد إثبات الجزء الثاني بقوله : كُلْ فإني صائم ، فإنهم لما كانت عادتهم الصوم و التبذل ، فالظاهر أنهم لم يكونوا يصنعون طعامًا بالنهار ، و كانوا يكتفون بطعام الليل ، فكان صنع الطعام الجديد له تكلفا و لا يبعد أين يستنبط التكلف من قوله : فأكل ، فمنه لما اعتاد الصوم و الترمه ، كان الإفطار لأجل اضيف احتمالا للكلفة من غير شك" (١)

د دي حاصل دا دي چه امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب د دويم جزء ثابتول په حديث كښي واقع په " كُلْ فإني صائم " سره غواړی ، حضرت ابوالدرداء ﷺ او د دوی د كور والا عادت چه د روژې ساتلو وو ، دې وجه نه ظاهر هم دا ده چه دې خلقو به د ورځې خوراك نه تيارولو صرف د شپې به ئې د خوراك انتظام كولو ، نو په دې موقع د دوی د ورځې د خوراك انتظام كول د ميلمه دپاره په طور د تكلف وو ، دارنگه د ترجمة الباب دويم جزء " التكلف للضيف " دې سره ثابتيږی ، او دا هم ممكن ده چه د ترجمة الباب دا دويم جزء د حديث په لفظ " فأكل " سره ثابت كړې شی ، د حضرت ابوالدرداء ﷺ عادت د روژې ساتلو وو خو دوی د ميلمه په خاطر افطار اوكړو ، دا افطار كول د ميلمه دپاره په طور د تكلف وه -

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله " التكلف للضيف " سره د حضرت سلمان فارسی ﷺ دې روايت ته اشاره كړيده ، چه هغه امام احمد په خپل مسند كښي نقل كړيدې ، چه ديكښي دی " نهانا رسول الله ﷺ أن نتكلف للضيف " (٢)

دواړو كښي تطبيق داسې كيدې شی چه د وس په صورت كښي خو اهتمام او تكلف كول پكار دی او د عدم استطاعت په صورت كښي تكلف صحيح نه دې ، د ممانعت والا روايت د عدم استطاعت په صورت محمول دې - (٣)

دا حديث د باب په كتاب الصوم كښي " باب من أقسم على أخيه ليفطر " كښي تير شويدې -

...

---

(١) لامع الدراری : ١٠ \ ٣١ ، و الأبواب و التراجم : ٢ \ ١١٧ )

(٢) و فى لفظ مسند الإمام أدحمد بن حنبل فى مسانيد سلمان : أن سلمان دخل عليه رجل ، فدعا له بما كان عنده فقال : لو لا أن رسول الله صلى الله عليه و سلم نهانا أو لولا أنا نهينا أن يتكلف أحدنا لصاحبه لتكلفنا لك: ٥ \ ٤٤١ ,وكذا ذكر الهيثمى فى مجمع الزوائد ، كتاب البر والصلة ، باب النهى عن التكلف : ٨ \ ١٧٩)

(٣) لامع الدراری : ١٠ \ ٣١ ، و الأبواب و التراجم : ٢ \ ١١٧ )

## ٨٧= بَاب مَا يُكْرَهُ مِنَ الْغَضَبِ وَالْجَزَعِ عِنْدَ الضَّيْفِ

[٥٧٨٩] حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ أَبَا بَكْرٍ تَضَيَّفَ رَهْطًا فَقَالَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ دُونَكَ أَضْيَافَكَ فَإِنِّي مُنْطَلِقٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَافْرُغْ مِنْ قِرَاهُمْ قَبْلَ أَنْ أَجِيءَ فَانْطَلَقَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ فَأَتَاهُمْ بِمَا عِنْدَهُ فَقَالَ اطْعَمُوا فَقَالُوا أَيْنَ رَبُّ مَنْزِلِنَا قَالَ اطْعَمُوا قَالُوا مَا نَحْنُ بِآكِلِينَ حَتَّى يَجِيءَ رَبُّ مَنْزِلِنَا قَالَ اقْبَلُوا عَنَّا قِرَاكُمْ فَإِنَّهُ إِنْ جَاءَ وَلَمْ تَطْعَمُوا لَنَلْقَيَنَّ مِنْهُ فَأَبَوْا فَعَرَفْتُ أَنَّهُ يَجِدُ عَلَيَّ فَلَمَّا جَاءَ تَنَحَّيْتُ عَنْهُ فَقَالَ مَا صَنَعْتُمْ فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَسَكَتُّ ثُمَّ قَالَ يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَسَكَتُّ فَقَالَ يَا غُنْثَرُ أَقْسَمْتُ عَلَيْكَ إِنْ كُنْتَ تَسْمَعُ صَوْتِي لَمَّا جِئْتَ فَخَرَجْتُ فَقُلْتُ سَلْ أَضْيَافَكَ فَقَالُوا صَدَقَ أَتَانَا بِهِ قَالَ فَإِنَّمَا انْتَظَرْتُمُونِي وَاللَّهِ لَا أَطْعَمُهُ اللَّيْلَةَ فَقَالَ الْآخَرُونَ وَاللَّهِ لَا نَطْعَمُهُ حَتَّى تَطْعَمَهُ قَالَ لَمْ أَرَ فِي الشَّرِّ كَاللَّيْلَةِ وَيْلَكُمْ مَا أَنْتُمْ لِمَ لَا تَقْبَلُونَ عَنَّا قِرَاكُمْ هَاتِ طَعَامَكَ فَجَاءَهُ فَوَضَعَ يَدَهُ فَقَالَ بِاسْمِ اللَّهِ الْأُولَى لِلشَّيْطَانِ فَأَكَلَ وَأَكَلُوا [ر: ٥٧٧]

د حضرت عبد الرحمن بن ابي بكر ﷺ نه روايت دي چه حضرت ابوبكر ﷺ د يوې ډلې ميلمستيا اوكړه ، او عبدالرحمن ته ئې اوويل چه څه رسول الله ﷺ خدمت ته ورځم ، ته دا ميلمانه بوځه او څما د واپس كيدو نه پرې وړاندې وړاندې په ذوى خوراك اوكړه او دينه ځان فارغ كړه ، عبد الرحمن د حكم مطابق لاړو او چه څه حاضر وو هغه ئې ميلمنو ته كيخودل او ورته ئې اويل چه خورئ ، دوى اوويل ، د كور مالك ( حضرت صديق اكبر ) كوم ځائې دې ، عبدالرحمن اوويل : تاسو خوراك اوكړئ ، دوى اوويل : چه تر څو د كور مالك نه وى راغلې مونږ به خوراك نه كوو ، عبدالرحمن اوويل : تاسو څمونږ د طرفه دا ضيافت قبول كړئ كه تاسو خوراك اونكړو او دوى واپس راغلل نومونږ ته به غصه وى ، خو ميلمنو د خوراك نه انكار اوكړو ، څه پوه شوم چه اوس به دوى په ما خامخا خفه كيږى ، چه كله دوى راغلل نو څه اړخ ته شوم ، دوى تپوس اوكړو چه تا څه اوكړل ؟ نو ميلمنو ورته ټول حال بيان كړو ، دوى ما ته اواز راكړو ، اے عبدالرحمن ! څه چپ پاتې شوم ، دوى بيا اواز راكړو ، اے عبدالرحمن ! په دې هم څه خاموش پاتې شوم ، بيا ئې اوويل : اے جاهله ، څه تا ته قسم دركوم چه كه ته څما اواز اورې نو ته ما ته ولې نه رابهر كيږې ؟ نو څه راووتلم او ما اوويل : چه ته دې د خپلو ميلمنو نه تپوس اوكړه ، نو دوى اوويل : دې صحيح وائى ، ده مونږه ته خوراك راوړې وو ، حضرت ابوبكر ﷺ اوويل : تاسو څما انتظار اوكړو په خدائې مې دې قسم وى څه به نن خوراك نه كوم ، دې ميلمنو اوويل : په خدائې مو دې قسم وى چه مونږ به هم خوراك نه كوو ، چه تر څو تا نه وى خوړلې ، حضرت ابوبكر ﷺ اوويل ما د ننۍ شپې په شان خرابه شپه نه ده ليدلې ، افسوس دې په تاسو ، تاسو څمونږ ميلمستيا ولې نه قبلوئ ، بيا ئې اوويل : خوراك راوړئ ، عبدالرحمن خوراك راوړو ، نو ده بسم الله اوويلې

او خوراك کښېږدي نو لاس واچولو ، او وې ویل : ړومبې حالت د شیطان د وجه وو ، نو دوی خوراك اوکړو ، او خلقو هم خوراك اوکړو-

**د حدیث د باب سره مناسبت** :حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه باب کښې دننه امام بخاری رحمه الله حضرت ابوبکر صدیق ته د میلمنو راتلو قصه ذکر کړه ، دیکښې د حضرت عبد الرحمن بن ابی بکر دا قول هم دې " فعرفت أنه يجد علي " دیجد معنی دلته د غصه کولو ده ، امام بخاری رحمه الله په راروان باب کښې دا په بل طریق سره نقل کړیدې ، دیکښې د " فغضب ابوبکر " تصریح هم ده -

شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله په دې تنقید کړیدې او فرمائی چه د غضب اثبات مقصود نه دې بلکه د دې نفی او کراهت بیانول مقصود دی - (۱) ځکه چه امام په ترجمة الباب کښې " مایکره من الغضب" ویلې دې -

قطب عالم حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت بیانولو کښې په " لامع الدراری " کښې لیکی :

" دل علیه قوله : لم أر فی الشر کالليلة ، وقوله : " الأولى من الشيطان " ، فإن مقالته هذه دلت على أنه عد غضبه و حلفه وجميع ما جرى شرا ، ومن أمر الشيطان " (۲)

یعنی حضرت صدیق اکبر ﷺ اوفرمائل " لم أر فی الشر کالليلة " او خپله غصه وغیره ئې د شیطان امر اوګرځولو ، نو ددې کلام نه معلومه شوه چه د دوی غصه کیدل ، حلف اوچتول او د میلمنو قسم کول دا ټول شر او د شیطان د طرفه وو ، دینه " ما یکره من الغضب " یعنی د غصه کراهت ثابتیږی -

مولانا محمد زکریا رحمه الله د لامع الدراری په حاشیه او په الابواب والتراجم کښې دا توجیه وجیه ګرځولې ده - (۳)

## ۸۸=بَاب قَوْلِ الضَّيْفِ لِصَاحِبِهِ لَا آكُلُ حَتَّى تَأْكُلَ

فِيهِ حَدِيثُ أَبِي جُحَيْفَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:۵۷۸۸]

[۵۷۸۰] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا جَاءَ أَبُو بَكْرٍ بِضَيْفٍ لَهُ أَوْ بِأَضْيَافٍ لَهُ فَأَمْسَى عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا جَاءَ قَالَتْ لَهُ أُمِّي احْتَبَسْتَ عَنْ ضَيْفِكَ أَوْ عَنْ أَضْيَافِكَ اللَّيْلَةَ قَالَ مَا عَشَّيْتِهِمْ فَقَالَتْ عَرَضْنَا عَلَيْهِ أَوْ عَلَيْهِمْ فَأَبَوْا أَوْ فَأَبَى فَغَضِبَ أَبُو بَكْرٍ فَسَبَّ وَجَدَّعَ وَحَلَفَ لَا يَطْعَمُهُ فَاخْتَبَأْتُ أَنَا فَقَالَ يَا غُنْثَرُ فَحَلَفَتْ الْمَرْأَةُ لَا تَطْعَمُهُ حَتَّى يَطْعَمَهُ فَحَلَفَ الضَّيْفُ أَوْ الْأَضْيَافُ

---

۱) الابواب و التراجم : ۲\۱۱۷ )

۲) لامع الدراری : ۱۰\۳۲ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱۷ )

۳) ۸) تعلیقات لامع الدراری : ۱۰\۳۲ ، الابواب و التراجم : ۲\۱۱۷ )

أَنْ لَا يَطْعَمَهُ أَوْ يَطْعَمُوهُ حَتَّى يَطْعَمَهُ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ كَأَنَّ هَذِهِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَدَعَا بِالطَّعَامِ فَأَكَلَ وَأَكَلُوا فَجَعَلُوا لَا يَرْفَعُونَ لُقْمَةً إِلَّا رَبَا مِنْ أَسْفَلِهَا أَكْثَرُ مِنْهَا فَقَالَ يَا أُخْتَ بَنِي فِرَاسٍ مَا هَذَا فَقَالَتْ وَقُرَّةِ عَيْنِي إِنَّهَا الْآنَ لَأَكْثَرُ قَبْلَ أَنْ نَأْكُلَ فَأَكَلُوا وَبَعَثَ بِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ أَنَّهُ أَكَلَ مِنْهَا [ر: ۵۷۷]

د ابوذر په نسخه كښې دا ترجمة الباب نشته دې ، بلكه دا حديث ئې د رومبى حديث سره بغير د ترجمة الباب نه رانقل كړيدې - (١)

عبد الرحمن بن ابى بكر په روايت كښې وائي چه حضرت ابوبكر يو يا يو څو ميلمانه كورته راوستل او په خپله د ماښام په وخت رسول الله ﷺ ته ورغلو ، چه كله واپس شو نو څما مور د ده نه تپوس اوكړو او ورته ئې اوويل چه تا ميلمانه پريخودل په خپله چرته ايسار شوې وې ، دوى تپوس اوكړو ، تا په دې خلقو خوراك اونكړو ؟ نو څما مور ورته اوويل : موږ خو خوراك د دوى وړاندې پيش كړو خو دوى انكار اوكړو ، حضرت صديق اكبر سخت خفه شو ، بد رد ئې اوويلې او قسم ئې اوكړو چه خوراك به نه كوم ، د عبد الرحمن بيان دې چه څه پټ ولاړ ووم ، دوى اواز راكړو : " اے جاهله " ښځې يعنى څما مور هم قسم اوكړو چه څه به هم خوراك نه كوم چه ترڅو دې خوراك اونكړى ، ميلمنو هم قسم اوكړو چه دوى به هم خوراك نه كوى ..... حضرت ابوبكر ﷺ اوويل ، دا د شيطان د طرفه وو ، بيا ئې خوراك رااوغوښتو ، او په خپله ئې هم اوخوړلو او په دې خلقو ئې هم اوخوړلو ، خلقو به چه كومه نمړئ هم اوچتوله د دې لاندې به نوره هم زياتيدله ، چه حضرت ابوبكر دا اوليدل نو ( خپلې بى بى حضرت ام رومان ته ئې ) وې ويل : اے د بنى فراس خور ! دا څه چل دې ؟ نودې اوويل : څما دې قسم وى د خپلو سترګو په يخوالى ، اوس خو د هغې نه هم زيات شو چه كوم څمونږ د خوراك نه وړاندې وو ، نو چه ټولو خلقو اوخوړله بيا ئې دا د رسول الله ﷺ خدمت ته هم اوليږله ، د عبدالرحمن بيان دې چه رسول الله ﷺ هم دينه خوراك اوكړو -

**د ترجمة الباب مقصد :** شارحينو د دې ترجمة الباب په مقصد هيڅ كلام نه دې كړې ، امام بخارى رحمه الله كيدې شى دې خبرې ته اشاره كول غواړى چه كُه كوربه څه سخته خبره اوكړى او ميلمه ته دا ښه نه ښكارى نو ميلمه هم داسې خبره په جواب كښې ويلې شى او شرعاً د دې جواز شته دې -

**قوله: فغضب أبوبكر، فسبّ وجدّع:** جدّع يعنى دوى هم "يامجدوع الأذنين" اوويلې او په طور د خيرو ئې ورته اواز اوكړو (٢)

**ياغنثر:** د غنثر معنى د جاهل ، كمينه او د ثقيل ( ناپوهه ) راځى ، د غين په ضمه ، د نون په سكون او د ثاء په فتحه سره دې (٣) ربامن أسفلها: د ربا معنى د زياتيدو ده -

(١) عمدة القارى : ٢٢\١٧٨ ، فتح البارى : ١٠\٦٥٦ )
(٢) عمدة القارى : ٢٢\١٧٨ )
(٣) (١١) ارشاد السارى : ١٣\١٥٠ ، قال ابن الأثير : قيل : هو الثقيل الوخم ....[بقيه برصفحه آئنده....

**قوله: يا أخت بني فراس**: فراس ( د فاء د كسرې سره ) نه د غنم بن مالك خوې مراد دې ، د ده د رور نوم حارث بن غنم دې ، حضرت ام رومان د حارث په اولاد کښې وه ، يعنې دغنم دوه ځامن دی ، يو فراس او دويم حارث ، حضرت ام رومان د حارث په اولاد کښې ده خو چه د بنو حارث په مقابله کښې چه بنو فراس زيات مشهور دی ، دې وجه نه حضرت صديق اکبر د دوی نسبت بنوفراس ته اوکړو او وې ويل "يا أخت بني فراس" فالمعنى: يا أخت القوم المنتسبين إلى بني فراس

**قوله: وقرة عيني**: ديکښې واو قسميه دې يعنې خما د خپلو سترګو په يخ والی قسم ، دينه رسول الله ﷺ مراد دې ، په غيرالله قسم کول ناجائز دی ، غالبًا دا د نهی نه مخکښې واقعه ده -

## ٨٩=بَاب إِكْرَامِ الْكَبِيرِ وَيَبْدَأُ الْأَكْبَرُ بِالْكَلَامِ وَالسُّؤَالِ

**د خبرو کولو حق مشر ته دې**: د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د مشرانو اکرام او احترام کول پکار دی ، دارنګه خبرو کښې ، تپوس کښې او په مجلس کښې د خبرو کولو ابتداء د مشره کول پکار دی چه دا د ده حق دی ، خو دا په هغه صورت کښې چه کله عمر کښې مشر او علم او فضل کښې برابر وی ، او که يو کس په عمر کښې کم او علم او فضل کښې زيات وی نو بيا دده حق وړاندې دې - (١)

[٥٧٩١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ مَوْلَى الْأَنْصَارِ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَسَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ أَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُودٍ أَتَيَا خَيْبَرَ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ فَقُتِلَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَهْلٍ فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ وَحُوَيِّصَةُ وَمُحَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُودٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَكَلَّمُوا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَبَدَأَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ وَكَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَبِّرْ الْكُبْرَ قَالَ يَحْيَى يَعْنِي لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ فَتَكَلَّمُوا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَسْتَحِقُّونَ قَتِيلَكُمْ أَوْ قَالَ صَاحِبَكُمْ بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمْرٌ لَمْ نَرَهُ قَالَ فَتُبْرِئُكُمْ يَهُودُ فِي أَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَوْمٌ كُفَّارٌ فَوَدَاهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قِبَلِهِ قَالَ سَهْلٌ فَأَدْرَكْتُ نَاقَةً مِنْ تِلْكَ الْإِبِلِ فَدَخَلَتْ مِرْبَدًا لَهُمْ فَرَكَضَتْنِي بِرِجْلِهَا قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي يَحْيَى عَنْ بُشَيْرٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ يَحْيَى حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ مَعَ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَقَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ بُشَيْرٍ عَنْ

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته] و قيل : الجاهل ، من الغثارة : الجهل ، و النون زائدة ، النهاية : ٣ \ ٣٨٩ )

(١) شرح صحيح البخاری لابن بطال : ٩ \ ٣١٧ ، فتح الباری : ١٠ \ ٦٥٧ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ١٥١ ، عمدة القاری : ٢٢ \ ١٧٩)

سَهْلٍ وَحْدَهُ[ر:٢٥٥٥]
بشير بن يسار ( د انصارو ازاد كړې غلام ) د رافع بن خديج او د سهل بن ابى حصمه دواړو نه روايت كوى ، دې دواړو بيان كړيدې چه عبد الله بن سهل او محيصه بن مسعود د خيبره راغلل او د كهجورو په باغ كښې د يو بل نه جدا شو ، عبد الله بن سهل لره چا قتل كړو نو عبد الرحمن بن سهل او حويصه بن مسعود او محيصه بن مسعود د رسول الله ﷺ خدمت ته حاضر شو او د خپل ملګرى ( د قتل ) په معامله كښې ئې خبرې شروع كړې عبدالرحمن خبره شروع كړه چه كوم په دې كسانو كښې د ټولو نه كشر وو ، ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائل لوى سړې دې خبره اوكړى ،نو دې خلقو د خپل ملګرى د قتل په معامله كښې خبرې اترې اوكړې ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائل : آيا تاسو د خپل ملګرى د ديت حقدار ئې ، يا ئې اوفرمائل يا تاسو پنځوست قسمونه به خورئ ( نو دديت به مستحق شئ ) نو خلقو عرض اوكړو : اے د الله رسوله دا خو داسې څيز دې چه مونږ خلقو په خپلو سترګو نه دې ليدلې ، نو دوى ﷺ اوفرمائل : بيا به يهود پنځوست قسمونه اوخورى او برى به شى ، نو دې خلقو عرض اوكړو : اے د الله رسوله دا خلق خو كافران دى ( يعنى د دروغو قسمونه به اوخورى ) نو بيا رسول الله ﷺ دې خلقو ته د خپل ځان نه ديت وركړو -

دباب په دې رومبې روايت به تفصيلى كلام روستو په قسامه كښې راشى ، دلته امام بخارى رحمه الله دا روايت ځكه ذكر كړيدې چه ديكښې حضور اكرم ﷺ اوفرمائل "كبر الكبر" يحيي بن سعيد راوى د حديث د دې تشريح كړيده " ليلى الكلام الأكبر " يعنى چه كوم لوى دې هغه دې د كلام او د خبرو ذمه دارى واخلى ، علامه قسطلانى رحمه الله د كبر الكبر ترجمه كړيده أى قدم الأكبر سنا للتكلم([1])

د روايت په آخر كښې حضرت سهل فرمائى چه د ديت په اوښانو كښې ما ته يو اوښ ملاو شو ، دې چه كله ما باړې ( د څاروو غوجل ) ته داخل كړو نو ده څه په لته اووهلم ، مِرْبَد ( د ميم په كسره او د راء په سكون سره او د باء په فتحه سره ) باړې ته وائى سهل دا جمله د اهتمام سره چه ذكر كړيده نو د حديث د پوره ياد ساتلو دپاره ئې ذكر كړيده ، علامه عينى رحمه الله ليكى : وأراد بهذا الكلام ضبط الحديث وحفظه حفظا بليغا"([2])

**قوله: قال الليث: حدثني يحي عن بشير عن سهل، قال يحي: حسبت أنه قال مع رافع بن خديج:** د ليث دا تعليق امام مسلم او ترمذى موصولا نقل كړيدې([3]) ديكښې يحي وايى چه خما خيال دې چه بشير د سهل نه چه كوم روايت نقل كړيدې نو

---

[1]) ارشاد السارى : ۱۳\۱۵۲ )
[2]) عمدة القارى : ۲۲\۱۸۰ )
[3]) صحيح مسلم ، كتاب القسامة ، باب القسامة : ۳\۱۲۹۱ ( رقم الحديث : ۱۶۶۹ ) ، سنن الترمذى ، كتاب الديات ، باب ما جاء فى القسامة : ۴\۰۳ ( رقم الحديث : ۱۴۲۲ )

دوی د رافع بن خدیج معیت ذکر کړی وو ، یعنی بره چه کوم موصول روایت دې دا " رافع بن خدیج او سهل " دې ، د لیث په طریق کښې " عن سهل " دې او د " رافع بن خدیج " په باره کښې دوی " حسبت " اوویل چه دې هم وو -

**قوله: وقال ابن عيينة: حدثنا يحي عن بشير عن سهل وحده:** سفیان بن عیینه دا تعلیق امام مسلم او نسائی موصولا نقل کړیدې [1] دا روایت صرف د سهل نه دې -
حاصل دا چه حماد بن زید روایت چه کوم دلته امام بخاری موصولا نقل کړیدې ، دا د رافع بن خدیج او د سهل د دواړو نه دې ، د لیث روایت کښې د " رافع " په باره کښې یو قسم شك دې او د سفیان بن عیینه روایت صرف د سهل نه دې -

[٥٧٩٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبِرُونِي بِشَجَرَةٍ مَثَلُهَا مَثَلُ الْمُسْلِمِ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا وَلَا تَحُتُّ وَرَقَهَا فَوَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَكَلَّمَ وَثَمَّ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَلَمَّا لَمْ يَتَكَلَّمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هِيَ النَّخْلَةُ فَلَمَّا خَرَجْتُ مَعَ أَبِي قُلْتُ يَا أَبَتَاهُ وَقَعَ فِي نَفْسِي أَنَّهَا النَّخْلَةُ قَالَ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَقُولَهَا لَوْ كُنْتَ قُلْتَهَا كَانَ أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ كَذَا وَكَذَا قَالَ مَا مَنَعَنِي إِلَّا أَنِّي لَمْ أَرَكَ وَلَا أَبَا بَكْرٍ تَكَلَّمْتُمَا فَكَرِهْتُ [ر: ٦١]

**د حدیث د باب ذکر کولو وجه** : د باب دا دویم حدیث ړومبې په کتاب العلم ، باب قول المحدث : حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا تر لاندې تیر شویدې ، دلته ددې د ذکر کولو حافظ بن حجر وجه لیکی او دده اتباع کښې علامه قسطلانی لیکی

" وكأن البخارى أشار بإيراد هذا الحديث هنا إلى تقديم ما لكبير حيث يقع التساوى ، أما لو كان عند الصغير ماليس عند الكبير ، فلا يمنع من الكلام بحضرة الكبير ، لأن عمر تأسف حيث لم يتكلم ولده مع أنه اعتذر له ، بكونه بحضوره وحضور أبي بكر ، ومع ذلك تأسف على كونه لم يتكلم " [2]

یعنی د دې باب لاندې دا حدیث ئې راوړو په دې سره امام بخاری رحمه الله دې خبرې ته شاره کول غواړی چه مشر به هغه وخت مقدم کول پکار وی چه کله دې په علم او فضل کښې هم مشر وی یا د کشرانو سره برابر وی ، خو کّه یو کس چه په عمر کښې کشر وی خو په علم او فضل کښې زیات وی نو داسې صورت کښې د لویو په وجود کښې ده لره د خبرو کولو نه بندولې نه شې ، حضرت ابن عمر ته جواب معلوم وو خو دوی د خپل پلار فاروق اعظم او د حضرت صدیق اکبر په وجود کښې کلام کول مناسب او نه ګنړل نو حضرت فاروق اعظم د ده په چپ پاتې کیدو د افسوس اظهار اوکړو-

[1] صحیح مسلم ، کتاب القسامة ، باب القسامة : ٣ \ ١٢٩١ ( رقم الحديث : ١٦٦٩ ) ، سنن النسائی ، كتاب القسامة ، باب القسامة : ٤ \ ٢١١ ( رقم الحديث : ٢٩١٩ )
[2] فتح الباری : ١٠ \ ٦٥٧ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ١٥٣ )

## ٩٠=بَاب مَا يَجُوزُ مِنْ الشِّعْرِ وَالرَّجَزِ وَالْحُدَاءِ وَمَا يُكْرَهُ مِنْهُ

وَقَوْلِهِ وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانْتَصَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ. [الشعراء: ۲۲۴-۲۲۷]

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي كُلِّ لَغْوٍ يَخُوضُونَ

[۵۷۹۳] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ أَخْبَرَهُ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْأَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوثَ أَخْبَرَهُ أَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنْ الشِّعْرِ حِكْمَةً

**د شعر تعریف دي:** " الكلام المقفى الموزون قصدا " (۲) یعنې شعر هغه کلام ته وائی چه کوم په قصد سره په قافیه او په وزن جوړ شوې وی ، د قصداً په قید لګولو سره هغه کلام اووتلو چه کوم په اتفاق سره په وزن برابر شوې وی -

**رَجَز** ( د راء او د جیم په فتحه سره ) د اکثرو په نزد داد شعر یو خاص قسم دې - (۳) دې صورت کښې به په " الشعر " ددې عطف د " عطف الخاص على العام " د قبیله وی ، او بعض وائی چه دا شعر نه دې بلکه د کلام یو مستقل نوع ده ، د دوی دلیل دا دې چه ددې ویونکی ته راجز وائی شاعر نه وائی - (۴)

د رجز معنی د حرکت کولو او د نزدې نزدې قدم ایخودو راځی ، رجز البعیر هغه وخت ویلې کیږی چه کله اوښ نزدې نزدې قدم اږدی او روان وی نو چه د رجز اجزاء د یوبل سره نزدې وی دې وجه نه رجزد ویلوپه وخت ژبه متحرك اومضطرب وی،دې وجه نه دیته رجز وائی(۵)

**حُداء** ( د حاء په ضمه سره ) حدی ته وائی ، د اوښانو د رفتار تیزولو دپاره چه کوم رجز یا شعر په مخصوص سُر کښې ویلې کیږی ، دیته حدی وائی - (۶)

علامه ابن عبدالبر د حدی په جواز باندې اجماع رانقل کړیده - (۷)

**د اشعارو جووُولو او د ویلو حکم:** د شعر په باره کښې بعض عالمانو د مطلق کراهت قول

---

۱) ۵۷۹۳) الحديث أخرجه الترمذي في كتاب الأدب ، باب ما جاء إن من الشعر حكمة : ۱۳۷/۵ ( رقم الحديث : ۲۸۴۴ ) و أخرجه أبوداود في كتاب الأدب ، باب ما جاء في الشعر : ۳۰۳/۴ ( رقم الحديث : ۵۰۱۰ ) و أخرجه ابن ماجه في كتاب الأدب ، باب الشعر : ۱۲۳۵/۲ ( رقم الحديث : ۷۵۵ )

۲) فتح الباري: ۶۵۹/۱۰ ،ارشادالساري : ۱۵۳/۱۳ ، عمدة القاري : ۱۸۰/۲۲، شرح الكرماني : ۱۸/۲۱)

۳) فتح الباري : ۶۵۹/۱۰ ، ارشاد الساري : ۱۵۳/۱۳ ، عمدة القاري : ۱۸۰/۲۲ )

۴) فتح الباري : ۶۵۹/۱۰ ، ارشاد الساري : ۱۵۴/۱۳ ، عمدة القاري : ۱۸۰/۲۲ )

۵) فتح الباري : ۶۵۹/۱۰ ، ارشاد الساري : ۱۵۴/۱۳ )

۶) فتح الباري : ۶۵۹/۱۰ ، ارشاد الساري : ۱۵۴/۱۳ )

۷) فتح الباري : ۶۶۰/۱۰ )

اختيار كړيدى ، دوى خو يو د حضرت ابن مسعود د قول نه استدلال كوى ، چه " الشعر مزامير الشيطان " ([1]) ( شعر د شيطان د موسيقئ يو آله ده - )
دارنګه د مسروق نه روايت دې چه دوى يو مصرعه اوويله او بيا خاموش شو ، د دوى نه د خاموشئ په باره كښې تپوس اوشو نو دوى اوويل " أخاف أن أجد فى صحيفتى شعرا " ([2]) ( څه په دې خبره يريږم چه هسې نه څه په خپله عملنامه كښې يو شعر بيا مومم - )
دارنګه د ابوامامه نه يو مرفوع حديث منقول دې ، چه ابليس چه كله په زمكه راكوز كړې شو نو ده اوويل ، اجعل لى قرآنا ...... ( خما د لوستلو دپاره څه څيز مقرر كړه ) نو الله تعالى اوفرمائل الشعر ([3]) خو دا ټول روايتونه خلاف اصل او ضعيف دى ([4]) هو راتلونكې باب كښې باب ما يكره أن يكون الغالب على الإنسان الشعر.... امام بخارى رحمه الله يو صحيح روايت رانقل كړيدې ديكښې دى " لأن يمتلئ جوف رجل قيحا حتى يريه خير من أن يمتلئ شعرا " ( تاسو كښې چه د چا خيټه د پيپه ډكه شى تر دې چه ده لره خراب كړى نو دا ده لره بهتر دې د دينه چه د ده خيټه د شعر نه ډكه شى )
دا روايت اګر چه صحيح دې خو دينه هغه اشعار مراد دى چه هغې كښې دروغ او فحاشى وى ، يا دا د هغه سړې په باره كښې دى ، چه دې شعر د خپل ژوند داسې مقصد او مشغله اوګرځى چه نور واجبات او د فرائضو په اداء كولو كښې دا مخل وى -
تر كومې چه د عامو اشعارو تعلق دې نو ددې په اباحت كښې كلام نشته دې ، امام بخارى رحمه الله په " الادب المفرد " كښې د حضرت عائشه ﷺ روايت رانقل كړيدې چه دوى فرمائى " الشعر منه حسن ، و منه قبيح ، خذ الحسن ، و دع القبيح ، ولقد رويت من شعر كعب بن مالك أشعارا منها القصيدة فيها أربعون بيتا " ([5]) يعنى په اشعارو كښې ښه او بد دواړه قسمونه شته دې ، ما د كعب بن مالك څه اشعار رانقل كړيدى چه ديكښې يو قصيده په څلويښتو اشعارو مشتمل وه -
حافظ ابن حجر فرمائى چه ددې روايت سند حسن دې - ([6])
امام بخارى رحمه الله چه دلته په باب كښې كوم روايتونه ذكر كړيدى نو هغه د اشعارو د ويلو په جواز دلالت كوى -

---

[1]) فتح البارى : ۱۰\۶۶۲)
[2]) فتح البارى : ۱۰\۶۶۲)
[3]) فتح البارى:۱۰\۶۶۲ ،و مجمع الزوائد للهيثمى، كتاب الأدب،باب ما جاء فى الشعر والشعراء : ۸\۱۱۹)
[4]) ۲۷ فتح البارى : ۱۰\۶۶۲)
[5]) فضل الله الصمد ، باب الشعر حسن كحسن الكلام و منه قبيح : ۲\۳۱۵ (رقم الحديث : ۸۶۶) و فى مجمع الزوائد للهيثمى ، " سئل رسول الله صلى الله عليه و سلم عن الشعر ، فقال : هو كلام ، فحسنه حسن و قبيح قبيح ، كتاب الأدب ، باب الشعر فى الكلام : ۸\۱۲۲)
[6]) فتح البارى : ۱۰\۶۶۰)

امام مسلم رحمه الله د شريد بن سويد ثقفی ﷺ روايت نقل کړيدې هغه فرمائی :

" ردفت رسول الله صلى الله عليه و سلم يوما ، فقال : هل معك من شعر أمية بن أبي الصلت شيئا ، قلت : نعم، قال : هيه ، فأنشدته بيتا ، فقال : هيه ، ثم أنشدته بيتا ، فقال : هيه حتى أنشدته مائة بيت " (١)

حضرت شريد بن سويد ثقفی ﷺ فرمائی چه خه رسول الله ﷺ پسې يو ورخ سور ووم ، دوی ﷺ اوفرمائل :" تا ته د اميه بن ابی الصلت څه اشعار ياد دی ؟ ما اوويل " هو " دوی ﷺ اوفرمائل : ته واوروه ، ما يو شعر واورولو ، دوی اوفرمائل : " نور هم واوروه " ما بل شعر هم واورولو ، داسې ما سل شعرونه دوی ﷺ ته واورول -

امام ترمذی او امام احمد د حضرت جابر بن سمره ﷺ نه روايت نقل کړيدې ، هغه فرمائی

"كان أصحاب رسول الله صلى الله عليه و سلم يتذاكرون الشعر وحديث الجاهلية عند رسول الله صلى الله عليه و سلم فلا ينهاهم ، و ربما يتبسم " (٢) ( اصحابو به د رسول الله ﷺ وړاندې اشعار او د جاهليت خبرې کولې ، حضور ﷺ به دوی نه منع کول بلکه کله کله به مسکې هم شو )

دې وجه نه ددې احاديثو په وجود کښې اشعارو ته مطلقًا مکروه ويل صحيح نه دې ، خو ديکښې د شرعی حدونو رعايت کول ضروری دی ، ډير زيات ددې شغل نه دی ساتل پکار ، او چه ديکښې د چا هجو نه وی ، د چا په تعريف کښې مبالغې نه کار نه وی اخستې شوې ، ديو خاص متعين ښځې ذکر نه وی ، شعر کښې د دې امورو که رعايت اوشی نو دا بلا کراهت جائز دې ، بلکه ابن عبد البر د دې په جواز اجماع نقل کړيده ، لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی : " و الذی يتحصل من كلام العلماء فی حد الشعر الجائز أنه إذا لم يكثر منه فی المسجد ، وخلا عن هجو ، وعن الإغراق فی المدح و الكذب المحض ، و التغزل بمعين لا يحل ، وقد نقل ابن عبد البر الإجماع على جوازه ، إذا كان كذلك " (٣)

امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د سورة شعراء آيت کريمه ( و الشعراء يتبعهم الغاوون ... ) ذکر کړيدې يعنی د شاعرانو اتباع خو ګمراه خلق کوی ، آيا تا نه دی ليدلې دوی لره چه دوی په هر ميدان کښې سرګردانه ګرځی او دوی چه څه وائی هغه نه ګوی ، خو ( د دې حکم نه هغه شاعران مستثنی دی ) چه کومو ايمان راوړيدې او صالح عمل ئې اختيار

---

(١) رواه مسلم ، كتاب الشعر : ٤ \ ١٧٦٧ ( رقم الحديث : ٢٢٥٥ ) .

(٢) و فی لفظ مسند الإمام أحمد بن حنبل فی مسانيد جابر بن سمرى : أكنت تجالس رسول الله صلى الله عليه و سلم : قال : نعم فكان طويل الصمت ، قليل الضحک ، و كان أصحابه يذكرون عنده الشعر و أشياء من أمورهم ، فيضحكون و ربما تبسم ( ٥ \ ٨٦ ) و فی الجامع الصحيح للإمام الترمذی عن جابر بن سمرة قال : جالست النبی صلى الله عليه و سلم أكثر من مائة مرة ، فكان أصحابه يتناشدون الشعر ، و يتذاكرون أشياء من أمر الجاهلية ، وهو ساكت ، فربما تبسم معهم ، كتاب الأدب ، باب ما جاء فی إنشاد الشعر : ٥ \ ١٤٠ (رقم الحديث : ٢٨٥٠ ) ......

(٣) فتح البارى : ١٠ \ ٦٦٠ )

کړيدې او د الله تعالى په کثرت سره ذکر ئې اوکړو او د ظلم نه پس ئې بدله واخستله (يعنى د چا هجو ئې هله اوکړه چه کله ړومبى والې بل چا اوکړو ، داسې صورت کښې د دوى جوابى هجو مورد د عتاب نه ده ) او ظالمانو ته به زر معلومه شى چه د دوى واپسى کوم خائې ته ده -

مفسرينو او شارحينو د بخارى ليکلې دى ، چه دا آيت کريمه چه کله نازل شو نو په اصحابو کښې درې مشهور شاعران حضرت عبدالله بن رواحه ، حضرت حسان بن ثابت او حضرت کعب بن مالک ﷺ د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو او وې ويل : مونږ خو شعر وايو ؟ نو دوى ﷺ اوفرمائل : چه روستو ورپسې (إلا الذين آمنوا....) خو هم اولولئ چه دينه ئې هغه شاعران مستثنى کړيدى چه کوم مؤمنان او نيک عمله دى ، نو بيا دوى مطمئن شو ([1])

د دريو د نومونو سره د حضرت کعب بن زهير ﷺ نوم هم قرطبى وغيره ذکر کړيدې - ([2])

آيت کريمه کښې دى چه د اکثروشاعرانواتباع کوونکى ګمراه وى ، دينه په خپله د شاعرانو ګمراهي هم ثابتيږى ځکه چه د چا متبعين ګمراه وى نو هغه په خپله هم ګمراه وى - ([3])

حضرت تهانوى رحمه الله فرمائى چه دا خبره مطلق نه ده ، بلکه دا هله ده چه کله د متبعينو په ګمراه کيدو کښې د متبوع د قول او د عمل دخل وى ، خو که د دوى په ګمراه کيدو کښې د متبوع څه دخل نه وى نو بيا د متبعينو ګمراه کيدل د متبوع ګمراه کيدل نه شى ګرځولې کيدې - ([4])

**قوله: في كل واد يهيمون ......:** يعنى چه څنګه په هره وادئ کښې سرګردانه ګرځيدل ډير کرتې د حسى هلاکت ذريعه ګرځى ، دارنګه هر قسم اشعار ويل او فاسد اقوال ويل هم ډير کرته د معنوى هلاکت سبب ګرځى ، " فى كل واد " کښې " كل د اکثر په معنى کښې دې او دا په " كل " استغراقى باندې محمول کيدې شى مفسرين ليکي :

" و المراد فى كل واد من أودية القول الفاسد ، وجه الستعارة مظان الهلاك ، فكما أن الوادى مظنة الهلاك الحسى ، كذلك الأقوال الفاسدة مظنة الهلاك المعنوى ، و الجامع مطلق مظنة الهلاك ، و الكل فى مثل هذا بمعنى الأكثر، ولك أن تقول : إن الإستغراق عرفى " ([5])

**قوله: قال ابن عباس : في كل لغو يخوضون :** حضرت ابن عباس (فى كل واد) ترجمه فى كل لغو او د (يهيمون) ترجمه په يخوضون سره کړيده - دا تعليق ابن ابى حاتم او طبرى

---

[1]) فتح البارى:١٠ ٦٦٠ ،عمدة القارى: ٢٢\١٨١ ، ارشاد السارى : ١٣\١٥٤ ، شرح الكرمانى : ٢١\١٨)

[2]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى : ١٣\١٥١ )

[3]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى : ١٣\١٤٥)

[4]) معارف القرآن : ٦\٥٥٥ )

[5]) فضل الله الصمد على الأدب المفرد : ٢\٣٢٠ )

موصولاً نقل كړيدي -[1]

**قوله: إن من الشعر حكمة :** بعض اشعار د حكمت او دهوښيارتيا نه ډك وى ، امام ابوداود رحمه الله دا روايت نقل كړيدې - ديكښې دى " إن من البيان سحرا ، وإن من العلم جهلا ، وإن من الشعر حكما ، وإن من القول عيا " [2] ( بې شك بعض بيان جادو دې ، او بعض علم جهل او بعض شعر حكمت ، او بعض كلام د مراد بيانولو نه عاجز وى ) ډيرې د حكمت او د نصيحت خبرې دنثر په مقابله كښې په شعر كښې زياتې موثرې وى ، شارح بخارى ابن بطال رحمه الله فرمائى :

" ما كان فى الشعر و الرجز ذكر الله تعالى ، و تعظيم له و وحدانيته و قدرته و إيثار طاعته و تصغير الدنيا و الإستسلام له ، فهو حسن مرغب فيه ، وهو المراد فى الحديث بأنه حكمة ، وما كان كذبا و فحشا ، فهو مذموم " [3]

يعنى شعر او رجز كښې كه د الله تعالى ذكر ، او دده تعظيم او د ده د وحدانيت او د قدرت او د ده اطاعت او د دنيا تحقير بيان كړې شى نو داسې شعر خو قابل د رغبت او د مينې دې او صحيح دې ، خو كه په كښې دروغ او فحاشى ذكر وى نو بيا مذموم دې -

[۵۷۴۳] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ سَمِعْتُ جُنْدَبًا يَقُولُ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي إِذْ أَصَابَهُ حَجَرٌ فَعَثَرَ فَدَمِيَتْ إِصْبَعُهُ فَقَالَ هَلْ أَنْتِ إِلَّا إِصْبَعٌ دَمِيتِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا لَقِيتِ [ر: ۲۶۴۸]

حضرت جندب ﷺ فرمائى چه رسول الله ﷺ يو ځل ( د جهاد دپاره ) تشريف اوړلو چه يو كانړې په دوى اولګيدلو نو دوى اوخويدل او د دوى ﷺ د ګوتې نه وينه اوبهيدله نو دوى ﷺ اوفرمائل :

هل أنت إلا إصبع دميت وفى سبيل الله مالقيت

يعنى ستا خو صرف يو ګوته ده چه وينې شوې ده او چه كوم تا ته در رسيدلې دې نو دا درته د الله تعالى په لاره كښې رسيدلې دې -

ديكښې اختلاف دې چه دا د رسول الله ﷺ خپل كلام دې يا د چا بل چا دې او دوى ﷺ دا په طور د تمثيل بيان كړو په دې موقع -

د امام طبرى او د ابن التين وغيره راي ده چه دا د رسول الله ﷺ كلام نه دې ، ابن التين وائى چه دا د عبد الله بن رواحه شعر دې - [4]

خو د نورو محدثينو حضراتو خيال دې چه دا د رسول الله ﷺ خپل كلام دې - [5] او دا د (د

---

[1] ) فتح البارى : ۱۰ \ ۶۶۰ . ارشاد السارى : ۱۳ \ ۱۵۵ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۸۱ )

[2] ) سنن أبى داود ، كتاب الأدب ، باب ما جاء فى الشعر " : ٤ \ ۳۰۳ ( رقم الحديث : ۵۰۱۲ )

[3] ) شرح صحيح البخارى لابن بطال : ۹ \ ۳۱۹ )

[4] ) فتح البارى : ۱۰ \ ۶۶۳ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۸۲ )

[5] ) فتح البارى : ۱۰ \ ۶۶۳ ، ارشاد السارى : ۱۳ \ ۱۵۶ عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۸۲ )

ما أنت بشاعر) منافي نه دي ، ځکه چه د شعر تعريف په دې نه صادقيږی ، شعر ويلې کيږی هغه کلام ته چه کوم په قصد سره ورته وزن ورکړې شی او حضور ﷺ دا الفاظ ئې سمدست اوويلې بغير د ارادې د شعره

[۵۷۸۵] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ كَلِمَةُ لَبِيدٍ أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللَّهَ بَاطِلٌ وَكَادَ أُمَيَّةُ بْنُ أَبِي الصَّلْتِ أَنْ يُسْلِمَ [ر: ۳۶۲۸]

رسول الله ﷺ فرمائلي دی چه د ټولو نه زيات رښتونې کلمه او مصرعه لبيد ويلې ده :

ألا كل شيء ما خلا الله باطل مشهور شاعر لبيد بن ربيعه

لبيد د عربۍ ژبې مشهور شاعر دې ، د امام شافعي رحمه الله يو شعر ډير مشهور دې :

لولا الشعر بالعلماء يزري لكنت أشعر من لبيد

(۱) ( که شعر د عالمانو دپاره د عيب باعث نه وې نو ځه به د لبيد نه لوې شاعر ووم )

لبيد بن ربيعه بن مالك عامری ﷺ زمانه د اسلام او د جاهليت دواړه بيا موندلې وه ، د ده کنيت " ابوعقيل " دې ، د دوی ډير زيات عمر وو ، يو سل او شل کاله يو سل او ديرش کاله او يو سل او څلويښت کاله مختلف روايتونه دی (۲) دوی د خپل اوږد شکايت په يو خپل شعر کښې داسې کړيدې -

ولقد سئمت من الحياة و طولها وسؤال هذا الناس : كيف لبيد (۳)

( په الله مې دې قسم وی چه ځه په اوږد ژوند او د خلقو په دې سوال تنګ شوم چه د لبيد حالت څنګه دې ؟ )

د اسلام د قبلولو نه پس دوی شعر ويل پريخودې وو ، حضرت فاروق اعظم ﷺ دوی نه تپوس اوکړو نو دوی اوويل سورة بقرة او سورة آل عمران الله تعالى ما دپاره د شعر نعم البدل ګرځولې دی ، دې وجه نه ځما اوس شعر ويلو ته څه حاجت نشته دې - (۴) ويلې کيږی چه د اسلام د قبلولو نه پس دوی ضرف يو شعر ويلې دی او هغه دا دې :

ما عاتب المرء الكريم كنفسه والمرء يصلحه الجليس الصالح

شريف کس دپاره د ده د خپل ځان نه زيات ملامت کوونکې څوك هم نشته دې او د هر کس اصلاح د هغه نيك دوست کوی )

يا دا شعر :

---

۱) الفوائد الضيائيه المعروف شرح الجامي ، حذف المبتداء أو الخبر جوازاً و وجوبًا : ص : ۱۰۸ )

۲) الإصابة فى تمييز الصحابة : ۳\۳۶۲ - ۳۶۷ ( رقم الترجمة : ۷۵۴۱ )

۳) الشعر و الشعراء لابن قتيبة : ۱۲۳ ، الاستيعاب لابن عبد البر على هامش الإصابة : ۳\۳۲۸ ، و فتح الباری ، كتاب مناقب الأبصار ، باب أيام الجاهلية : ۷\۱۵۳)

۴) ۴۷ ( المصابة فى تمييز الصحابة : ۳\۳۲۶ )

الحمد لله إذ لم يأتني أجلي حتى كساني من الإسلام سربالا (١)
(ټوله ثناء خاص الله دپاره ده چه ده ماته د مرګ نه وړاندې د اسلام لباس راکړو)

بهرحال حضور اکرم ﷺ د دوی د شعر يو مصرعه ته "أصدق الكلمة" فرمائلې ده - دا د دوی د يو قصيدې مصرعه ده ، د دې قصيدې څو اشعار دا دې:

ألا كل شيء ما خلا الله باطل و كل نعيم لا محالة زائل

إذا المرء أسرى ليلة ظن أنه قضى عملا، و المرء ما عاش آمل

فقولا له و إن كان يقسم أمره ألما يعظك الدهر؟ أمك هابل

فإن أنت لم تصدقك نفسك فانتسب لعلك تهديك القرون الأوائل

و كل أمريء يوما سيعلم سعيه إذا كشفت عند الإله المحاصل(٢)

① پوهه شه چه د الله تعالى نه ماسوا هر څيز پناه کيدونکې دې
② چه کله سړې د يو شپې سفر کوی نو د ده خيال وی چه ده يو کار سر ته اورسولو ، حال دا دې چه هر سړې پوره ژوند په اميدونو کښې تيروی
③ پس تاسو ده ته اووائې اګر چه ده کار تقسيم کړې وی آيا تا تر اوسه د زمانې نه عبرت نه دې اخستې ؟ د ستا مور دې بوره شی
④ کُه د ستا نفس د ستا نه منی نو ته خپل نسب بيان کړه کيدې شی چه تير شوی خلق تا ته هدايت اوکړی -
⑤ او د هر سړې محنت نزدې ده چه په هغه ورځ ښکاره شی چه کله د الله تعالى وړاندې د ده د کړو نتيجه ظاهر شی

لبيد دا قصيده د اسلام راوړو نه وړاندې په زمانه د جاهليت کښې ويلې وه ، اګر چه بعضې حضرات داوائی چه دا ده داسلام راوړو نه پس ويلې ده خو رومبې قول صحيح دې(٣)

**قوله**: امیه بن ابی الصلت، وکاد أمية بن أبي الصلت أن يسلم: اميه بن ابی الصلت د زمانې د جاهليت مشهور شاعر وو ، د ابو الصلت نوم ربيعه دې او د عربو د مشهورې قبيلې ثقيف سره ئې تعلق لرلو ، ده زمانه د اسلام موندلې وه خو اسلام ئې نه وو قبول کړې ، د پخوانو اسمانی کتابونو او د پيغمبرانو د قصو مطالعه ئې کوله - (٤)

حضور ﷺ د ده د اشعارو په باره کښې به فرمائل آمن لسانه وكفر قلبه (٥)
(د ده ژبه مؤمنه وه خو د ده زړه کافر وو)

---

(١) المصابة فی تمييز الصحابة : ٣\٣٢٦)
(٢) الشعر و الشعراء لابن قتيبة : ١٢٤ )
(٣) فتح البارى : كتاب مناقب الأنصار ، باب أيام الجاهلية : ٧\١٥٣ )
(٤) عمدة القارى : ٢٢\١٨٣ ، الاعلام للزركلى: ٢\٢٣ ، تاريخ الخميس : ١\٤١٢ )
(٥) تاريخ الخميس : ١\٤١٢ ، الشعر و الشعرآء لابن قتيبة : ٢٢٧ )

حضور اكرم ﷺ د ده باره كښې فرمائلي دي چه اميه ابن ابى الصلت اسلام قبلولو ته بالكل نزدې وو ( ځكه چه د ده اشعار د ايمان او د اسلام د تعليماتو مطابق وو خو د ده په قسمت كښې اسلام نه او د دنيا نه محروم لاړو - )

په بعض روايتونو كښې دي چه ده اسلام قبول كړې وو ، دې په شام كښې وو ، د طائف نه خپل مال اخستو دپاره حجاز ته راغلو چه كله " بدر " ته را اورسيدو نو ده نه چا تپوس اوكړو د كوم خائې اراده لرې ، نو ده اوويل طائف ته خم خپل مال راخلم ، او د هغه خائې نه مې مدينې منورې ته د هجرت كولو او د محمد ( ﷺ ) د اتباع كولو اراده ده ، ده ته اوويلې شو چه تا ته معلومه ده چه دې كوهې كښې څه دي ؟ ده اوويل " نه " ديكښې شيبه ، عتبه او فلانې فلانې د ستا د تره څامن دي ، چه دا ئې واوريدل نو په ژړا شو او د هجرت اراده ئې ترك كړه او طائف ته لاړو ، د هجرت په دويم كال دې مړ شو - (١)

[٥٧٩٦] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَيْبَرَ فَسِرْنَا لَيْلًا فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لِعَامِرِ بْنِ الْأَكْوَعِ أَلَا تُسْمِعُنَا مِنْ هُنَيْهَاتِكَ قَالَ وَكَانَ عَامِرٌ رَجُلًا شَاعِرًا فَنَزَلَ يَحْدُو بِالْقَوْمِ يَقُولُ اللَّهُمَّ لَوْلَا أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا فَاغْفِرْ فِدَاءٌ لَكَ مَا اقْتَفَيْنَا وَثَبِّتِ الْأَقْدَامَ إِنْ لَاقَيْنَا وَأَلْقِيَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا إِنَّا إِذَا صِيحَ بِنَا أَتَيْنَا وَبِالصِّيَاحِ عَوَّلُوا عَلَيْنَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ هَذَا السَّائِقُ قَالُوا عَامِرُ بْنُ الْأَكْوَعِ فَقَالَ يَرْحَمُهُ اللَّهُ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ وَجَبَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ لَوْلَا أَمْتَعْتَنَا بِهِ قَالَ فَأَتَيْنَا خَيْبَرَ فَحَاصَرْنَاهُمْ حَتَّى أَصَابَتْنَا مَخْمَصَةٌ شَدِيدَةٌ ثُمَّ إِنَّ اللَّهَ فَتَحَهَا عَلَيْهِمْ فَلَمَّا أَمْسَى النَّاسُ الْيَوْمَ الَّذِي فُتِحَتْ عَلَيْهِمْ أَوْقَدُوا نِيرَانًا كَثِيرَةً فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا هَذِهِ النِّيرَانُ عَلَى أَيِّ شَيْءٍ تُوقِدُونَ قَالُوا عَلَى لَحْمٍ قَالَ عَلَى أَيِّ لَحْمٍ قَالُوا عَلَى لَحْمِ حُمُرٍ إِنْسِيَّةٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْرِقُوهَا وَاكْسِرُوهَا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَوْ نُهَرِيقُهَا وَنَغْسِلُهَا قَالَ أَوْ ذَاكَ فَلَمَّا تَصَافَّ الْقَوْمُ كَانَ سَيْفُ عَامِرٍ فِيهِ قِصَرٌ فَتَنَاوَلَ بِهِ يَهُودِيًّا لِيَضْرِبَهُ وَيَرْجِعُ ذُبَابُ سَيْفِهِ فَأَصَابَ رُكْبَةَ عَامِرٍ فَمَاتَ مِنْهُ فَلَمَّا قَفَلُوا قَالَ سَلَمَةُ رَآنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاحِبًا فَقَالَ لِي مَا لَكَ فَقُلْتُ فِدًى لَكَ أَبِي وَأُمِّي زَعَمُوا أَنَّ عَامِرًا حَبِطَ عَمَلُهُ قَالَ مَنْ قَالَهُ قُلْتُ قَالَهُ فُلَانٌ وَفُلَانٌ وَأُسَيْدُ بْنُ الْحُضَيْرِ الْأَنْصَارِيُّ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَذَبَ مَنْ قَالَهُ إِنَّ لَهُ لَأَجْرَيْنِ وَجَمَعَ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ إِنَّهُ لَجَاهِدٌ مُجَاهِدٌ قَلَّ عَرَبِيٌّ نَشَأَ بِهَا مِثْلَهُ [ر: ٢٣٤٥]

د حضرت سلمه بن اكوع ﷺ نه روايت دې ، دوى بيان كړيدې چه مونږ خلق د رسول الله ﷺ سره خيبر ته روان شو ، مونږ د شپې په وخت كښې تلو نو په ملګرو كښې يو كس عامر

---

١) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٨٣ )

بن اکوع ته اوویل چه ته خپل کلام ولې نه اوروې ، د راوی بیان دې چه عامر ﷺ شاعر وو ، نو دوی حدی اوروِل شروع کړل :

" اے الله کُه ته نه وې نو مونږ هدایت نه شو موندلې .... نه به مونږ صدقه کوله ، او نه به مونږ مونځ کولو .....دې وجه نه چه مونږ څه کړیدی نو دا صدقه کړې د خپل ځان اومونږ ته ئې بخنه اوکړې ، او کُه مونږ دښمن ته مخامخ شو نو مونږ ثابت قدم اوساتې ، ....او په مونږ اطمینان قلبی نازل کړه ...... چه کله د جنګ اعلان اوشی نو چه مونږ حاضر یو ...... او چه دښمن اعلان اوکړی او په مونږ حمله اوکړی "

رسول الله ﷺ اوفرمائل : دا څوك اوبښ شړی ، خلقو عرض اوکړو ، عامر بن اکوع دی ، دوی ﷺ اوفرمائل ، الله دې په ده رحم اوکړی ، په لښکر کښې یو کس اوویل : اے د الله نبی ( جنت ) ورلره واجب شو ، کاش چه مونږ د ده نه نوره هم فائده اخستې وې ، د راوی بیان دې چه مونږ خیبر ته اورسیدو او محاصره مو اوکړه تر دې چه مونږ ته ډیر تکلیف اورسیدو ، خو الله تعالی فتح راکړه او په دغه ورځ چه کله ماښام شو نو خلقو ډیر اور بل کړو ، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو دا اور مو د څه دپاره بل کړیدی څه پرې پخوئ ؟ نو خلقو اوویل : غوښه ، دوی ﷺ تپوس اوکړو د څه څیز غوښه ؟ نو خلقو اوویل : د کورونې خر غوښه، رسول الله ﷺ اوفرمائل : دا اوغورزوئ او ( لوښی ) مات کړئ ، یو سړی عرض اوکړو : اے د الله رسوله آیا ( داسې نه شی کیدې ) چه دا ( غوښه ) اوغورزوو او ( لوښی ) اووینځو ، نو دوی ﷺ اوفرمائل هم داسې اوکړئ ، د راوی بیان دې چه کله د لښکر صف بندی اوشوه ، نو عامر په یو یهودی باندې د خپلې تورې ګزار اوکړو ، دې دپاره چه دې قتل کړی خو د ده توره وړه وه نو ددې په سبب دا د ده په پتون اولګیدله او دې شهید شو ، چه کله خلق د جنګ نه واپس شو نو د سلمه بیان دې چه رسول الله ﷺ څه پریشانه اولیدلم نو وې فرمائل : څه خبره ده ؟ ما عرض اوکړو : څما مور پلار دې په تا قربان وی ، خلق وائی چه د عامر عمل ضائع شو ، رسول الله ﷺ اوفرمائل : څوك وائی ؟ ما عرض اوکړو : فلانی فلانی سړې او اسید بن خضیر انصاری ( وائی ) نو رسول الله ﷺ اوفرمائل : چه څوك دا وائی هغه دروغ وائی او دواړه ګوتې ئې ملاؤ کړې او وې فرمائل : د هغه دپاره دوه ثوابونه دی ، هغه جاهد مجاهد وو عربو کښې داسې سړی ډیر کم پیدا شویدی " -

**هُنَيْهاتك :** دا دهُنَيْهَة جمع ده دینه مراد اشعار او رجز دی (۱)

**قوله: فقال رجل من القوم: وَجَبَت یانبی الله لو أمتعتنا به:** رسول الله ﷺ چه کله د دې صحابی دپاره د " یرحمه الله " جمله استعمال کړه نو یو سړی اوویل ( دا حضرت فاروق اعظم ﷺ وو (۲) ) چه اې د الله نبی شهادت اوس ده دپاره واجب شو ، تاسو مونږه ته

---

(۱) عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۸٤ ، قال ابن الأثیر : و فی حدیث ابن الأکوع " قال له : ألا تسمعنا من هَنَاتک " أی من کلماتک ،أو من أرا جیزک ،وفی روایة " من هنیّاتک " علی التصغیر و فی أخری " من هُنَیّهاتک " علی قلب الیاء هاء ، النهایة لابن الأثیر : ۵ \ ۲۷۹ )

(۲) ارشاد الساری : ۱۳ \ ۱۵۹ )

دده نه د استفادې موقع ولې رانکړه -
رسول الله ﷺ به چه کله چا دپاره د رحمت دعا ( يرحمه الله ) اوکړه نو هغه به شهيد کيدو (١) دې وجه نه چه رسول الله ﷺ کله دا دعا اوکړه نو حضرت فاروق اعظم دا جمله اوويله -
قال : أوْذاك : يو سړې تپوس اوکړو چه مونږ به دا اوغورزوو او وينځل به اوکړو - دوى اوفرمائل أوذاك........
رسول الله ﷺ د لوښو د ماتولوحکم کړې، يو سړى چه غالبا حضرت فاروق اعظم وو اوويل چه کَه مونږ دا د ماتولو په ځائې دا لوښى اووينځو نو دوى اوفرمائل أوذاك يعنى ښه ده دا اوکړئ ، د " ذاك " مشاراليه " غسل " دې يعنى يا خو لوښى مات کړئ؛ يا ئې بيا اووينځئ؛
**قوله:** فلما تصافّ القوم كان سيف عامر فيه قِصَرٌ: چه کله خلق د جنګ دپاره صفونه صفونه شو نو د حضرت عامر توره وړه وه ، قصر د قاف په کسره او د صاد په فتحه سره دې
ذُباب سيف : د تورې تيره والى او طرف - رأى رسول الله صلى الله عليه و سلم شاحبا : رسول الله ﷺ خه اوليدلم چه خما رنګ الوتې وو ، شاحب : هغه کس وى چه د هغه رنګ بدل شوې وى - (٢)
**قوله:** إن له لأجرين : يعنى ده دپاره خو دوه اجره دى يو اطاعت د الله تعالى کښې د محنت اجر او دويم د جهاد فى سبيل الله اجر (٣)
**قوله:** إنه لجاهد مجاهد: هغه محنت کوونکې هم وو او مجاهد هم ، ، د جاهد نه مراد د الله تعالى په نورو احکامو کښې اطاعت کوونکې مراد دې او د مجاهد نه اصطلاحى مجاهد مراد دې -
دا هم احتمال دې چه ديو ماده دوه الفاظ په غرض د مبالغه ذکر شوې وى او مطلب دا وى چه دې لوې مجاهد دې -
**قوله:** قَلَّ عربى نشأ بها مثله: مدينه منوره کښې د ده پشان عربى ډير کم پيدا شويدى د "بها" ضمير مدينه ته يا " أرض " ته او يا حرب ته راجع دې - (٤)
[٥٧٩٧] (٥) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ وَمَعَهُنَّ أُمُّ سُلَيْمٍ

---

١) ارشاد السارى : ١٣ \ ١٥٩ )
٢) ارشاد السارى : ١٣ \ : ١٣ \ ١٥٩ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٨٤ )
٣) ارشاد السارى : ١٣ \ ١٥٩ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٨٤ )
٤) ارشاد السارى : ١٣ \ ١٥٩ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٨٤ )
٥) ٥٧٩٧ ) الحديث أخرجه البخارى أيضا فى كتاب الأدب ، باب ماجاء فى قول الرجل : ويلک (رقم الحديث : ٥٨٠٩ ) و اخرجه أيضا فى كتاب الأدب ، باب من دعا صاحبه فنقص...[بقيه برصفحه آئنده....

فَقَالَ وَيْحَكَ يَا أَنْجَشَةُ رُوَيْدَكَ سَوْقًا بِالْقَوَارِيرِ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ فَتَكَلَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَلِمَةٍ لَوْ تَكَلَّمَ بِهَا بَعْضُكُمْ لَعِبْتُمُوهَا عَلَيْهِ قَوْلُهُ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيرِ [۵۸۰۹، ۵۸۴۹، ۵۸۵۶، ۵۸۵۷]

حضرت انس ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ خپلې یو بی بی ته تشریف راوړو ، دوی سره ام سلیم هم وه ، حضور ﷺ اوفرمائل .... " انجشه هلاك شې ، خپله حدي دې بنده کړه د شیشو د وجه " د ابوقلابه بیان دې چه رسول الله ﷺ داسې خبره اوکړه چه که دا تاسو کښې چا کړې وه نو دا به تاسو معیوب ګنړله -

رسول الله ﷺ به چه کله سفر کولو نو عمومًا به ازواج مطهراتو کښې یو یا دوه دوی سره په سفر کښې وې ، دوی به د اوبښ په کجاوه کښې په پرده کښې سورې وې ، د دې اوبښ د بوتلو دپاره به یو حبشي غلام مقرر وو چه د هغه نوم " انجشه " وو ، بلاذری نقل کړیدی چه دده کنیت " ابوماریه " وو - (۱)

د حدیث د باب دا واقعه هم د یو سفر ده (۲) اوبښ د رفتار د تیزولو دپاره به حدی ویلې کیدله ، دا به رجزیه اشعار وو چه مخصوص سُر کښې به ویلې کیدل نو اوبښ به په وجد کښې راغلو او تیز تیز به تللو ، په یو موقع باندې انجشه د اوبښانو د رفتار زیاتولو دپاره حدي ویل شروع کړل نو رسول الله ﷺ دې منع کړو او وې فرمائل : انجشه هلاك شې دا حدي ویل او د اوبښانو تیزرفتاره کول بنده کړه ، ځکه چه په دوی باندې د شیشې په شان نازکې او حساس ښځې ناستې دی -

رَوید اسم فعل د " أمهل " امر په معنی دی " سوقك " د دې مفعول به دې یعنی ته د اوبښانو تیز رفتاری بنده کړه او د دوی رفتار کم کړه .... او د " سوقك " نه حدی هم مراد اخستې شې ځکه چه " حدی " د " سوق " سبب دې ،ذکر د سبب مراد ترینه مسبب په طریقه د مجاز اخستې شی ، دې صورت کښې به مطلب دا وی چه ته خپله حدی بنده کړه - (۳)

قواریرقارورة جمع ده ،قارورة د شیشې ګلاس او بوتل ته وائی - (۴)

دلته د " قواریر " نه مراد ښځې دی ، د شیشې سره د ښځو تشبیه د کمزورې کیدو او د زر ماتیدو او د حساس کیدو او د لطیف او د رقیق کیدو په وجه ورکړې شویده ، چه څه رنګه شیشه یو حساس ، لطیف او په لږ خوزولو سره ماتیږی او دړې وړې کیږی داسې ښځه هم

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] من اسمه حرفا (رقم الحدیث : ۵۸۴۹ ) و أخرجه أیضا فی کتاب الأدب ،باب المعاریض مندوحة عن الکذب (رقم الحدیث : ۵۸۵۶ ، ۵۸۵۷ ) و أخرجه مسلم فی کتاب الفضائل ، باب رحمة النبی صلی الله علیه و سلم للنساء و أمر السواق مطایاهن بالرفق بهن : ۴ \ ۱۸۱۱ (رقم الحدیث : ۲۳۲۳ ) و أخرجه النسائی فی عمل الیوم و اللیلة : ۶ \ ۱۳۴ ( رقم الحدیث : ۱۰۳۵۹ )

(۱) فتح الباری : ۱۰ \ ۶۶۶ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۸۵ )

(۲) فتح الباری : ۱۰ \ ۶۶۶ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۸۵ )

(۳) فتح الباری : ۱۰ \ ۶۶۷ ،عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۸۵ )

(۴) فتح الباری : ۱۰ \ ۶۶۷ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۱۸۶ )

يو نازك او كمزوري صنف دي ، چه كوم زر متاثر كيږي هم او زر ماتيږي هم - (۱)

**د رويدک سوقک بالقوارير دوه مطلبه** : د دې جملې دوه مطلبه بيان شويدى

① يو مطلب خو دا چه ته دا اوښان د حدي ويلو په وجه تيز مه بوځه ځکه چه په دې باندې د شيشې په شان كمزورې ښځې ناستې دى ، چه دوى به د اوښانو د تيز رفتارئ په وجه راګزار شي او زخمى به شي -

② دويم مطلب دا دې چه ته خپله حدى دې بنده كړه ، ځكه چه د ستا د ښائسته اواز په وجه د شيشې په شان ښځې متاثره كيدې شى ، چه څنګه شيشه زر ماتيږي او ريزه ريزه كيږي داسې د ښځو زړونه هم زر متاثره كيدې شى ، د انجشه اواز ډير ښائسته وو - علامه خطابى او طيبى دا دواړه مطلبونه بيان كړيدى (۲)

ابن بطال رومبې مطلب ته او قاضى عياض دويم مطلب ته ترجيح وركړيدې (۳) د امام بخارى رحمه الله په نزد هم دا دويمه معنى راجح ده ، لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى : "قلت : و الراجح عند البخاري الثاني ، ولذلك أدخل هذا الحديث في "باب المعاريض" ولو أريد المعنى الأول لم يكن في القوارير تعريض" (۴)

په دې روايت كښې د حدى ويلو ذكر دې او په حدى كښې اشعار وى ، دې وجه نه امام بخارى رحمه الله دا دلته ذكر كړو - (۵)

**قوله: قال أبوقلابة: فتكلم النبي صلى الله عليه و سلم بكلمة لوتكلم بها بعضكم لعبتموها عليه**

دا د ماقبل سند سره متصل ده - حضرت ابوقلابه رحمه الله فرمائى چه رسول الله ﷺ يو داسې خبره اوفرمائله چه كُه تاسو كښې چا دا خبره كړې وې نو تاسو به په ده باندې عيب لګولو ،د خبرې نه سوقك بالقوارير مراد دې ، د ابوذر په نسخه كښې د دې تصريح ده - (۶)

د ابوقلابه د دې كلام دوه مطلبه بيان شويدى

① يو مطلب خو دا چه ديكښې د ښځو تشبيه د قوارير يعنى د شيشې سره وركړې شويده، د دواړو په مينځ كښې وجه د تشبيه ظاهر نه ده ، د حضرت ابوقلابه مطلب دا دې چه د مشبه او د مشبه به په مينځ كښې وجه د تشبيه ظاهر نه ده ، داسې استعاره او د تشبيه والا كلام كُه څوك بل څوك استعمال كړى نو تاسو به په ده تنقيد كولو - (۷)

خو د ابوقلابه دا مطلب واضح نه دې ځكه چه د مشبه او د مشبه به په مينځ كښې وجه د

---

۱) فتح البارى : ۱۰\۶۶۷ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۸۶ ، فيض البارى : ۴\۳۹۴)
۲) فتح البارى : ۱۰\۶۶۷ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۸۶)
۳) فتح البارى : ۱۰\۶۶۸) .....
۴) فتح البارى : ۱۰\۶۶۸)
۵) عمدة القارى : ۲۲\۱۸۵)
۶) ارشاد السارى : ۱۳\۱۶۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۸۶ ، فتح البارى : ۱۰\۶۶۷)
۷) ارشاد السارى : ۱۳\۱۶۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۱۸۶ ، فتح البارى : ۱۰\۶۶۷)

تشبیه د خپل ذات په اعتبار سره ظاهرول ضروري نه دي ، بلکه په قرائنو سره د وجه د تشبیه ظهور کافي دې او دا دلته په درجه اتم موجود دې ، د دې استعارې په ښائست کښې هیڅ کلام نشته دې نو د تنقید کولو خو هیڅ سوال نه پیدا کیږي - ([1])

② دویم مطلب ئې دا دې چه دا استعاره او جمله د رسول الله ﷺ نه روایت ده او د دوی بلاغت او فصاحت مسلم دې ، دې وجه نه په دې باندې د ستاسو د طرفه تنقید نشته دې ځه داسې معیاري او ښائسته استعاره او جمله بل چا استعمال کړې وې نو د ښائسته کیدو سره به تاسو خپل ناقدانه طبیعت په وجه به په ده ضرور تنقید کولو -

د عراقیانو په مزاج کښې چه د اعتراض او د تنقید مرض ډیر زیات وو ، حضرت ابوقلابه دې طرفته اشاره اوکړه چه دا څومره ښائسته کلام دې خو چه تاسو په دې د تنقید کولو نه خاموش ئې نو د دې صرف دا وجه ده چه دا د رسول الله ﷺ مبارک کلام دې ، ځه چا بل چا داسې کلام ویلې نو د ستاسو د تنقید نه به بچ نه وو ، شارحینو دا دویم مطلب راجح ګرځولې دې - ([2])

**فائده** :ځه د چا په ذهن کښې دا شبه راشي چه قرآن کریم کښې خو د رسول الله ﷺ د شاعر کیدو نفي شویده (وماهوبقول شاعر)([3]) ویلې شویدي او په احادیثو کښې دي چه دوی به شعر لوستلو او په بل به ئې هم ویلې -

د دې جواب واضح دې چه نفي د انشاء د شعر ده ، د شعر د انشاد نفي نه ده ، شعر جوړول بیل څیز دې او شعر لوستل او ویل بیل څیز دې ..... دې وجه نه دواړو په مینځ کښې څه تضاد نشته دې ([4]) باقي د رسول الله ﷺ نه چه کوم منظوم کلام مروي دې نو دا د "شعر" په تعریف کښې داخل نه دې ، ځکه چه شعر هغه مقفى او موزون کلام ته وائي چه کوم بالقصد انسان اووائي ، او اتفاقا او بې ساخته (سوچه) څوك منظوم کلام اووائي نو دیته "شعر" نه ویلې کیږي ([5])

د قرآن کریم په څو آیتونو باندې مختلف اوزان د بحور منطبق کیږي ، او ابو طیب حجازي په خپله رساله "قلائد النحور في جواهر البحور" کښې د دې آیتونو ذکر هم کړیدې ، لکه چه د بحر کامل ، بحر رمل او د بحر طویل ، او د بحر وافر وغیره مثالونه دوی ذکر کړیدي، خو چه دا اتفاقي دي نو دې وجه نه په دې د "اصطلاحي شعر" تعریف نه صادقیږي - ([6])

---

[1]) ارشاد الساري : ۱۳\۱۶۰ ، عمدة القاري : ۲۲\۱۸۶ ، فتح الباري : ۱۰\۶۶۷ )

[2]) ارشاد الساري : ۱۳\۱۶۰ ، عمدة القاري : ۲۲\۱۸۶ ، فتح الباري : ۱۰\۶۶۷ )

[3]) سورة الحاقة : ٤١ )

[4]) ارشاد الساري : ۱۳\۱۶۱ )

[5]) ارشاد الساري : ۱۳\۱۶۱ )

[6]) علامه قسطلاني فرمائي : فمن ذلک قوله مما هو من البر الطویل :

أیا من طویل اللیل بالنوم قصرو أنیبوا و کونوا من أناس به تاهوا

و إن شئتموا تحیوا أمیتوا نفوسکم و. لا تقتلوا النفس التی حرم الله ...[بقیه برصفحه آئنده....

## ۹۱- بَابُ هِجَاءِ الْمُشْرِكِينَ

[۵۷۹۸] حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتِ اسْتَأْذَنَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتٍ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هِجَاءِ الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَيْفَ بِنَسَبِي فَقَالَ حَسَّانُ لَأَسُلَّنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعَرَةُ مِنَ الْعَجِينِ وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ ذَهَبْتُ أَسُبُّ حَسَّانَ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَتْ لَا تَسُبَّهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُنَافِحُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ۳۳۳۸]

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] و من البحر الوافر :

صدور الجيش يظفركم إنه — يوافر سهمكم بالكافرين
ويخزهمو و ينصركم عليهم — و يشف صدور قوم مؤمنين

و من الكامل :

مات ابن موسى و هو بحر كامل — فهناكمو جمع الملائك مشترك
يأتيكم التابوت فيه سكينة — من ربكم و بقية مما ترك

و من الرمل :

أيها الأرمل إن رمت عفافا — فتزوج من نساء خيرات
مسلمات مؤمنات قانتات — تائبات عابدات سائحات

و من مجزو الرمل :

أسعدوا المرمل تجزوا — ذاك أولى ما تعدون
لن تنالوا البر حتى — تنفقوا مما تحبون

و من السريع :

يا أهل دين الله بشراكمو — أقر مولاكم به عينكم
إذا أنزل الله على المصطفى — اليوم أكملت لكم دينكم

و من الخفيف :

لاتدع اليتيم يوما و كن فى — شأنه كله رؤوفا رحيما
أرأيت الذى يكذب بالدين — فذلك الذى يدع اليتيما

و من المضارع :

و ضارع أهيل خير — تنل من رب يقينا
جنانًا مزخرفات — و هم فيها خالدون

و من المجتث

إجتث قلبى بذنبى — و الله خيرا يريد
و كيف أخشى ذنوبى — و هو الغفور الودود

ارشاد السارى : ۱۳ / ۱۶۱ ، ۱۶۲ )

هجاء او هجو دواړه په يو معنى دى ، دې باب سره امام بخارى رحمه الله د بعض اشعارو استحباب ته اشاره كول غواړى - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ...... وأشار بهذه الترجمة إلى ان بعض الشعر قد يكون مستحبا (١)

طبرانى د عمار بن ياسر روايت نقل كړيدې "لما هجانا المشركون شكونا ذلك إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: قولوا لهم كما يقولون لكم" (٢) يعنى چه كله مشركانو ځمونږ هجو اوكړه نو مونږ رسول الله ﷺ ته ددې شكايت اوكړو ، حضور ﷺ فرمائى ..... تاسو هم د دوى داسې هجو اوكړئ چه څنګه دوى د ستاسو هجو كوى " ....

روايت د باب كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حسان بن ثابت رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه د مشركانو د هجو كولو اجازت اوغوښتو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيلو ځما د نسب به څه كيږى ( يعنى مشركانو كښې د بعضو مونږ سره نسبي تعلق دې ، نو كه د دوى هجو وى دا به ځما هجو وى ) حضرت حسان عرض اوكړو ، څه به تاسو د دينه داسي اوباسم چه څنګه ويخته د اوړو نه ويستې كيږى -

هشام د خپل والد عروه نه نقل كوى ، چه دوى وائى چه ما د حضرت عائشه وړاندې حضرت حسان پسې بد اوويلې نو دې اوويل حسان پسې بد مه وايه ځكه ده به د رسول الله ﷺ نه دفاع كوله-

**قوله: كما تسل الشعرة من العجين**: يعنى چه څنګه د اوړو نه ويخته ويستلې كيږى او په ده څه اثر نه وى ، داسې به ځما د هجو هيڅ اثر هم په تاسو نه وى - (٣)

په اصل كښې د مشركانو بعض شاعرانو د رسول الله ﷺ او د اصحابو هجو اوويلې ، نو انصارو كښې حضرت حسان بن ثابت رضي الله عنه ته اوويلې شو چه دې دې جواب وركړى ، نو ده اوويل چه ما ته د قريشو ښاخونو ( خاندانونو ) تفصيل نه دې معلوم ، حضور ﷺ صديق اكبر رضي الله عنه ته اوفرمائيل : چه ده ته تفصيل بيان كړه ، حضرت صديق اكبر رضي الله عنه دې خبر كړو او دوى بيا د رسول الله ﷺ د طرف نه دفاع شروع كړه -

[٥٧٩٩] حَدَّثَنَا أَصْبَغُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي يُونُسُ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ أَنَّ الْهَيْثَمَ بْنَ أَبِي سِنَانٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ فِي قَصَصِهِ يَذْكُرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ أَخًا لَكُمْ لَا يَقُولُ الرَّفَثَ يَعْنِي بِذَاكَ ابْنَ رَوَاحَةَ قَالَ وَفِينَا رَسُولُ اللَّهِ يَتْلُو كِتَابَهُ إِذَا انْشَقَّ مَعْرُوفٌ مِنْ الْفَجْرِ سَاطِعُ أَرَانَا الْهُدَى بَعْدَ الْعَمَى فَقُلُوبُنَا بِهِ مُوقِنَاتٌ أَنَّ مَا قَالَ وَاقِعُ يَبِيتُ يُجَافِي جَنْبَهُ عَنْ فِرَاشِهِ إِذَا اسْتَثْقَلَتْ بِالْكَافِرِينَ الْمَضَاجِعُ تَابَعَهُ عُقَيْلٌ عَنْ

---

١) فتح البارى : ١٠\٦۶٩ )

٢) مجمع الزوائد و منبع الفوائد : باب هجاء المشركين : ٨\١٢٣ ، ١٢۴ ، عمدة القارى : ٢٢\١٨۶ ، فتح البارى : ١٠\٦۶٩ )

٣) فتح البارى : ١٠\٦٧٠ ، عمدة القارى : ٢٢\١٨۶ ، ارشاد السارى : ١٣\١۶٣ )

الزُّهْرِيِّ وَقَالَ الزُّبَيْدِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدٍ وَالْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ [ر:١١٠٣]

د باب په دې دويم روايت کښې هيثم بن ابى سنان وائى چه ده د حضرت ابوهريره ﷺ وعظ او نصيحت او قصو بيانولو کښې واوريدل چه ده په کښې د رسول الله ﷺ ذکر کولو ، چه دا ئې فرمائل :إن أخالكم لا يقول الرفث " د ستاسو رور به فحش خبره نه کوله ، د دوى مراد حضرت عبد الله بن رواحه وو ، حاصل دا چه د رسول الله ﷺ په مدح کښې د حضرت عبد الله بن رواحه مذکوره اشعار اورولو نه وړاندې حضرت ابوهريره اوويل چه ابن رواحه فحش گو شاعر نه وو ، بلکه د رسول الله ﷺ باره کښې به ئې حقائق بيانول او بيا ئې د دوى درې شعره واورول چه د هغې ترجمه ده :

① او مونږ کښې د الله رسول دې چه د ده د کتاب تلاوت کوى چه کله طلوع د فجر اوشى.

② ده مونږ ته نيغه لاره اوخودله روستو د گمراه کيدو ځمونږه نو ځمونږ زړونه يقين لرى چه ده څه فرمائلې دى هغه واقع کيدونکې دى -

③ دې شپه په داسې حالت کښې تيروى چه دده اړخ د بسترې نه لرې وى حال دا دې چه د مشرکانو بسترې د دوى د بوجه سترې شى -

**قوله: معروف ..... ساطع:** د معروف نه مراد رڼا ده ، د ساطع معنى د اوچتوالى او د ظاهره کيدو ده ، يعنى چه د سحر رڼا راښکاره شى -

**قوله: تابعه عقيل عن الزهري ..... وقال الزبيدي .....:** د عقيل بن خالد متابعت امام طبرانى او د محمد بن وليد زبيدى تعليق امام بخارى رحمه الله په تاريخ صغير کښې موصولاً نقل کړيدې - (١)

[٥٨٠٠] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّهُ سَمِعَ حَسَّانَ بْنَ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيَّ يَسْتَشْهِدُ أَبَا هُرَيْرَةَ فَيَقُولُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ نَشَدْتُكَ بِاللَّهِ هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَا حَسَّانُ أَجِبْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ اللَّهُمَّ أَيِّدْهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ نَعَمْ [ر:٤٤٢]

[٥٨٠١] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِحَسَّانَ اهْجُهُمْ أَوْ قَالَ هَاجِهِمْ وَجِبْرِيلُ مَعَكَ [ر:٣٠٤١]

روايت کښې دى چه حضرت حسان بن ثابت حضرت ابوهريره گواه جوړ کړو او وې ويل چه ابوهريره :څه تا ته د الله تعالى واسطه درکوم چه آيا تا د رسول الله ﷺ نه دا فرمان نه دې اوريدلې چه " يا حسان أجب عن رسول الله صلى الله عليه و سلم ، اللهم أيده بروح القدس " ..... حضرت ابوهريره اوفرمائل : نعم ( هو اوريدلې مې دې )

---

(١) فتح البارى ، کتاب التهجد ، باب فضل من تعارمن الليل فصلى : ٣\٤٢ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ٢١٥ ارشاد السارى : ١٣ \ ١٦٤ )

**قوله: اهجهم أوقال: هاجهم:** راوى ته شك دې اهجهم ئې اوويل يا هاجهم ، رومبې د باب د نصر نه امر حاضر دې او دويم د باب د مفاعله د امر حاضر صيغه ده - يعنى رسول الله ﷺ حضرت حسان ته اوويل : چه ته ددې مشركانو هجو اوكړه ، حضرت جبرائيل د ستا سره دې -

## ۹۲=بَاب مَا يُكْرَهُ أَنْ يَكُونَ الْغَالِبَ عَلَى الْإِنْسَانِ الشِّعْرُ حَتَّى يَصُدَّهُ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَالْعِلْمِ وَالْقُرْآنِ

[۵۸۰۲] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ عَنْ سَالِمٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا

[۵۸۰۳] (۱) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا أَبِي حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ رَجُلٍ قَيْحًا يَرِيهِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا

**قوله: شعر ويل كله مكروه دې ؟ :** دامام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه په انسان باندې د شعر مشغله داسې غالبه شى چه د الله تعالى د ذكر او د قرآن پاك د تلاوته او د خير د نورو كارونو دپاره ديوال اوګرځى نو دا مكروه دې ، اشعار ويل او لوستل او د بل نه اوريدل دا په دې صورت كښې جائز دى چه كله دا ددې امورو د خير دپاره باعث د خلل نه وى - (۲)

لكه چه په روايت د باب كښې دى چه تاسو كښې د چا خيټه د پيپ نه داسې ډكه شى چه دا خرابه كړى دا د دينه بهتره ده چه دا د شعر نه ډكه وى -

" قيحا يريه " موصوف صفت دى ، " قيحا " موصوف او " يريه " د دې صفت دې ، يَرِي دباب د ضرب نه دې ، وَرَى......وَرْيًا: پيپ سره خيټه خرابيدل - (۳)

دې حديث كښې د شعر ياد ساتلو مذمت بيان شويدې ، امام بخارى رحمه الله دا په دې صورت محمول كړيدې ، چه كله شعر د نورو كارونو د خير نه او د حقوق نه او د الله د ذكر او د تلاوت وغيره باندې غالب وى -

د حضرت عائشه ﷺ په يو روايت كښې دى چه طحاوى او ابن عدى نقل كړيدې چه كله د دوى په خدمت كښې د حضرت ابوهريره دا حديث پيش كړې شو نو دوى اوفرمائل " لم يحفظ،

---

۱) ۵۸۰۳) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الشعر : ۴ \ ۱۷۶۹ (رقم الحديث : ۲۲۵۷) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الأدب ، باب ماكره من الشعر : ۲ \ ۲۳۶ : ( رقم الحديث : ۳۷۵۹ )

۲) فتح البارى : ۱۰ \ ۶۷۲ ، عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۸۸ ، ارشاد السارى : ۱۳ \ ۱۶۵- ۱۶۶ ، شرح صحيح البخارى لابن بطال : ۹ \ ۳۲۸ )

۳) النهاية لابن الأثير : ۵ \ ۱۷۸ ، مجمع بحارالأنوار " مادة ورى " : ۵ \ ۴۵ )

إنما قال: أنبيتلئ شعرا هُجيتُ به " حضرت ابوهريره ته ياد نه دي پاتې شوې - يعنى د رسول الله ﷺ دا ارشاد مطلقا د هر شعر په باره كښې نه دې فرمائلې ، بلكه د هغه اشعارو سره متعلق دې چه كومو كښې د حضور ﷺ هجو بيان كړې شوې وى - (١)
خو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د " هجيت به " دا اضافه په صحيح سند سره ثابت نه ده - (٢)

## ٩٣= بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرِبَتْ يَمِينُكِ وَعَقْرَى حَلْقَى

[٥٨٠٣] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ أَفْلَحَ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ اسْتَأْذَنَ عَلَيَّ بَعْدَ مَا نَزَلَ الْحِجَابُ فَقُلْتُ وَاللَّهِ لَا آذَنُ لَهُ حَتَّى أَسْتَأْذِنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ أَخَا أَبِي الْقُعَيْسِ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِي وَلَكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَةُ أَبِي الْقُعَيْسِ فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ لَيْسَ هُوَ أَرْضَعَنِي وَلَكِنْ أَرْضَعَتْنِي امْرَأَتُهُ قَالَ ائْذَنِي لَهُ فَإِنَّهُ عَمُّكِ تَرِبَتْ يَمِينُكِ قَالَ عُرْوَةُ فَبِذَلِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ تَقُولُ حَرِّمُوا مِنْ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنْ النَّسَبِ [ر: ٢٥٠١]

حضرت عائشه فرمائى چه د ابو القيس رور افلح د پردې د آيت نازليدو نه پس ما نه د دننه راتلو اجازت اوغوښتو نو ما اوويل چه څه به اجازت درنكړم ، چه تر څو څه د رسول الله ﷺ نه اجازت وانخلم ، څكه چه د ابوالقعيس رور ما ته پئ نه دى راكړى ، بلكه ما ته د ابو القعيس ښځې پئې راكړيدى ، رسول الله ﷺ چه ما ته راغلو نو ما عرض اوكړو د الله رسوله ! سړى ما ته پئې نه دى راكړې بلكه د ده ښځې ما ته پئې راكړيدى ، نو حضور اوفرمائل ، ده ته اجازت وركړه ، څكه چه دې د ستا تره دې ، دې وجه نه حضرت عائشه فرمائى د رضاعت په سبب هغه رشتې حرام اوګڼړئ چه كوم د نسب په وجه حرام ګرځي-
دې حديث باره كښې كلام په كتاب النكاح ، باب لبن الفحل كښې تير شويدې - (٣)

[٥٨٠٥] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا الْحَكَمُ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ الْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْفِرَ فَرَأَى صَفِيَّةَ عَلَى بَابِ خِبَائِهَا كَئِيبَةً حَزِينَةً لِأَنَّهَا حَاضَتْ فَقَالَ عَقْرَى حَلْقَى لُغَةٌ لِقُرَيْشٍ إِنَّكِ لَحَابِسَتُنَا ثُمَّ قَالَ أَكُنْتِ أَفَضْتِ يَوْمَ النَّحْرِ يَعْنِي الطَّوَافَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ فَانْفِرِي إِذًا [ر: ٣٢٢]

حضرت عائشه فرمائى چه نبى كريم ﷺ د واپسئ اراده اوكړه نو صفيه ئې اوليدله چه د خپلې خيمې په دروازه كښې غمژنه ولاړه ده ، په دې وجه چه د دې جامې راغلې وې ، نو

---

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٢ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٨٩ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٦٦ )
(٢) فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٢ )
(٣) كشف البارى ، كتاب النكاح : ١٨٧ - ١٩٩ )

دوی اوفرمائل : ويخته دې پرې شه ( دا د قريشو په لغت كښې استعماليږی ) بې شك ته مونږ ايساروې ، بيا ئې اوفرمائل آيا تا د قربانۍ په ورځ طواف افاضه كړيدې ؟ نو حضرت صفيه اوويل : هو ، نو دوی ﷺ اوفرمائل بيا ته هم روانه شه -

**د ترجمة الباب مقصد** : دې ترجمة الباب سره د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دی چه څه الفاظ داسې وی چه دا په طور د محاوره يا په خاص مواقعو د خصوصی استعمال دپاره رائج وی او د دې لغوی معنی مراد نه اخستې كيږی ، داسې الفاظ استعمالول صحيح دی ، مثلا يو جمله ده " تربت يداك " ، د دې لغوی معنی خو دا ده چه د ستا دواړه لاسونه دې په خاورو ككړ وی خو دا جمله عموما د خيرو په لغوی معنی كښې نه استعماليږی بلكه ديو كار كښې د شوق پيدا كولو دپاره يا په مدح كښې مبالغه دپاره استعماليږی ، مطلب ئې دا وی چه دا كار ته ضرور اوكړه ، او كه نه كوې نو دستا لاسونه دې په خاورو ككړ وی يا په مدح كښې د مبالغه دپاره استعماليږی ، مثلاً يو شاعر ته په يو شعر داد وركولو دپاره ويلې كيږی قاتله الله، لقد أجاد (١)

دارنګه دوه لفظونه نور دی : عَقْرَىٰ او حَلْقَىٰ د فعلى په وزن مونث دې أی عقرها الله يعنی الله تعالى دې دا پريكړی ، او د حلقى معنى ده حلقها الله : الله تعالى دې ددې په حلق كښې تكليف پيدا كړی -

عَقْرًا او حَلْقًا تنوين سره هم مروی دې ، دې صورت كښې به دا مفعول مطلق وی : أی عقرها الله عَقْرًا و حلقها حَلْقًا (٢)

ددې څه تفصيل كشف البارى ، كتاب الطلاق ، باب قول الله تعالى : (ولا يحل لهن أن يكتمن ....) كښې تير شويدې -(٣)

د باب ترلاندې امام بخاری رحمه الله دوه روايتونه نقل كړيدی ، ړومبی روايت كښې " تربت يمينك " او بل روايت كښې " عقری حلقی " استعمال شويدې -

دويم روايت كښې دی " لغة قريش " يعنی عقری او حلقی د قريشو لغت دې ، علامه عينی رحمه الله ليكی : أی هذه اللفظ أعنی عقری حلقی لغة قريش يطلقونها ولا يريدون حقيقتها (٤)

## ٩٤= بَاب مَا جَاءَ فِي زَعَمُوا

[٥٨٠٦] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ أَنَّ أَبَا مُرَّةَ مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ أَخْبَرَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أُمَّ هَانِئٍ بِنْتَ أَبِي طَالِبٍ تَقُولُ ذَهَبْتُ إِلَى

---

١) فتح البارى : ١٠\٦٧٣ ، عمدة القارى : ٢٢\١٩٠ ، ارشاد السارى : ١٣\١٦٧ )
٢) النهاية لابن الاثير : ٣\٢٧ - ٢٧٢ ، مجمع بحار الانوار : ٣\٦٤٠ - ٦٣٩ )
٣) كشف البارى ، كتاب الطلاق : ٥٧٢ - ٥٧٣ )
٤) ٨٧ الف ) عمدة القارى : ٢٢\١٩١

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَنْ هَذِهِ فَقُلْتُ أَنَا أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالَ مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ قَامَ فَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَلَمَّا انْصَرَفَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ زَعَمَ ابْنُ أُمِّي أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا قَدْ أَجَرْتُهُ فُلَانُ بْنُ هُبَيْرَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ قَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ وَذَاكَ ضُحًى [ر:٢٧٥]

**د ترجمة الباب مقصد :** دې ترجمة الباب سره شايد امام بخارى رحمه الله دې روايت ته اشاره كول غواړى چه كوم ابوداود او امام احمد د ابوقلابه په طريق سره نقل كړيدې ، چه هغې كښې " د زعموا " په باره كښې ويلې شويدى چه بئس مطية الرجل (١) يعنى دا د سړى خرابه سورلى ده -

په اصل كښې چه يو سړې كله دروغ ويل غواړى او ددې ذمه دارى هم په خپل سر اخستل نه غواړى ، يا داسې خبره ويل غواړى چه د هغې حقيقت ده ته پوره علم نه وى نو داسې صورت كښې دې خبره پوره خپل ځانته منسوب كولو په ځائې وايى " د خلقو خيال دې " د حديث شريف مطلب دا دې چه دا كلمه د دروغو خوږولو او د عام كولو يو ذريعه ده چه څنګه سورلى د فاصله قطع كولو دپاره ذريعه وى - سړې چه كله پياده تلل نه غواړى نو په سوارلئ سور شى ، داسې كه سړې دروغ ويل غواړى او ددې ذمه دارى په خپل سر نه اخلى نو " زعموا " اووائى او دروغ خواره كړى امام بخارى رحمه الله دباب لاندې داسې څه حديث نه دې نقل كړې چه هغې كښې د زعموا ويلو نه منع راغلې وى ، بلكه د حضرت ام هانى حديث ئې نقل كړيدې چه هغې كښې دوى د " زعم ابن امى " الفاظ استعمال كړيدى ، مقصد او حاصل دا دې چه د دروغو دپاره د دې لفظ استعمالول صحيح نه دى ، خو كه دا غرض نه وى نو بيا ددې لفظ استعمال جائز دې ، لكه چه مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله په " فيض البارى " كښې فرمائى:

" وفيه الحديث : بئس مطية الرجل : زعموا " فإن الإنسان إذا أراد أن يتكلم بأمر يعلم أنه كذب يصدره بتلك الكلمة ، ويقول : زعم الناس كذلك ، كأنه لا يحمله على نفسه ، ويعزوه إلى الناس احترازا عن صريح الكذب و الزور ، فالمعنى : أن تلك الكلمة آلة لإشاعة الزور ، كما أن المطية آلة لقطع السفر ، فإذا أراد الرجل أن لا يمشى على أقدامه ، ركب راحلته ، و ذهب كذلك إذا أراد أن يتكلم بالكذب و لايحمله على نفسه ، قال : زعموا ، فأجرى الكذب بين الناس ، والمصنف لم يخرج الحديث فى النهى عنه ، بل أخرج حديثا فيه : أن أم هانئ تكلمت بها ، قالت : زعم ابن أمى ..... و الحاصل : أن النهى فى موضعه و الإباحة فى موضعها ، ولا كلية فى مثل هذه الأبواب ..... " (٢)

---

(١) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى الرجل يقول : زعموا : ٤ \ ٢٩٤ (رقم الحديث : ٧٢٩٤ ) و أحمد فى مسنده : ٤ \ ١١٩ - ١١٥ \ ٤٠١ )

(٢) فيض البارى : ٤ \ ٣٩٧ ، ٣٩٨ )

۲ حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله په " الابواب و التراجم كښې ليكى چه امام بخارى رحمه الله اصل كښې د لفظ د " زعم د استعمال جواز ته اشاره كول غواړى ، د ابوداود د روايت نه د دې عدم جواز معلوميږى ، امام حديث د باب ذكر كړو او د دې جواز ته ئې اشاره اوكړه چه مطلقا د دې استعمال ممنوع نه دې ، بلكه چه كله دا د دروغو ويلو دپاره ذريعه جوړه كړې شى نو بيا ممنوع دې - (۱)

## ۹۵=بَاب مَا جَاءَ فِي قَوْلِ الرَّجُلِ وَيْلَكَ

[۵۸۰۷] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً فَقَالَ ارْكَبْهَا قَالَ إِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا قَالَ إِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ [ر:۱۶۰۵]

[۵۸۰۸] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً فَقَالَ لَهُ ارْكَبْهَا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ أَوْ فِي الثَّالِثَةِ [ر:۱۶۰۴]

ړومبې روايت د حضرت انس او دويم د حضرت ابوهريره دې ، دواړو كښې يو واقعه ده ، رسول الله ﷺ يو سړې اوليدلو چه د قربانۍ اوښان ئې شړل او روان وو ، حضور ﷺ اوفرمائل : په دې سور شه ، ده اوويل : اے د الله رسوله دا د قربانۍ اوښان دى ، دوى دوه ځله يا درې ځله اوويل : اركبها ويلك ، كمبخته په دې سور شه -

[۵۸۰۹] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَأَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ وَكَانَ مَعَهُ غُلَامٌ لَهُ أَسْوَدُ يُقَالُ لَهُ أَنْجَشَةُ يَحْدُو فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْحَكَ يَا أَنْجَشَةُ رُوَيْدَكَ بِالْقَوَارِيرِ [ر:۵۷۹۷]

[۵۸۱۰] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَثْنَى رَجُلٌ عَلَى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَيْلَكَ قَطَعْتَ عُنُقَ أَخِيكَ ثَلَاثًا مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَادِحًا لَا مَحَالَةَ فَلْيَقُلْ أَحْسِبُ فُلَانًا وَاللَّهُ حَسِيبُهُ وَلَا أُزَكِّي عَلَى اللَّهِ أَحَدًا إِنْ كَانَ يَعْلَمُ [ر:۲۵۱۹]

د حضرت ابوبكره نه روايت دې چه يو سړى د رسول الله ﷺ وړاندې د چا تعريف اوكړو نو دوى ﷺ اوفرمائل : ويلك : تا د خپل رور څټ پريكړو ، درې ځله ئې دا جمله اوويله ، بيا ئې اوفرمائل : تاسو كښې چه كوم د چا تعريف كوى نو داسې دې وائى " څما دا ګمان دې او الله ئې نګهبان دې دالله وړاندې څه د چا تزكيه نه كوم " كه تعريف كوونكې ده لره پيژنى -

**د لفظ د ويل استعمال** : تربت يداك ، عقرى ، حلقى په شان يو لفظ " ويلك " هم استعماليږى ،

---

۱) الابواب و التراجم : ۲ / ۱۱۸)

ويل " په معنى د هلاكت دي ، بعضو مفسرينو ليكلي دي چه " ويل " د جهنم د يو خاڼي نوم دی (١) دا لفظ هم عربى ژبه كښې د لغوى معنى په اعتبار سره نه بلكه د تعجب وغيره دپاره استعماليږى لكه چه احاديث د باب كښې استعمال شويدي ، دا مقصد په وړاندينې ترجمة الباب سره حاصليږى خو دې سره امام بخارى رحمه الله په دې باندې مستقل باب قائم كړيدې ، د دې يو وجه خو دا كيدې شى چه دا لفظ د وړاندينى الفاظو په مقابله كښې په معنوى اعتبار سره زيات سخت دې (٢)

او دويمه وجه دا كيدې شى چه د لفظ د " ويل " په ممانعت باندې يو حديث د حضرت عائشه نه مروى دى چه كوم خرائطى نقل كړيدې چه دوى ته رسول الله ﷺ اوفرمائل : " لاتجزعي من الويح ، فإنه كلمة رحمة ، ولكن اجزعي من الويل " (٣) يعنى لفظ د " ويح " نه مه يريږه ځكه چه دا د رحمت كلمه ده ، خو د لفظ د " ويل " نه يريدل پكار دى -

حافظ ابن حجر فرمائي چه امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب سره شايد د دې حديث ضعف ته اشاره كوى - (٤)

د دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله نه احاديث ذكر كړيدى ، چه دا ټول وړاندې تير شويدى او دې ټولو كښې لفظ د " ويل " استعمال شويدې يا د " ويحك " استعمال شويدې ، ويح او ويل دواړه په يو معنى دى (٥)

بعضو په كښې فرق كړيدې چه ويل كلمه د هلاكت ده او ويح كلمه د رحمت ده ، علامه عينى او حافظ ابن حجر فرمائى " وأكثر أهل اللغة على أن ويل كلمة العذاب ، وويح كلمة رحمة " (٦)

[٥٨١١] حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ وَالضَّحَّاكِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ ذَاتَ يَوْمٍ قِسْمًا فَقَالَ ذُو الْخُوَيْصِرَةِ رَجُلٌ مِنْ بَنِي تَمِيمٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ اعْدِلْ قَالَ وَيْلَكَ مَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ أَعْدِلْ فَقَالَ عُمَرُ ائْذَنْ لِي فَلْأَضْرِبْ عُنُقَهُ قَالَ لَا إِنَّ لَهُ أَصْحَابًا يَحْقِرُ أَحَدُكُمْ صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَصِيَامَهُ مَعَ صِيَامِهِمْ يَمْرُقُونَ مِنْ الدِّينِ كَمُرُوقِ السَّهْمِ مِنْ الرَّمِيَّةِ يُنْظَرُ إِلَى نَصْلِهِ فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ إِلَى رِصَافِهِ فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ إِلَى نَضِيِّهِ فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ إِلَى قُذَذِهِ فَلَا يُوجَدُ فِيهِ شَيْءٌ قَدْ سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ يَخْرُجُونَ عَلَى حِينِ فُرْقَةٍ مِنْ النَّاسِ آيَتُهُمْ رَجُلٌ إِحْدَى يَدَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ أَوْ مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ

---

(١) الجامع لاحكام القرآن : ١٩\٢٥٠ )

(٢) الابواب و التراجم : ٢\١١٨ )

(٣) فتح البارى : ١٠\٦٧٧ ، ارشاد السارى : ١٣\١٧١ )

(٤) فتح البارى : ١٠\٦٧٧ )

(٥) فتح البارى : ١٠\٦٧٧ ، عمدة القارى : ٢٢\١٩١ ، ارشاد السارى : ١٣\١٧١ )

(٦) فتح البارى : ١٠\٦٧٧ ، عمدة القارى : ٢٢\١٩١ )

أَشْهَدُ لَسَمِعْتُهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَشْهَدُ أَنِّي كُنْتُ مَعَ عَلِيٍّ حِينَ قَاتَلَهُمْ فَالْتُمِسَ فِي الْقَتْلَى فَأُتِيَ بِهِ عَلَى النَّعْتِ الَّذِي نَعَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٣٣٤٣]

حضرت ابوسعيد خذرى ﷺ روايت كوى ، دوي بيان كړيدي چه يو ځل رسول الله ﷺ مال غنيمت تقسيمولو چه دوالخويصره چه د بنو تميم يو كس وو ، وې ويل : اے د الله رسوله ! په انصاف تقسيم كوه ، نو دوى اوفرمائل : كمبخته ، چه څه عدل نه كوم نو بيا به څوك عدل كوى ، حضرت عمر ﷺ عرض اوكړو ( اے د الله رسوله ) اجازت راكړه چه د ده څټ پريكړم ، دوى ﷺ اوفرمائل : نه ( داسې اونكړې ) ځكه چه د ده ملګرو كښې به څه ملګرى داسې وى چه تاسو كښې به يو كس د دوى د مونځونو او د روژو په مقابله كښې خپل مونځ او روژې سپكې او حقير ګڼړى ، حال دا دې چه دې به د دين نه داسې بهر شوې وى لكه چه څنګه غشې د ګمان نه بهر كيږى ، نه خو به د غشى په ملا څه نخه وى ، او نه به د دې تر لاندې څه نخه وى او نه به د دې په وزرو څه نخه باقى پاتې وى ، دا اوخى صفا د ګند او د وينې نه ، دا خلق به مسلمانانو كښې د تفرقې په وخت كښې رابنكاره شى ، د دوى نخه به داسې وى چه دوى كښې به يو كس وى چه د هغه لاس به داسې وى لكه د ښځې سينه يا لكه چه د غوښې يو ټوټه وى چه حركت كوى ( د حضرت ابو سعيد بيان دې چه ) څه ګواهى وركوم چه ما دا د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دي ، او ( ددې هم ) ګواهې وركوم چه څه د حضرت على سره د دغه جنګ په وخت موجود ووم ، دا سرې په مقتولينو كښې تلاش كړې شو نو دې هم داسې ملاو شو چه څنګه رسول الله ﷺ فرمائلې وو -

د دې حديث څو الفاظ اوګورئ : رِصاف : دا د رَصَفَة جمع ده وهى عصبة تلوى فوق مدخل النصل : د غشې د پَل د داخلولو په ځائې ترلې شوې پله ، نصل : اوسپنې ته وائى ، په غشى كښې چه كومه اوسپنه وى هغې تهوائى ، نَضِيّ ( د نون په فتحه او د ضاد په كسره او د ياء په تشديد سره ) د غشى لرګى ته وائى ، وهو القدح أى عود السهم- قُذَذ ( د قاف په ضمه سره او د ذال په فتحه سره ) دا د قُذَّة ( د قاف په ضمه او د ذال په تشديد سره ) جمع ده ، وهو ريش السهم: د غشى وزرو ته وائى - بَضْعة ( د باء په فتحه او د ضاد په سكون سره ) د غوښې يو ټوټه ، تَدَرْدر : حركت كول - (١)

**قوله:** سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ: يعنى دا غشې د ګندګئ او د وينې نه بالكل صفا اوخى ....

يخرجون على حين فرقة من الناس : دوى به د خلقو د افتراق او د انتشار په زمانه كښې خروج كوى ، لكه چه د خوارجو د حضرت على او د حضرت معاويه ﷺ د اختلاف په زمانه كښې خروج اوشو -

[٥٨١٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَبُو الْحَسَنِ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ

---

(١) عمدة القارى : ٢٢\١٩٣ ، ارشاد السارى : ١٣\١٧٢ )

شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلَكْتُ قَالَ وَيْحَكَ قَالَ وَقَعْتُ عَلَى أَهْلِي فِي رَمَضَانَ قَالَ أَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ مَا أَجِدُهَا قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ فَأَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ مَا أَجِدُ فَأُتِيَ بِعَرَقٍ فَقَالَ خُذْهُ فَتَصَدَّقْ بِهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعَلَى غَيْرِ أَهْلِي فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا بَيْنَ طُنُبَيِ الْمَدِينَةِ أَحْوَجُ مِنِّي فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ قَالَ خُذْهُ تَابَعَهُ يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَيْلَكَ [ر: ۱۸۳۴]

د حضرت ابوهريره نه روايت دې چه يو سړى د رسول الله ﷺ خدمت ته حاضر شو او عرض ئې اوكړو چه اے د الله رسوله څه خو هلاك شوم ، نو دوى ﷺ اوفرمائل : هلاك شې ( څه اوشو ) وې ويل : څه واقع شوم په خپل كور والا په رمضان كښې ، نو وې فرمائل : غلام ازاد كړه ، ده اوويل : ما سره غلام نشته دې، دوى اوفرمائل ، بيا دوه مياشتې متواتر روژې اونيسه ،ده اوويل : څه ددې طاقت نه لرم ، وې فرمائل : شپيتو مسكينانو ته خوراك وركړه ، ده اوويل : ما سره نشته دې ، نو يو عرق ( يو پيمانه يا يو تيلئ ) راوړې شوه ( چه ديكښې كجورې وې ) دوى اوفرمائل : دا يو څه او صدقه كړه ، ده اوويل : اے د الله رسوله آيا د خپل كور والا نه علاوه نورو ته ( ئې وركړم ) ؟ قسم دې د هغه ذات چه د هغه په قبضه كښې څما ځان دې - په مدينه كښې څما نه زيات محتاج نشته دې، نورسول الله ﷺ اوخندل تردې چه د دوى اړخونو غاښونه (داړې) ښكاره شوې ،او وې فرمائل : ته دا يو څه -

عرَق ( د عين او د راء په فتحه سره ) ګوتئ ته وائى ، طُنُبَي المدينة : د مدينې منورې دواړه اړخونه .... طُنُب ( د طاء او د نون په ضمه سره ) نه طرف او اړخ مراد دې ، علامه قسطلانى فرمائى طنب واحد أطناب : الخيمة فاستعاره للطرف وللناحية (١)

او علامه كرمانى فرمائى : شبه المدينة بفسطاط مضروب ، وحرتاها بالطنبين يعنى طُنُب د خيمې يا د تنبو تړلو رسئ ته وائى ، د مدينې منورې د دواړو طرفونو دپاره د دې لفظ استعمال په طور د استعاره دې ، د مدينې منورې د خيمې سره او د دې د دواړو طرفونو د خيمو د رسو سره تشبيه وركړې شوه - (٢)

**قوله: تابعه يونس عن الزهري وقال عبد الرحمن بن خالد عن الزهري : ويلك:** د يونس متابعت بيهقى موصولا نقل كړيدې (٣) او د عبدالرحمن په روايت كښې د " ويحك " په ځائې " ويلك " دې ، دا تعليق امام طحاوى موصولا نقل كړيدې - (٤)

---

١) ارشاد السارى : ١٣ \ ١٧٣ )
٢) شرح الكرمانى : ٢٢ \ ٣٢ )
٣) فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٨ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٩٤ )
٤) فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٨ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٩٤ )

[٥٨٤٣] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو الْأَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ شِهَابٍ الزُّهْرِيُّ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ أَعْرَابِيًّا قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَ وَيْحَكَ إِنَّ شَأْنَ الْهِجْرَةِ شَدِيدٌ فَهَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَهَلْ تُؤَدِّي صَدَقَتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاعْمَلْ مِنْ وَرَاءِ الْبِحَارِ فَإِنَّ اللّٰهَ لَنْ يَتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا [ر: ١٣٨٤]

حضرت ابوسعيد خدری ﷺ فرمائی چه يو باندیچی رسول الله ﷺ ته اوويل : اے د الله رسوله ما ته د هجرت په باره کښې خبر راکړه ، دوی ﷺ اوفرمائل : هلاك شې د هجرت معامله خو ډیره سخته ده ، آيا د ستا سره اوښ شته ؟ ده اوويل : هو ۔ دوی ﷺ اوفرمائل : آيا ته د دوی زکات ورکوې ؟ نو ده اوويل : هو ، دوی اوفرمائل : نو ته بيا د کلو دې اړخ کښې (خپل کورکښې اوسيږه ) عمل کوه ، الله تعالى به د ستا په عمل کښې کمې نه کوی۔

وراء البحار : دا د بحرة جمع ده، کلی ته وائی، شارحين ليکی : وهی القرية سميت بحرة لاتساعها (١)

قوله: لن يترك : أي لن ينقصك : دوتريتر<u>ة</u> معنى کمول دی - (٢) قرآن کريم کښې دی ( ولن يتركم أعمالكم ) (٣)

[٥٨٤٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ سَمِعْتُ أَبِي عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَيْلَكُمْ أَوْ وَيْحَكُمْ قَالَ شُعْبَةُ شَكَّ هُوَ لَا تَرْجِعُوا بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ وَقَالَ النَّضْرُ عَنْ شُعْبَةَ وَيْحَكُمْ وَقَالَ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ وَيْلَكُمْ أَوْ وَيْحَكُمْ [ر: ٢١٥٥]

**د حديث د باب مختلف توجيهات** : رسول الله ﷺ فرمائی : لاترجعوا بعدی کفارا يضرب بعضكم رقاب بعض يعنی خما نه پس کافر مه جوړیږئ چه تاسو کښې بعض د بعضو څټونه وهل شروع کړې -

د يو بل څټونه پريکول او قتل کول لويه ګناه ده او مرتکب د کبيرې فاسق خو کيږی خو کافر نه ګرځی ، دلته ئې " لاترجعوا بعدى كفارا " اوويلې چه دينه معلوميږی چه ضرب رقاب کفر دې ، نو ددې مختلف توجيهات شويدی :

① دا حکم د مستحل په حق کښې دې ، يعنی چه کوم د مسلمانانو سره قتال شرعًا حلال او جائز ګڼړی -

② د کفر نه اصطلاحی کفر نه دې مراد بلکه کفران نعمت مراد دې يعنی تاسو خما نه پس د نعمت د اسلام ناشکری مه کوئ چه خپل مينځ کښې قتال شروع کړئ -

---

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٩ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ١٩٥ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٧٤ )

(٢) عمدة القارى : ٢٢ \ ١٩٥ ، فتح البارى : ١٠ \ ٦٧٩ )

(٣) سورة محمد : ٣٥ )

③ علامه خطابى فرمائى چه دلته د كفار نه مسلح كيدل مراد دى ، دا د تكفر بالسلاح نه دې ، چه د هغې معنى د اسلحې اچولو ده - (١)

④ دينه فعل د كفارو مراد دې ، تاسو مه كافران كيږئ يعنى د كافرانو والا فعل مه اختياروئ ، علامه طيبى په شرح د مشكاة كښې دا توجيه اظهر ګرځولې ده - (٢)
قاضى عياض هم دا توجيه غوره كړيده - (٣)

دا حديث په كتاب المغازى كښې باب حجة الوداع كښې تير شويدې - يضرب بعضكم كښې يضرب مجزوم هم كيدې شى په وجه د جواب د نهى او د استيناف په وجه مرفوع هم كيدې شى - (٤)

[٥٨١٥] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَتَى السَّاعَةُ قَائِمَةٌ قَالَ وَيْلَكَ وَمَا أَعْدَدْتَ لَهَا قَالَ مَا أَعْدَدْتُ لَهَا إِلَّا أَنِّي أُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ قَالَ إِنَّكَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ فَقُلْنَا وَنَحْنُ كَذَلِكَ قَالَ نَعَمْ فَفَرِحْنَا يَوْمَئِذٍ فَرَحًا شَدِيدًا فَمَرَّ غُلَامٌ لِلْمُغِيرَةِ وَكَانَ مِنْ أَقْرَانِي فَقَالَ إِنْ أُخِّرَ هَذَا فَلَنْ يُدْرِكَهُ الْهَرَمُ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ وَاخْتَصَرَهُ شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ أَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٣٤٨٥]

حضرت انس فرمائى چه په بانډيچيانو كښې يو سړې د رسول الله ﷺ خدمت ته راغلو ، او تپوس ئې اوكړو ، اے د الله رسوله ! قيامت به كله وى ؟ دوى ﷺ اوفرمائل : هلاك شې ، تا دې دپاره څه تيارى كړيده ؟ ده اوويل : نور خو مې څه تيارى نه ده كړې خو څما د الله تعالى او د ده د رسول سره محبت " دې...... نو دوى ﷺ اوفرمائل ( په آخرت كښې به ) ته د هغه چا سره ئې چه د چا سره محبت كوې ، په دې مونږ عرض اوكړو چه آيا مونږ به هم داسې يو ، دوى اوفرمائل : ، هو ، په دغه ورځ مونږ ډير خوشحاله شو .... ديكښې د مغيره يو غلام تير شو چه څما همځولې وو ، دوى اوفرمائل : كه دې ژوندې پاتې شو نو د ده د بوډا توب نه به وړاندې قيامت راشى-

**د حديث د باب دوه مطلبونه : إن أُخِّر هذا ، فلن يدركه الهرم حتى تقوم الساعة**

په بعض روايتونو كښې دى " لئن عُمِّر.... " دې (٥) يعنى كه دې هلك ته ژوند ملاو شو نو په ده به لا بوډاتوب نه وى راغلې چه قيامت به قائم شى ، د دې دوه مطلبه بيان شويدى

① دا ارشاد په حقيقى معنى محمول نه دې ، بلكه دينه د قيامت قرب مبالغة خودل

---

(١) شرح الطيبى ، كتاب القصاص ، باب قتل أهل الردة ..... : ١٠٢/٧ )
(٢) شرح الطيبى ، كتاب القصاص ، باب قتل أهل الردة ..... : ١٠٢/٧ (رقم الحديث : ٣٥٣٧ )
(٣) شرح الطيبى ، كتاب القصاص ، باب قتل أهل الردة ..... : ١٠٢/٧ )
(٤) شرح الطيبى ، كتاب القصاص ، باب قتل أهل الردة ..... : ١٠٢/٧ )
(٥) فتح البارى : ٦٨١/١٠ )

مقصود دی چه قیامت خو ددې ماشوم د بوډاتوب نه هم مخکښې راتلونکې دې - ([1])

② دا ارشاد په خپله حقیقی معنی محمول دې او دا د مخاطبینو په اعتبار سره ویلې شویدې او مطلب دا دې چه د دې هلك د بوډا توب نه به وړاندې وړاندې د ستاسو د ټولو قیامت راشی ، "الساعة" نه مراد مرګ دې یعنې د ستاسو ټولو به مرګ راشی ، او چه کله مرګ راغلو نو د ستاسو قیامت هم راغلو - ([2]) یو روایت کښې دې من مات فقد قامت قیامته ، یعنی چه کوم سړې مړ شو نو د هغه قیامت قائم شو - ([3])

مسلم شریف کښې د حضرت عائشه یو روایت نه ددې مکمل وضاحت کیږی دیکښې دی "كان الأعراب إذا قدموا على النبي صلى الله عليه و سلم ، سألوه عن الساعة : متى الساعة ؟ فينظر إلى أحدث إنسان منهم سنا ، فيقول : من يعش هذا حتى يدركه الهرم ، قامت عليكم ساعتكم" ([4])

یعنی د بانډو خلق به د رسول الله ﷺ خدمت ته راتلل او د قیامت په باره کښې به ئې تپوس کولو چه قیامت به کله قائمیږی ؟ رسول الله ﷺ به دوی کښې د ټولو نه کم عمر ته اوکتل او اوبه ئې فرمائل : که دې ژوندې پاتې شو نو د ده بوډا توب ته د رسیدو نه وړاندې وړاندې به د ستاسو قیامت قائم شی ـ

قاضی عیاض رحمه الله د مسلم شریف ددې روایت په باره کښې فرمائی :

" وهذه الرواية رواية واضحة يفسر بها كل ما ورد من الألفاظ المشكلة في غيرها " ([5]) یعنی دا روایت داسې واضح دې چه ددې په نورو طرق کښې کوم مشکل الفاظ دی د هغې تفسیر او تشریح کیږی چه د کوم هلك روایت په باب کښې ذکر دې ، د ده نوم په بعض روایتونو کښې محمد او په بعضو کښې سعد راغلې دې ([6])

مولانا انور شاه کشمیری رحمه الله په " فیض الباری " کښې د صدر شیرازی په حواله سره لیکی : " إن الساعة ساعة صغرى ، و هي بموته ، و ساعة وسطى و هي بموت أقرانه ، و ساعة كبرى ، و هي من نفخ الصور و المراد ههنا الصغرى أو الوسطى ، و المعنى مالكم و للساعة الكبرى وإن ساعتكم التي آتية عليكم هي بموت أقرانكم ، ويؤيده ما عند البخاري : (ص ٩٦٣ ، طبع الهند) في كتاب الرقاق ، باب سكرات الموت : لا يدركه الهرم حتى تقوم عليكم ساعتكم ، قال هشام : يعني موتهم ، ففيه بيان أن المراد من الساعة الساعة الوسطى " ([7])

---

[1]) فتح الباری : ١٠ \ ٦٨١ ، عمدة القاری : ٢٢ \ ١٩٦ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ١٧٦ )

[2]) فتح الباری : ١٠ \ ٦٨١ )

[3]) ١١١ كشف الخفاء و مزيل الإلباس : ٢ \ ٢٧٩ ( رقم الحديث : ٢٦١٨ ) إتحاف السادة المتقين : " باب بيان حقيقة الصبر و معناه " : ٩ \ ١١ )

[4]) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الفتن ، باب قرب الساعة : ٢ \ ٤٠٦ )......

[5]) فتح الباری : ١٠ \ ٦٨١ ، ارشاد الساری : ١٣ \ ١٧٦ )

[6]) فتح الباری : ١٠ \ ٦٨٠ ، عمدة القاری : ٢٢ \ ١٩٦ )

[7]) فیض الباری : ٤ \ ٣٩٩ - ٣٩٨ )

يعني د قيامت دري قسمونه دي يو قيامت صغرى ، دا د انسان په مرګ سره راځي ، دويم قيامت وسطى دا د همځولو په مرګ سره واقع کيږي ، دريم قيامت کبرى ، د دې ابتداء د نفخ د صور نه به وي ، دلته حديث کښې د قيامت نه مراد يا قيامت صغرى دې يا قيامت وسطى دې ، د حديث مطلب دا دې چه ته د قيامت کبرى تپوس ولې کوې ، د ستا قيامت خو به هله واقع شي چه کله د ستا د همځولو مرګ واقع شي د دې تائيد د صحيح بخارى د دې آيت نه هم کيږي چه کوم امام په باب د سکرات الموت کښې ذکر کړيدې، هلته" لايدرکه الموت حتى تقوم عليکم ساعتکم " کښې د "ساعة" تشريح هشام په مرګ سره کړيده -

## ٩٦=بَاب عَلَامَةِ الْحُبِّ فِي اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ

لِقَوْلِهِ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ [آل عمران:٣١]

[٥٨١٦\٥٨١٧] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ

[٥٨١٧] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَقُولُ فِي رَجُلٍ أَحَبَّ قَوْمًا وَلَمْ يَلْحَقْ بِهِمْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ تَابَعَهُ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ وَسُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ وَأَبُو عَوَانَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[٥٨١٨] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قِيلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يُحِبُّ الْقَوْمَ وَلَمَّا يَلْحَقْ بِهِمْ قَالَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ تَابَعَهُ أَبُو مُعَاوِيَةَ وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ

[٥٨١٩] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا أَبِي عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَتَى السَّاعَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ مَا أَعْدَدْتَ لَهَا قَالَ مَا أَعْدَدْتُ لَهَا مِنْ كَثِيرِ صَلَاةٍ وَلَا صَوْمٍ وَلَا صَدَقَةٍ وَلَكِنِّي أُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ قَالَ أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ [ر:٣٤٨٥]

ترجمة الباب کښې د حب درې صورتونه کيدې شي ، د الله تعالى د خلقو سره محبت ، د خلقو د الله تعالى سره محبت او د الله تعالى دپاره د يو بل سره محبت -

---

(١) ٥٨١٧) الحديث أخرجه مسلم في كتاب البر و الصلة و الآداب ، باب المرء مع من أحب : ٤ \ ٢٠٣٤ ( رقم الحديث : ٢٦٤٠ ) و أخرجه الترمذى في كتاب الزهد ، باب ما جاء أن المرء مع من أحب : ٤ \ ٥٩٦ ( رقم الحديث : ٢٣٨٧ )

علامه كرماني دا درې احتماله ذكر كړيدي - (¹) باب كښې دننه د البرء مع من أحب والا روايت ذكر كړيدې - ، آيت كريمه ( قل إن كنتم تحبون الله ....... ) نه وړاندې دوه صورتونه معلوميږي خوچه كوم روايت ئې ذكر كړيدې ، نو دينه معلوميږي چه دلته دويم صورت يعني د بنده د الله تعالى سره محبت مراد دې -

**د ايت او د روايت په مينځ كښې مناسبت** : حافظ ابن حجر فرمائي چه دې صورت كښې د آيت او د روايت په مينځ كښې مناسبت فهم ته راځي ځكه چه د آيت نه معلوميږي چه د الله سره محبت بغير د اتباع د رسول نه نه حاصليږي ، او د حديث نه معلوميږي چه اګر چه اتباع د رسول د رسول الله ﷺ د سنتو د تابعدارئ نوم دې ، خو بيا هم دې دپاره په زړه كښې دننه د رسول محبت ساتل ضروري دي ، نو هله به معيت حاصل شي ، يو سړې په خپله د تمامو اعمالو پابندي نه شي كولې خو چه د عاملانو سره محبت ساتي نو دا د ده د نجات دپاره كافي دې ځكه د عاملانو سره محبت هم دې د دوی د اتباع او د اطاعت په وجه كوی او د محبت تعلق د زړه سره وی نو د نيكانو خلقو سره په دې محبت به هم ده ته الله تعالى اجر وركړي ، ځكه چه اصل څيز خو نيت دې ، عمل خو ددې تابع دې لكه چه دې ليكي : "فدلت الآية أنها لا تحصل إلا باتباع الرسول، و دل الخبر على أن اتباع الرسول، وإن كان الأصل أنه لا يحصل إلا بإمتثال جميع ما أمر به أنه قد يحصل من طريق التفضل بإعتقاد ذلك، و من لم يحصل استيفاء العمل بمقتضاه، بل محبة من يعمل ذلك كافية في حصول أصل النجاة، و الكون مع العاملين بذلك، لأن محبتهم إنما هي لأجل طاعتهم، و المحبة من أعمال القلوب، فأثاب الله محبهم على معتقده، إذ النية هي الأصل، و العمل تابع لها" (²)

حديث باب كښې دی چه يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر شو او تپوس ئې اوكړو ، اے د الله رسوله ! يو سړې د يو قوم سره محبت خو كوی خو ( په علم او فضل او عمل كښې ) د دوی برابری نه شي كولې ، رسول الله ﷺ اوفرمائل سړې چه د چا سره محبت كوی ( په آخرت كښې ) به هم د هغه سره وی -

دا سړې حضرت ابوذر يا حضرت ابوموسى اشعري وو - (³)

**قوله**: تابعه جرير بن حازم.......: برنې روايت د جرير بن عبد الحميد نه دې ، د دوی متابعت جرير بن حازم سليمان بن قرم ( د قاف په فتحه او د راء په سكون سره ) او ابوعوانه وضاح كړيدې ، د جرير متابعت ابونعيم، د سليمان متابعت امام مسلم او د ابوعوانه متابعت يعقوب په خپل صحيح كښې موصولاً نقل كړيدی ، (⁴)

---

¹) شرح الكرماني : ٢٢\ ٣٤ )

²) فتح الباري : ١٠\ ٦٨٣ )

³) ارشاد الساري : ١٣\ ١٧٨ ، فتح الباري : ١٠\ ٢٨٥ )

⁴) فتح الباري : ١٠\ ٦٨٣ ، عمدة القاري : ٢٢\ ١٩٧ ، ارشاد الساري : ١٣\ ١٧٨ ).

خو دوى كښې عبدالله غير منسوب دې ، يعنى د ده د پلار ذكر نشته دې ، رومبې روايت كښې د " عبد الله بن مسعود " تصريح ده ، حافظ ابن حجر ليكى چه كومو روايتونو كښې صرف عبدالله دې د بعض حضراتو په نزد دا " عبد الله بن قيس " دې يعنى حضرت ابو موسى اشعرى مراد دې ، ځكه چه دا روايت د حضرت ابو موسى اشعرى نه هم روايت دې ، لكه دينه پس روستنې حديث دې - (۱)

**قوله: تابعه أبومعاوية ومحمد بن عبيد:** د سفيان متابعت ابومعاويه محمد بن خازم ( په خاء سره ) او محمد بن عبيد كړيدې ، امام مسلم رحمه الله دا موصولاً نقل كړيدې - (۲)

## ۹۷- بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ لِلرَّجُلِ اخْسَأْ

[۵۸۲۰] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ سَمِعْتُ أَبَا رَجَاءٍ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِابْنِ صَائِدٍ قَدْ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا فَمَا هُوَ قَالَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَأْ

[۵۸۲۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ انْطَلَقَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَهْطٍ مِنْ أَصْحَابِهِ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتَّى وَجَدَهُ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ فِي أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ وَقَدْ قَارَبَ ابْنُ صَيَّادٍ يَوْمَئِذٍ الْحُلُمَ فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى ضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ فَنَظَرَ إِلَيْهِ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الْأُمِّيِّينَ ثُمَّ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ فَرَضَّهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ آمَنْتُ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ثُمَّ قَالَ لِابْنِ صَيَّادٍ مَاذَا تَرَى قَالَ يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُلِطَ عَلَيْكَ الْأَمْرُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا قَالَ هُوَ الدُّخُّ قَالَ اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ قَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتَأْذَنُ لِي فِيهِ أَضْرِبْ عُنُقَهُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ يَكُنْ هُوَ لَا تُسَلَّطُ عَلَيْهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ هُوَ فَلَا خَيْرَ لَكَ فِي قَتْلِهِ قَالَ سَالِمٌ فَسَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ يَقُولُ انْطَلَقَ بَعْدَ ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْصَارِيُّ يَؤُمَّانِ النَّخْلَ الَّتِي فِيهَا ابْنُ صَيَّادٍ حَتَّى إِذَا دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ وَهُوَ يَخْتِلُ أَنْ يَسْمَعَ مِنْ ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلَى فِرَاشِهِ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا رَمْرَمَةٌ أَوْ زَمْزَمَةٌ فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ فَقَالَتْ لِابْنِ

(۱) فتح البارى : ۱۰ \ ۶۷۴ )
(۲) عمدة القارى : ۲۲ \ ۱۹۸ )

صَيَّادٍ أَيْ صَافِ وَهُوَ اسْمُهُ هَذَا مُحَمَّدٌ فَتَنَاهَى ابْنُ صَيَّادٍ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ قَالَ سَالِمٌ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ إِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ لَقَدْ أَنْذَرَهُ نُوحٌ قَوْمَهُ وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ خَسَأْتُ الْكَلْبَ بَعَّدْتُهُ خَاسِئِينَ مُبْعَدِينَ [ر: ١٢٨٩]

دحضرت عبد الله بن عمر نه روايت دې ، دوی بيان کړيدې چه د حضرت عمر بن خطاب د رسول الله ﷺ سره سره د څو اصحابو ابن صياد ته روان شو ، د بنی مغاله د محلې د هلکانو سره ئې دې په لوبو اوليدلو ، دغه وخت دې د بلوغ عمر ته نزدې وو ، ده ته د دوی ﷺ د تشريف راوړو علم او نه شو ، تر دې چه رسول الله ﷺ د ده په شا باندې خپل لاس اووهلو ، بيا ئې اوفرمائل : آيا ته ګواهي ورکوې چه څه د الله تعالى رسول يم ؟ ده دوی طرف ته اوکتل او وې ويل : څه ګواهي ورکوم چه ته د أميانو رسول ئې ، بيا ابن صياد اوويل : ته ګواهي ورکوې چه څه د الله تعالى رسول يم ؟ نبي اکرم ﷺ ده ته ديکه ورکړه - بيا ئې اوفرمائل : ما په الله او د ده په رسولانو ايمان راوړې دې ، بيا ئې د ابن صياد نه تپوس اوکړو : د ستا ( د خپل ځان ) څه خيال دې ؟ نو ده أوويل ما ته رښتونې او دروغژن دواړه قسم سړی راځی ، دوی اوفرمائل : د ستا معامله مشتبه شوه ، ( بيا ) رسول الله ﷺ اوفرمائل : ما د ستا دپاره يو خبره په زړه کښې پټه ساتلې ده ، ده اوويل : دا "دخ" ده ، دوی اوفرمائل : دفع شه ته به کله هم د خپلې مرتبې نه واونړې ، حضرت عمر عرض اوکړو : آيا تاسو اجازت راکوئ چه څه د ده څټ پريکړم ؟ دوی ﷺ اوفرمائل : کُه دا هم هغه کس ( يعنی دجال ) دې نو ته به په ده قابو بيا نه مومې ، او کُه دې هغه کس نه وی نو دده په قتل کولو کښې تا ته څه فائده نشته دې ، د سالم بيان دې چه عبد الله بن عمر بيان کولو او ما واوريدل چه دينه پس رسول الله ﷺ او ابي بن کعب انصاری د هغې باغ په قصد روان شو ، چه کوم ځائې ابن صياد وو ، تر دې چه کله رسول الله ﷺ باغ ته ننوتلو نو د اونو نه پناه پناه تللو او مقصد ئې دا وو چه د ابن صياد څه خبرې واوری وړاندې د دينه چه دې ده لره اووينی ، دغه وخت ابن صياد په خپله بستره کښې په يو څادر کښې پروت وو چه ديکښې ده څه ګنګوسې کولو ، د ابن صياد مور نبی کريم ﷺ اوليدلو چه د اونو په پناه پناه تشريف راوړی ، دې ابن صياد ته اوويل : اے صاف ( دا دده نوم وو ) دا محمد (ﷺ) را روان دې ، نو ابن صياد ګنګوسې بند کړو ، رسول الله ﷺ اوفرمائل : کُه دې ده لره پريخودې وې نو اصل حقيقت به واضح شوې وو ، د سالم بيان دې چه عبد الله اوويل : رسول الله ﷺ خلقو کښې اودريدو او د الله ئې هغه تعريف بيان کړو چه د هغې دې حقدار دې ، بيا ئې د دجال ذکر اوکړو او وې فرمائل : چه څه تاسو د ده نه يروم او يو نبي هم داسې نه دې تير شوې چه هغه خپل قوم د ده نه نه وی يرولې ، نوح عليه السلام خپل قوم د ده نه يرولې دې ، خو څه تاسو ته يو داسې خبره ښائم چه هيڅ يو نبی خپل قوم ته نه ده خودلې ، تاسو پوهه شئ چه دې به کانړه (چغوت) وی او الله تعالى کانړه نه دې -

اخسأ عربي ژبه کښې د سپي د شړلو او د دفع کولو دپاره په اصل کښې استعماليږي خو بيا د دې استعمال عام شو او د هر هغه کس دپاره چه کوم څه ذليل حرکت يا نامناسب خبره يا کار اوکړي استعماليدل شروع شو ، (١) قرآن کريم کښې د جهنميانو په باره کښې دي چه دوی ته به اوويلې شي ( اخسئوا فيها ولا تكلمون)(٢)

د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه کوم کس ددې جُملې اهل دې هغه دپاره د دې استعمالول جائز دي لکه چه احاديث د باب کښې رسول الله ﷺ د " ابن صياد " دپاره دا کلمه استعمال کړيده - (٣)

**قوله: ابن صياد:** احاديث د باب کښې د ابن صياد ذکر دې ، دې د مدينې منورې يو يهودې کورنۍ کښې پيدا شوې وو ، د دجال چه کوم صفات دی په ديکښې ډير صفات په ده کښې موجود وو ، حضرت عبد الله بن عمر او حضرت جابر خو په قسم به ويلې چه هم ابن صياد دجال دې (٤) او بعض روايتونو کښې دی چه دې مسلمان مړ شويدې - (٥)

رسول الله ﷺ ده ته تشريف راوړې او په زړه کښې ئې دننه د سورة دخان آيت (يوم تأتي السماء بدخان مبين ) پټ کړو ، ابن صياد ته ئې اوويل : " خبأت لك خبيئًا " يعنی ما د ستا دپاره يو خبره پټه کړيده ته اووايه هغه کومه خبره ده ؟ ده اوويل " دخ" پوره " دخان " ئې اونه ويلې ، کاهن هم دارنګه نيمه خبره ښائی ، دوی ﷺ اوفرمائل : اخسأ، فلن تعدو قدرك ، دفع شه ، ته به کله هم د خپل مرتبې او حيثيت نه وړاندې کيدې نه شې ، يعنی دا شيطانی القاء ده او دا هم دارنګه ناقص وی -

**قوله: وهو يختل أن يسمع من ابن صياد........:** يعنی رسول الله ﷺ د غفلت په حالت کښې ده نه څه اوريدل غوښتل ، دې وجه نه ئې حيله کوله ، **قطيفة** : څادر او کمبل ته وائی - رَمرَمَة او زمزمَة د دواړو يو معنی ده ، غلی اواز او ګنګوسو ته وائی -

**أي صاف:** أي حرف نداء او صاف د ده نوم وو - (٦)

روايت په باب د جنائز کښې په تفصيل تير شويدې - (٧)

---

١) فتح الباری : ١٠\٦٨٧ ، ارشاد الساری : ١٣\١٨٠ ، عمدة القاری : ٢٢\١٩٨ ، شرح صحيح البخاری لابن بطال : ٩\٣٣٣ ) ،

٢) سورة المؤمنون : ١٠٨ )

٣) فتح الباری : ١٠\٦٨٧ عمدة القاری : ٢٢\١٩٨ ، ارشاد الساری : ١٣\١٨٠)

٤) ارشاد الساری : ١٣\١٨٢\١٣ - ١٨٣ )

٥) عمدة القاری : ٢٢\١٩٩ ، شرح ابن بطال : ٩\٣٣٦ - ٣٣٥ )

٦) عمدة القاری : ٢٢\١٩٩ )

٧) صحيح البخاری ، باب إذا أسلم الصبی فمات هل يصلی عليه و هل يعرض عليه الإسلام : ( رقم الحديث : ١٣٥٤ )

**قوله**: قال أبوعبدالله : خسأت الكلب : بعدته، خاسئين : مبعدين : امام بخاری رحمه الله فرمائی : د خسأت الکلب معنی ده ، ما سپی اوشړلو ، سورة اعراف آیت کښې دی ( قلنا لهم کونوا قردة خاسئین )[1] دیکښې د خاسئین معنی مبعدین دې یعنی د الله تعالیٰ د رحمت نه لرې کړې شئ -

## ٩٨= بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ مَرْحَبًا

وَقَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامِ مَرْحَبًا بِابْنَتِي [ر:٣٤٢٦]
وَقَالَتْ أُمُّ هَانِئٍ جِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ [ر:٣٥٠]
[٥٨٢٢] حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا أَبُو التَّيَّاحِ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَرْحَبًا بِالْوَفْدِ الَّذِينَ جَاءُوا غَيْرَ خَزَايَا وَلَا نَدَامَى فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا حَيٌّ مِنْ رَبِيعَةَ وَبَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مُضَرُ وَإِنَّا لَا نَصِلُ إِلَيْكَ إِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ فَمُرْنَا بِأَمْرٍ فَصْلٍ نَدْخُلُ بِهِ الْجَنَّةَ وَنَدْعُو بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا فَقَالَ أَرْبَعٌ وَأَرْبَعٌ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَصُومُوا رَمَضَانَ وَأَعْطُوا خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَلَا تَشْرَبُوا فِي الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالنَّقِيرِ وَالْمُزَفَّتِ [ر:٥٣]

د حضرت ابن عباس نه روایت دې ، دوی بیان کوی چه کله د عبد القیس وفد نبی کریم ﷺ خدمت ته حاضر شو ، نو دوی اوفرمائل مرحبا هغه وفد ته چه راغلو ، دوی دې رسوا او شرمسار نه وی ، دې خلقو عرض اوکړو ، اے د الله رسوله مونږ د قبیلې د ربیعه سره تعلق لرو او خمونږ او د ستاسو مینځ کښې مضر دی ، نو دې وجه نه مونږ د ستاسو په خدمت کښې صرف په اشهر د حرم کښې حاضریدې شو ، دې وجه نه مونږ ته یو داسې جدا شوې امر اوښائې چه مونږ په دې عمل اوکړو او جنت ته داخل شو او د خپل ځان نه روستو پاتې کیدونکو ته د دې دعوت ورکړو ، دوی اوفرمائل : څلور او څلور خبرې دی ( یعنی څلور خبرې د کولو او د څلورو خبرو نه بندیدل دی ) مونځ قائم کړئ ، زکات ورکړئ ، د رمضان روژې اونیسئ ، د غنیمت د مال پنځمه حصه ورکړئ ، او په دباء ، حنتم ، نقیر او مزفت کښې څکل مه کوئ ( د دې لوښو تفصیل په کتاب الایمان کښې تیر شویدې )

**د ترجمة الباب مقصد** : په هره ژبه کښې د استقبال دپاره څه مخصوص کلمات وی په دې کلماتو سره په وخت د راتلو د میلمه استقبال کیږی ، لکه چه په فارسئ کښې " خوش آمدید " دې دارنګه په عربئ کښې " مرحبا " دې او " اهلاً و سهلاً " دې ، د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د دارنګه کلماتو استعمال د رسول الله ﷺ نه ثابت دې ، مرحبا " مفعول به یا مفعول مطلق کیدو په وجه منصوب دې (۲) ،

---

[1] ) ۱۲۹ سورة الاعراف : ۱۶۶ )
[2] ) عمدة القاری : ۲۲ \ ۲۰۰ ، الابواب و التراجم : ۲ \ ۱۱۸ ، فتح الباری : ۱۰ \ ۶۸۸)

اصمعي ددې معنى بيان کړيده ألقيت رحها وسعة(١) يعنى ته دې فراختيا اووسعت بيا مومې د باب رومبې روايت كتاب المناقب، باب علامات النبوة في الإسلام، دويم روايت كتاب الصلوة، باب الصلوة في الثوب الواحد ملتحفا به او دريم روايت كتاب الإيمان باب أداء الخمس من الإيمان کښې تير شويدې -

## ٩٩=بَاب مَا يُدْعَى النَّاسُ بِآبَائِهِمْ

[٥٨٢٣\٥٨٢٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْغَادِرَ يُرْفَعُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُقَالُ هَذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ [ر:٣٠٢٦]

[٥٨٢٤] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ عَنْ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ هَذِهِ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ

" مايدعى کښې "ما" مصدريه موصول حرفى دې او " يدعى " ددې صله ده ، دواړه ملاو شو د " دعا" مصدر په معنى کښې شو ، او " الناس " مفعول به دې او فاعل ئې محذوف دې أى باب دعاء الداعى الناس بأسمائهم آبائهم يوم القيامة(٢)

مقصد دا دې چه د قيامت په ورځ به هر کس ته د ده د پلار په نوم سره " فلان بن فلان " ويلې کيږى او اواز به ورته ورکړې کيږى -

روايت د باب کښې دى ، رسول الله ﷺ اوفرمائل چه دهوکه کوونکې دپاره به د قيامت بيرغ (جنډا ) اوچته کړې شى او دا به اوويلې شى دا د فلانى د ځوى د فلانى دهوکه ده -

شارح د بخارى ابن بطال رحمه الله فرمائى چه په زمانه د جاهليت کښې به وعده خلافى کوونکې دپاره يو جنډا په ورځو د حج کښې اوچته کړې شوه چه دا د فلان ابن فلان د وعده خلافئ جنډا ده - په جنډې سره چه د يو څيز شهرت ډير زيات کيږى دې وجه نه دا به غوره کيدلو ←(٣)

بهر حال د امام بخارى رحمه الله مقصود دا دې چه د قيامت په ورځ به پلار ته نسبت اوشى او آواز به اوشى ، سنن ابي داود کښې د حضرت ابو الدرداء ﷺ يو مرفوع روايت نقل دې ديکښې دى " إنكم تدعون يوم القيامة بأسمائكم و أسماء آبائكم، فأحسنوا أسمائكم "(٤) ( د قيامت په ورځ به تاسو په خپلو او د خپلو پلارانو په نومونو رابللې کيږئ ، دې وجه نه خپل ښائسته

---

١) عمدة القارى : ٢٢\٢٠٠ ، الابواب و التراجم : ٢\١١٨ ، فتح البارى : ١٠\٦٨٨)

٢) ارشاد السارى : ١٣\١٨٣ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٠١)

٣) عمدة القارى : ٢٢\٢٠١)

٤) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى تغيير الأسماء : ٢\٣٢٠)

نومونه كيږدئ) دا حديث د امام بخارى رحمه الله په مقصد كښې بالكل صريح دې خو چه د بخارى په شرط نه دى دې وجه نه دلته ئې ذكر نه كړو -
د قيامت په ورځ به پلار ته نسبت كيږى او اواز به ورته كيږى ، حافظ ابن حجر فرمائى :
وهو يقتضي حمل الآباء على من كان ينسب إليه في الدنيا لا على من هو في نفس الأمر، وهو المعتمد" (١)
يعنى دنيا كښې چه د ده كوم سړى ته د خوې كيدو په حيثيت نسبت كيږى قيامت كښې به هم ده ته په دغه نسبت اواز كيږى ، په نفس الامر او په حقيقت كښې د ده خوې دې او كه نه ؟ ديته به نه كتلې كيږى
دينه معلومه شوه چه شريعت كښې په ظاهر امر عمل كيږى - (٢)

## ١٠٠=بَاب لَا يَقُلْ خَبُثَتْ نَفْسِي

[٥٨٢٥] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِي وَلَكِنْ لِيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِي

[٥٨٢٦] حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِي وَلَكِنْ لِيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِي تَابَعَهُ عُقَيْلٌ

حديث شريف كښې د " خبثت نفسى " ويلو نه منع راغلې ده ، دروغو ، خرابى ، بدى او بدكردارئ ته خباثت او ددې كوونكې ته خبيث ويلې كيږى ، كه د چا په مزاج كښې څه خرابى راشى يا ده نه څه بد كار اوشى نو حديث كښې د دې يو طريقه خودلې شويده چه په داسې موقع به " خبثت نفسى " نه وائى بلكه لقست " وائى ، د دې هم هغه معنى ده خو د " خبثت " معنى زياته شنيع ده ، ابن بطال فرمايى حديث كښې نهى د وجوب دپاره نه ده - (٤)
ډير كرته دوه لفظونه د يو معنى دپاره استعماليږى خو يو شناعت د بل په مقابله كښې زيات وى ، مثلاً كه ته چا ته " بې وقوف " اووائې نو هغه به دومره نه محسوسوى چه څومره به دې محسوسوى چه كله ده ته " خر " اوويلې شى ، حال دادې چه دده په حق كښې بې وقوف او خر په يو معنى كښې مستعمل دې - (٥)

---

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٢٨٩ )
(٢) عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٠١ ، فتح البارى : ١٠ \ ٢٨٩ )
(٣) ٥٨٢٥ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الأدب و باب كراهة قول الإنسان : خبثت نفسى : ٤ \ ١٧٦٥ ( رقم الحديث : ٢٢٥٠ ) و أخرجه النسائى فى كتاب عمل اليوم و الليلة ، باب النهى أن يقول : خبثت نفسى : ١٦ \ ٢٦٠ ( رقم الحديث : ١٠٨٨٨ )
(٤) شرح ابن بطال : ٩ \ ٣٣٦ )
(٥) فيض البارى : ٤ \ ٣٩٩ )

د باب په آخر كښې د عقيل متابعت طبراني موصولاً نقل كړيدې - (١)

## ١٠١=بَاب لَا تَسُبُّوا الدَّهْرَ

[٥٨٢٧\٥٨٢٨](٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ قَالَ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُ يَسُبُّ بَنُو آدَمَ الدَّهْرَ وَأَنَا الدَّهْرُ بِيَدِي اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ

[٥٨٢٨] حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُسَمُّوا الْعِنَبَ الْكَرْمَ وَلَا تَقُولُوا خَيْبَةَ الدَّهْرِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الدَّهْرُ [ر:٤٥٤٩]

**زمانې ته بد ويل نه دي پكار** : زمانې ته بد رد ويل د بعضو خلقو عادت جوړ شوې وى ، وائى ، زمانه ډيره خرابه ده ، زمانه منحوس ده ، په حديث كښې زمانې ته بد رد ويلو نه منع راغلې ده، الله فرمائى : **أناالدهر**..... دلته مضاف محذوف دې أى **أنا مصرّف الدهر يا أنا مقلّب الدهر يا أنا خالق الدهر**(٣) يعنى زمانې ته كنځل مه كوئ ځكه چه زمانه كښې څومره انقلابات ، تبديلئ او حوادث او واقعات راپيښيږى ، دا د الله تعالى په حكم او په مرضئ سره كيږى ، لكه چه د مسند احمد يو روايت كښې حضرت ابوهريره نه نقل دى "**لا تسبوا الدهر، فإن الله تعالى قال: أنا الدهر، الأيام و الليالى لى أجددها، و أبليها، آتى بملوك بعد ملوك**" (٤) ( يعنى زمانې ته كنځل مه كوئ ځكه چه الله تعالى فرمائى هم څه په زمانه كښې تصرف كوونكې يم ، د شپې او ورځ بدليدل ځما په قدرت كښې دى ، هم څه دا نوى كوم او زړوم ، او هم څه باچايان بدلوم - )

امام بخارى رحمه الله چه كوم روايت ذكر كړيدې ، ديكښې اګر چه صراحتًا د سبّ دهر نه منع نه ده شوې ، بيا هم د مسلم په روايت كښې د "لا تسبوا" تصريح شته دې - (٥)

په حقيقت كښې په دې حديث كښې په دهريانو باندې رد دې ځكه چه دوى د هر كار او واقعې نسبت زمانې ته كوى -

---

١) فيض البارى : ١٠\٦٩٠ ، ارشاد السارى : ١٣\١٨٦ )

٢) ٥٨٢٧ ) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الألفاظ من الأدب و غيرها و باب النهى من سب الدهر : ٤\١٧٦٢ ( رقم الحديث : ٢٢٤٦ ) و أخرجه النسائى فى كتاب التفسير ، باب قوله تعالى : " و قالوا ما هى إلا حياتنا الدنيا نموت و نحى و ما يُهلكنا إلا الدهر ( سورة الجاثية ) : ٦\٤٥٧ ( رقم الحديث : ١١٤٨٦ ) و أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى الرجل يسب الدهر : ٤\٣٦٩ ( رقم الحديث : ٥٢٧٤ )

٣) عمدة القارى : ٢٢\٢٠ ، ارشاد السارى : ١٣\١٨٧ )

٤) الحديث أخرجه أحمد فى مسنده : ٢\٤٩٦ )

٥) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الألفاظ ، باب النهى عن سب الدهر : ٢\٢٣٧ )

زمانې لره خالق د واقعاتو كنټرول او د واقعاتو او د حوادثو ديته نسبت كول خو بالاتفاق كفر ، باطل او حرام دې خو كه څوك ئې خالق نه ګنړې بلكه زمانې ته ددې حوادثو څكه نسبت كوى چه زمانه ددې ظرف ده نو داسې نسبت كول حرام نه دى خو مكروه دى - (۱)

**قوله: لا تسموا العنب الكرم، ولا تقولوا: خيبة الدهر:** انګورو ته ګرموائى ، دوى د " ګرم " ويلو نه منع اوكړه ، خيبة الدهر منصوب على الندبه دې - (۲)

مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله په فيض البارى كښې ليكلې دى چه شيخ اكبر فرمائى " دهر" په اسماء حسنى كښې دې، امام رازى رحمه الله ليكلې دى چه دوى ته بعض مشائخو د يا دهر، يا ديهار، ياد يهورو ظيفه وركړې ده - (۳) دينه معلوميږى چه دا د دوى په نزد د الله په نومونو كښې دې، خو قاضى عياض رحمه الله دده ترديد كړيدې ، او ويلې دى چه دا غلطه ده، دهر يو طويل مدې ته وائى - دا په نومونو د الله تعالى كښې شميرل صحيح نه دى - (۴)

## ۱۰۲=باب قول النبي صلى الله عليه وسلم إنما الكرم قلب المؤمن

وَقَدْ قَالَ إِنَّمَا الْمُفْلِسُ الَّذِي يُفْلِسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَقَوْلِهِ إِنَّمَا الصُّرَعَةُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ [ر: ۵۷۶۳]

كَقَوْلِهِ لَا مُلْكَ إِلَّا لِلَّهِ فَوَصَفَهُ بِانْتِهَاءِ الْمُلْكِ ثُمَّ ذَكَرَ الْمُلُوكَ أَيْضًا فَقَالَ إِنَّ الْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا [النمل: ۳۴]

[۵۸۳۹] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَقُولُونَ الْكَرْمُ إِنَّمَا الْكَرْمُ قَلْبُ الْمُؤْمِنِ [ر: ۵۸۲۹]

ګرم د كاف په فتحه او راء په سكون او فتحه دواړو سره مصدر دې او د كريم په معنى كښې دې ، انګورو ته به په زمانه د جاهليت كښې ګرم ويلې كيدلو ، څكه چه دينه به شراب جوړيدل ، او د دوى خيال وو چه شراب د مكارم اخلاق .... د سخاوت او د بهادرئ وغيره سبب دې - (۵)

حضور اكرم ﷺ ددې پس منظر د وجه نه انګورو ته د كرم ويلو نه منع اوكړه، او وې فرمائل: ګرم خو د مؤمن زړه دې حديث كښې دى "إنما الكرم..." د "إنما" استعمال شويدې چه

---

(۱) فتح البارى : ۱۰\۶۹۲ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۸۷)

(۲) ارشاد السارى : ۱۳\۱۸۷ ، فتح البارى : ۱۰\۶۹۲، عمدة القارى : ۲۲\۲۰۳)

(۳) فيض البارى : ۴\۳۹۹)

(۴) فتح البارى : ۱۰\۶۹۲)

(۵) عمدة القارى : ۲۲\۲۰۳ ، فتح البارى : ۱۰\۶۹۴ ، ارشاد السارى : ۱۳\۱۸۸)

د حصر دپاره راځي ، امام بخاري رحمه الله فرمائي چه دلته دا د حصر دپاره نه دې ، دا مطلب نه دې چه د قلب د مؤمن نه علاوه په بل څيز د " كرم " اطلاق نه شي كيدې بلكه مقصد دا دې چه " قلب د مؤمن " د كرم ويلو زيات حقدار دې -

امام بخاري رحمه الله ددې نور مثالونه هم پيش كړيدى مثلاً حديث كښې دى " إنما المفلس الذى يُفلس يوم القيامة "..... پوره حديث امام ترمذى رحمه الله نقل كړيدې ، د دې الفاظ دى:

" أتدرون من المفلس ، قالوا : المفلس فينا يا رسول الله ، من لا درهم له ولا متاع ، قال رسول الله صلى الله عليه و سلم : المفلس من أمتى من يأتى يوم القيامة بصلاة ، وصيام ، و زكاة ، ويأتى قد شتم هذا ، و سفك دم هذا ، وضرب هذا ، فيقتص هذا من حسناته ، وهذا من حسناته ، فإن فنيت حسناته ، أخذ من خطاياهم ، فطرح عليه ، ثم طرح فى النار " (١)

( ... حضور ﷺ د اصحابو نه تپوس اوكړو ، تاسو ته پته شته چه مفلس څوك دې ؟ اصحابو اوويل : مفلس هغه كس دې اے د الله رسوله ! چه چا سره نه درهم وى او نه سازوسامان وى ، حضور ﷺ اوفرمائل : " ځما د امت مفلس هغه كس دې چه د قيامت په ورځ مونځ ، روژه او زكات خان سره راوړى خو يو سړې راشي چه ده ته ده په دنيا كښې كنځل كړې وى بل به راشي چه ده به د ده وينه توې كړې وى ، بل به يې وهلې وى ، دا ټول به د ده د نيكو نه خپله بدله واخلى ، چه كله د ده نيكئ ختم شي نو د دوى بدئ به د ده په عملنامه كښې واچولې شي بيا به دې په جهنم كښې واچولې شي نو دا سړې په حقيقت كښې مفلس دې - )

داسې سړې ته مفلس ويلې شويدى او په حديث كښې د " انما " لفظ استعمال شويدې خو د دې دامطلب نه دې چه دنيا كښې ديو فقيرسړى دپاره د مفلس لفظ استعمالول نه دى پكار-

دويم مثال دې " إنما الصرعة الذى يملك نفسه عند الغضب " ديكښې هم د " صرعة " لفظ د هر پهلوان دپاره استعماليدې شي ، خو د " انما " لفظ ئې راوړو دا ئې اوخودله چه په خپل نفس باندې قابو ساتونكې د دې لفظ زيات حقدار دې

دريم مثال دې ... لا مَلِكَ إلا الله دې يعنى حقيقى بادشاه صرف الله دې ، بعض نسخو كښې دى " لامُلْكَ إلا الله چه اصل او حقيقى حكومت او بادشاهت خو صرف د الله دپاره دې ، بيا هم د نياوى حكمرانو دپاره هم دا استعماليږى ، لكه چه خپله قرآن كريم د سورة نمل آيت ( إن الملوك إذا دخلوا قرية ..... ) كښې د دنياوى حاكمانو دپاره د ملوك لفظ استعمال كړيدې -

بهر حال حاصل دا دې چه د كرم لفظ ويلو زيات حقدار د مؤمن زړه دې ، ځكه چه ديكښې د ايمان رڼړا ، د اسلام تقوى او د الله ياد پروت وى - (٢)

---

(١) الحديث أخرجه الترمذى فى أبواب صفة القيامة ، باب ما جاء فى شأن الحساب ، القصاص : ٢\٦٨ )

(٢) فتح البارى : ١٠\٦٩٤ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٠٣ و ارشاد السارى : ١٣\١٨٨ )

## ١٠٣= بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي

فِيهِ الزُّبَيْرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر: ٣٥١٥]

[٥٨٣٠] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سُفْيَانَ حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفَدِّي أَحَدًا غَيْرَ سَعْدٍ سَمِعْتُهُ يَقُولُ ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي أَظُنُّهُ يَوْمَ أُحُدٍ [ر: ٢٧٤٩]

خما موريلار دې په تا قربان وی ... " دا جمله که د چا دپاره استعمال کړې شی نو جائز ده ، حضرت حسن بصری وغیره نه ددې کراهت منقول دې خو جمهور دا مطلقا جائز وایی (١) ځکه چه رسول الله ﷺ په اصحابو حضراتو کښې د دوه سړو دپاره دا جمله استعمال کړېده . یو د حضرت زبیر بن العوام دپاره او بل د حضرت سعد بن ابی وقاص دپاره -

روایت د باب کښې حضرت علی فرمائی چه ما د حضرت سعد بن ابی وقاص نه علاوه بل چا دپاره نه دي اوریدلې چه ده ته رسول الله ﷺ "فداك أبي وأمي" ویلې وی -

دا حضرت علی د خپل علم او د سماع مطابق اوویلې ، ګنی حضور ﷺ دحضرت زبیر بن العوام دپاره هم دا جمله استعمال کړیده - (٢)

حدیث دباب په کتاب المغازی ، باب ﴿إذ همت طائفتان منكم أن تفشلا ...﴾ او کتاب الجهاد ، باب المجن ومن يتترس بترس صاحبه کښې تیر شویدې -

## ١٠٤= بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاكَ

وَقَالَ أَبُو بَكْرٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا [ر: ٣٦٩١]

[٥٨٣١] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ فَلَمَّا كَانُوا بِبَعْضِ الطَّرِيقِ عَثَرَتِ النَّاقَةُ فَصُرِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمَرْأَةُ وَأَنَّ أَبَا طَلْحَةَ قَالَ أَحْسِبُ اقْتَحَمَ عَنْ بَعِيرِهِ فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاكَ هَلْ أَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَلَكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْأَةِ فَأَلْقَى أَبُو طَلْحَةَ ثَوْبَهُ عَلَى وَجْهِهِ فَقَصَدَ قَصْدَهَا فَأَلْقَى ثَوْبَهُ عَلَيْهَا فَقَامَتِ الْمَرْأَةُ فَشَدَّ لَهُمَا عَلَى رَاحِلَتِهِمَا فَرَكِبَا فَسَارُوا حَتَّى إِذَا كَانُوا بِظَهْرِ الْمَدِينَةِ أَوْ قَالَ أَشْرَفُوا عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ فَلَمْ يَزَلْ يَقُولُهَا حَتَّى دَخَلَ الْمَدِينَةَ [ر: ٢٩١٩]

---

(١) الابواب و التراجم : ١٢ \ ١١٩ ، تعليقات لامع الدرارى : ١٠ \ ٣٧ )

(٢) [illegible] : ١٣ \ ١٩٠ )

د حضرت انس نه روايت دې چه دې او ابوطلحه د رسول الله ﷺ سره مدينې ته راغلل ، د حضور سره حضرت صفيه وه چه دوى ﷺ دا خپل ځان پسې په سوارلئ سوره کړې وه ، په لاره کښې په يو ځائې کښې د اوښې پښه اوخويدله نو نبى كريم ﷺ او حضرت صفيه دواړه راپريوتل ، ابو طلحه د خپلې سوارلئ نه راكوز شو او رسول الله ﷺ ته راغلو او تپوس ئې اوکړو : اے د الله رسوله ! الله دې ما په تا قربان كړى آيا تا ته څه تكليف در اورسيدو ، نو حضور ﷺ اوفرمائل : نه خو د ښځې ( حضرت صفيه ) خبر واخله ، نو ابوطلحه خپله يو جامه په خپل مخ واچوله او حضرت صفيه ته ئې د تلو قصد اوكړو او ده خپله جامه د دې په مخ واچوله ، نو دا اودريدله ، ابو طلحه دواړو دپاره كجاوه اوتړله او صحيح ئې كړه ، نو دا دواړه سواره شو او روان شو ، چه كله مدينې منورې ته نزدې شو نو د رسول الله ﷺ په ژبه مباركه دا الفاظ جارى شو آئبون تائبون ، عابدون ، لربنا حامدون ( مونږ واپس كيدونكې يو ، توبه كوونكې يو ، عبادت كوونكې يو د خپل رب حمد بيانوونكې يو ) دوى ﷺ مسلسل دا كلمات ويلې تر دې چه مدينې ته داخل شو -

**قوله: قال : أحسب اقتحم عن بعيره:** حضرت انس ﷺ فرمائى چه څما خيال دې ابوطلحه د خپل اوښ نه راټوپ كړو ، د اقتحام معنى د راټوپ كولو ده -

**د ترجمة الباب مقصد** :د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه كُه يو سړې د خپل مشر ، يا د يو استاذ او مربى يا د يو محبوب دوست دپاره دا جمله استعمال چه " الله دې ما په تا قربان كړى " نو دا جائز ده -

امام بخارى رحمه الله شايد د دې روايت تضعيف ته اشاره كول غواړى چه كوم مبارك بن فضاله د حضرت حسن بصرى نه نقل كړيده چه حضرت زبير بن العوام ﷺ د رسول الله ﷺ بيمار پرسئ دپاره راغلو ، دوى بيمار وو نو دوى چه راننوتل نو وې ويل : "كيف تجدك -- جعلنى الله فداك -- ( د ستاسو طبيعت څنګه دې الله دې ما په تاسو قربان كړى ) نو حضور ﷺ اوفرمائل : ماتركت أعرابيتك بعد ([1]) ( تا لا تراوسه خپل باندیتوب پريخودې نه دې )

د دې روايت نه معلوميږى چه دا جمله استعمالول صحيح نه دى خو دا حديث د صحيح احاديثو په مقابله كښې قابل د حجت نه دې - ([2])

روايات د باب كښې حضرت صديق اكبر " فديناك بآبائنا و أمهاتنا " د حضور ﷺ دپاره استعمال كړيدې ، دارنګه حضرت ابوطلحه " جعلنى الله فداك " استعمال كړيدې ، او دوى ﷺ پرې څه بد اونه ګڼړل -

روايت د باب كتاب الجهاد ، باب مايقول إذا رجع من الغزو كښې تير شويدې -

---

[1]) الابواب و التراجم : ٢ \ ١١٩ ، فتح البارى : ١٠ \ ٦٩٦ ، ٦٩٧ ، تعليقات لامع الدرارى : ١٠ \ ٣٧ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٩١ )......

[2]) الابواب و التراجم : ٢ \ ١١٩ ،فتح البارى : ١٠ \ ٦٩٧ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ١٩١ )

# ١٠٥= بَاب أَحَبِّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ

[٥٨٣٢] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقُلْنَا لَا نَكْنِيكَ أَبَا الْقَاسِمِ وَلَا كَرَامَةَ فَأَخْبَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَمِّ ابْنَكَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ [ر:٢٩٤٦]

د بخارى په روايت كښې تصريح نشته دې خو د مسلم شريف په روايت كښې شته دې چه د الله په نزد د ټولو نه محبوب نوم عبد الله او عبدالرحمن دې - (١)

روايت د باب كښې دى چه حضرت جابر ﷺ فرمائى چه د يو سړى خوې پيدا شو ، ده ده نوم " قاسم " كيخودو نو مونږ ده ته اوويل چه مونږ به د ستا كنيت " ابو القاسم " ته اردو او نه به ( درته داسې كنيت درکړو ) د ستا اكرام كوو ، نبى كريم ﷺ ته چه خبر اوشو نو دوى ﷺ ده ته اوويل ته د خپل خوي نوم عبدالرحمن كيږده -

# ١٠٦: بَاب قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي

قَالَهُ أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٢٠١٣]

[٥٨٣٣] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقَالُوا لَا نَكْنِيهِ حَتَّى نَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي [ر:٢٩٤٦]

[٥٨٣٤] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي [ر:٣٣٤٦]

[٥٨٣٥] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقَالُوا لَا نَكْنِيكَ بِأَبِي الْقَاسِمِ وَلَا نُنْعِمُكَ عَيْنًا فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ أَسْمِ ابْنَكَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ [ر:٢٩٤٦]

**د ابو القاسم كنيت ايخودو كښې د عالمانو رائې :** د رسول الله ﷺ كنيت " ابو القاسم " وو ، په حديث دباب كښې ددې كنيت ايخودو نه منع شويده ، دې مسئله كښې مختلف اقوال دى:

① د اهل ظواهرو په نزد د " ابو القاسم " كنيت ايخودل مطلقًا ممنوع دې ، دوى د حديث د ظاهره استدلال كوى - (٢)

② " ابوالقاسم " كنيت ايخودل مكروه تنزيهى او خلاف د ادب دې ، حرام نه دې - (٣)

---

١) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الأداب ، باب النهى عن التكنى بأبى القاسم و بيان ما يستحب من الأسماء : ٢٠٦/٢ )

٢) فتح البارى : ٧٠٠/١٠ ، الابواب و التراجم : ١١٩/٢ ، عمدة القارى : ٢٠٦/٢٢ )

٣) عمدة القارى : ٢٠٦/٢٢ ، فتح البارى : ٧٠١/١٠ ، ارشاد السارى : ١٩٣/١٣ )

③ دا نهی د نبی کریم ﷺ د زماني سره خاص وه ځکه چه دغه وخت د التباس خطره وه (١) ددې تائید د حضرت انس د روایت سره هم کیږی ، چه کوم امام مسلم نقل کړیدې ، دیکښې دی "نادى رجل رجلا بالبقيع : يا أبا القاسم ، فالتفت إليه رسول الله صلى الله عليه و سلم ، فقال : يا رسول الله ، إنى لم أعنك ، إنما دعوت فلانًا ، فقال رسول الله صلى الله عليه و سلم : سموا باسمى ، و لا تكنوا بكنيتى" (٢) (.... یعني بقیع کښې یو سړی د " ابوالقاسم " اواز اوکړو او یو بل سړي نې رابللو نو حضور ﷺ ده طرفته متوجه شو ، نو ده اوویل : حضور ! تاسو نه رابلم ، فلانې کس رابلم " حضور ﷺ اوفرمائل : " تاسو ښما په نوم نوموته اړدئ خو ښما کنیت مه اړدئ..... )

د دې د ممانعت یو وجه خو دا التباس وو او دویمه وجه د مسلم شریف په روایت کښې دا راغلې ده " لاتكنوا بكنيتى ، فإنما بعثت قاسما ، أقسم بينكم " (٣) یعنی ځه د ستاسو په مینځ کښې علم او نیکی ا ومالونه د غنیمت تقسیموم ، نو ځکه ځه ابوالقاسم یم -

ړومبئ وجه خو زمانه د نبوت سره خاص وه ، خو دویمه وجه عامه ده او ددې تقاضا ده چه د " ابوالقاسم " کنیت اوس هم کینخودې شی -

قاضی بیضاوی فرمائی چه ځُه ځوك خپل کنیت " ابوالقاسم " ددې وجه نه اړدی چه دې د خیر او د نیکئ تقسیم کوونکې دې ، نو بیا خو دا اوس هم ناجائز دې خو کُه دا وجه نه وی بلکه د ده د څوی نو مقاسم دې نو بیا جائز ده - (٤)

د جمهورو عالمانو هم دا مسلك دې (٥)

③ څلورم قول دا دې چه د رسول الله ﷺ کنیت او نوم دواړه جمع کول ناجائز دی خو کُه دواړو کښې یو اختیار کړې شی نو بلاکراهته جائز دې ، حاصل دا چه مذکوره ممانعت د هغه سړی دپاره دې چه د هغه نوم " محمد " دې ، ددې قول دلیل سنن ابی داود کښې د حضرت جابر حدیث دې " من تسمى باسمى فلايكتنى بكنيتى ، ومن اكتنى بكنيتى فلايتسمى باسمى " (٦) ( چه کوم سړی ښما کنیت کیخودو نو ښما نوم دې نه اړدی او چه چا ښما نوم کیخودو نو ښما کنیت دې نه اړدی )

خو راجح مسلك د جمهورو دې ، او ددې تائید د حضرت علی روایت سره هم کیږی ،چه کوم امام ابوداود په خپل سنن کښې او امام بخاری رحمه الله په " الادب المفرد " کښې نقل کړیدې - هغه فرمائی " قلت : يا رسول الله ! إن ولد لى من بعدك ولد أسميه باسمك ، و أكنيه بكنيتك ؟

---

١) فتح البارى : ١٠\٧٠١ ، الابواب والتراجم : ٢\١١٩ ،عمدة القارى : ٢٢\٢٠٦ )
٢) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الأداب ، باب النهى عن التكنى بأبى القاسم : ٢ \٢٠٦ )
٣) الحديث أخرجه مسلم فى كتاب الأداب ، باب النهى عن التكنى بأبى القاسم : ٢ \٢٠٦)
٤) ارشاد السارى : ١٣\١٩٣ )
٥) ارشاد السارى : ١٣\١٩٣ )
٦) الحديث أخرجه ابوداود فى كتاب الأدب ، باب فيمن رأى أن لا يجمع بينهما : ٢\٣٢٢ )

قال : نعم"(١) (یعنی یارسول الله کُه خما خوې د ستا نه پس پیدا شو نو آیا خه دستا نوم او کنیت دواړه ده دپاره ایخودې شم ؟ حضور ﷺ اوفرمائل : هو .... )
د دې روایت په بعض طرُق کښې اګر چه دا اضافه هم شته " وهی لك خاصة دون الناس " خو امام طحاوی رحمه الله په " شرح معانی الآثار " کښې فرمائی چه دا اضافه ثابت نه ده - (٢)
ترجمة الباب کښې د حضرت انس چه کوم روایت ته امام اشاره کړیده ، هغه په کتاب البیوع کښې موصولاً تیر شویدې - (٣)

## ١٠٧=بَاب اسْمِ الْحَزْنِ

[٥٨٣٦، ٥٨٣٧] (٤) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ أَبَاهُ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا اسْمُكَ قَالَ حَزْنٌ قَالَ أَنْتَ سَهْلٌ قَالَ لَا أُغَيِّرُ اسْمًا سَمَّانِيهِ أَبِي قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ فَمَا زَالَتِ الْحُزُونَةُ فِينَا بَعْدُ
[٥٨٣٧] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ وَمَحْمُودٌ هُوَ ابْنُ غَيْلَانَ قَالَا حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ بِهَذَا [ر: ٥٨٤٠]

د نوم اثر وی : حَزْن ( د حاء په فتحه ا و د زاء په سکون سره ) سخت ته وائی ، دا د سهل ضد دې ، مشهور تابعی حضرت سعید بن المسیب د خپل پلار مسیب نه روایت کوی چه د دوی پلار حزن بن ابی وهب د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضر شو ، دوی ﷺ ترینه د نوم تپوس اوکړو ، نو ده اوویل " حزن " دوی اوفرمائل : ته " سهل " ئې ، وې ویل : خه هغه نوم نه بدلوم چه کوم خما پلار ایخودې دې -
حضرت سعید بن المسیب فرمایی چه د دغه وخت نه سختې خمونږ په خاندان کښې برقرار دی - د مسند احمد روایت کښې دی چه دوی اوویل :لا السهل ، یوطأ ویمتهن یعنی سهل نه خکه چه سهل هر خوك پائمال کوی او ذلیل کوی - (٥)
د رسول الله ﷺ دا فرمان په طور د مشوره وو د وجوب دپاره نه وو ، کُه د وجوب دپاره وې نو بیا ددې نه منلو خه وجه نه وه بلکه نوم به ئې په هر حال بدلولو - (٦)

---

١) الحدیث أخرجه ابوداود فی کتاب الأدب ، باب فی الرخصة فی الجمع بینهما : ٢\٣٢٣ ) والادب المفرد مع فضل الله الصمد : ٢| ٣٠٢، باب اسم النبی صلی الله علیه وسلم وکنیته_
٢) شرح معانی الآثار : کتاب الکراهة ، باب التکنی بأبی القاسم : ٢\٤٣٣ )
٣) الحدیث أخرجه البخاری فی کتاب البیوع ، باب ما ذکر فی الأسواق : ١\٢٨٥ )
٤) ٥٨٣٦ ) الحدیث أخرجه البخاری أیضا فی کتاب الأدب ، باب تحویل اسم إلی إسم أحسن منه ( رقم الحدیث : ٥٨٤٠ )
٥) الحدیث أخرجه فی کتاب الأدب ، باب فی تغییر الاسم القبیح : ٤\٢٨٩ (رقم الحدیث : ٤٩٠٦ ) فتح الباری : ١٠\٧٠٣ ، عمدة القاری : ٢٢\٢٠٨ )
٦) ارشاد الساری : ١٣\١٩٤ ، فتح الباری : ١٠\٧٠٣ )

## ١٠٨ = بَاب تَحْوِيلِ الِاسْمِ إِلَى اسْمٍ أَحْسَنَ مِنْهُ

[٥٨٣٨] (١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا أَبُو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ أُتِيَ بِالْمُنْذِرِ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ وُلِدَ فَوَضَعَهُ عَلَى فَخِذِهِ وَأَبُو أُسَيْدٍ جَالِسٌ فَلَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ بَيْنَ يَدَيْهِ فَأَمَرَ أَبُو أُسَيْدٍ بِابْنِهِ فَاحْتُمِلَ مِنْ فَخِذِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفَاقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيْنَ الصَّبِيُّ فَقَالَ أَبُو أُسَيْدٍ قَلَبْنَاهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ مَا اسْمُهُ قَالَ فُلَانٌ قَالَ وَلَكِنْ أَسْمِهِ الْمُنْذِرَ فَسَمَّاهُ يَوْمَئِذٍ الْمُنْذِرَ

[٥٨٣٩] (٢) حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ عَنْ أَبِي رَافِعٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ زَيْنَبَ كَانَ اسْمُهَا بَرَّةَ فَقِيلَ تُزَكِّي نَفْسَهَا فَسَمَّاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبَ

[٥٨٤٠] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ قَالَ جَلَسْتُ إِلَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ فَحَدَّثَنِي أَنَّ جَدَّهُ حَزْنًا قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا اسْمُكَ قَالَ اسْمِي حَزْنٌ قَالَ بَلْ أَنْتَ سَهْلٌ قَالَ مَا أَنَا بِمُغَيِّرٍ اسْمًا سَمَّانِيهِ أَبِي قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ فَمَا زَالَتْ فِينَا الْحُزُونَةُ بَعْدُ [ر: ٥٨٣٦]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی : چه دا ترجمة الباب د ابن ابی شیبه د یو روایت نه ماخود ده چه هغې کښې دی " كان النبى صلى الله عليه و سلم إذا سمع الاسم القبيح، حوّله إلى ما هو أحسن منه " (٣) رومبی روایت ذکر شویدې " إنكم تدعون يوم القيامة بأسمائكم و أسماء آبائكم، فأحسنوا أسمائكم " (٤)

امام طبری فرمائی :

" لاينبغى لأحد أن يسمى باسم قبيح المعنى، ولا باسم معناه التزكية والمدح وغيره، ولا باسم معناه الذم والسب وبل الذى ينبغى أن يسمى به كان حقا وصدقا "

یعنی داسې نوم نه دی ایخودل پکار چه د هغې معنی خرابه وی یا په هغې تزکیه او تعریف ښکاره وی ، یا چه کوم د مذمت او د کنځلو دپاره استعمالیږی ، نوم داسې کیدل پکار دی .

---

(١) ٥٨٣٨ ) الحديث أخرجه مسلم فى الآداب ، باب استحباب تحنيک المولود عند ولادته : ٣\١٦٩٢ ( رقم الحديث : ٢١٤٩ )

(٢) ٥٨٣٩ ) الحديث أخرجه مسلم فى الآداب ، باب استحباب تغيير الاسم القبيح إلى حسن : ٣\١٦٩٢ (رقم الحديث : ٢١٤١ ) و أخرجه ابن ماجه فى كتاب الأدب ، باب تغيير الأسماء : ٢\١٢٣٠ ( رقم الحديث : ٣٧٣٢)

(٣) فتح البارى: ١٠\٧٠٤ (حضور ﷺ به چه کله یو بد نوم واوریدو نو دا به ئې په ښائسته نوم بدلولو)

(٤) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب فى تغيير الأسماء : ٢\٣٢٠ )

چه حق هم وی او ربښتیا هم وی .... لکه عبدالله او عبد الرحمن -
د باب ړومبی روایت کښې دی چه منذر بن ابی اسید چه کله پیدا شو نو رسول الله ﷺ خدمت ته راوستې شو ، دوی ﷺ ده لره په خپل پتون مبارك باندې کیخودو . ابو اسید هم ورسره ناست وو ، رسول الله ﷺ د خپل خان وړاندې په یو څیز کښې مشغول شو ، ابو اسید چا ته څه اوویل او خپل خوې ئې د دوی ﷺ د پتون مبارك نه اوچت کړو . رسول الله ﷺ ( چه د خپل کار نه فارغ شو ) نو ورته خیال راغلو ، نو دوی تپوس اوکړو هغه بچې څه شو ؟ ابو اسید اوویل : هغه خو مونږ کور ته اولیږلو ، دوی ﷺ تپوس اوکړو د هغه نوم څه دې ؟ ده اوویل : فلانې نوم ئې دې ، دوی ﷺ اوفرمائل : نه بلکه د هغه نوم منذر دې ، د دغه ورځې نه د ده نوم منذر شو -

**قوله: لها النبي صلی الله علیه وسلم: لها -- لَهْوًا : مشغوله کیدل ، فاستفاق أی انقضی ما کان مشتغلا به فأفاق من ذلك** - یعنی حضور ﷺ په څه کار کښې مشغوله وو ، چه کله دینه فارغ شو نو د بچی په باره کښې ئې تپوس اوکړو (١)

**قلبناه : أی صرفنا إلی منزله** - یعنی بچې خو مونږ کورته اولیږلو - ما اسمه : څه نوم به ئې ورته خودلې وی چه دا به ښه نه وو ، دې وجه نه حضور ﷺ د ده نوم بدل کړو -
د ده نوم حضور ﷺ تفاولاً " منذر " کیخودو ، چه دې به علم ازده کړې او خلقو لره به د الله تعالی د عذاب نه یروی ، او د وعظ او د نصیحت فریضه به اداء کوی ، د قرآن کریم سورة توبه کښې دی ( **فلولا نفر من كل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين ولينذروا قومهم** )(٢)
د باب دویم روایت کښې دی چه دزینب نوم " بَرَّة " وو ، رسول الله ﷺ ددې نوم زینب کیخودو ځکه چه د " بَرَّة " کښې د خپله د خپلې نیکئ اظهار کیږی ، دبره معنی ده نیك او پاك .... د دې زینب نه یا خو ام المؤمنین حضرت زینب بنت حجش مراد ده ، صحیح مسلم او سنن ابی داود په روایت کښې د دوی نوم راغلې دې (٣)
او ابن مردویه په تفسیر د سورة حجرات کښې نقل کړیدی چه دینه هغه حضرت زینب مراد ده چه کومه د رسول الله ﷺ ربیبه وو او د حضرت ام سلمه لور وه - (٤)
صحیح مسلم ، ابوداود ، امام بخاری په " الادب المفرد " کښې نقل کړیدی چه د ام المؤمنین حضرت جویریه نوم هم " بره " وو دوی ﷺ دا نوم بدل کړو او " جویریه " ئې کیخودو ځکه چه دوی ته خوښ نه وو چه اوویلې شی چه دوی ﷺ د بره نه را اووتلو - (٥)

---

(١) فتح الباري : ١٠\٧٠٤)
(٢) سورة توبة: ١٢٢)
(٣) الحديث أخرجه مسلم فی کتاب الأداب ، باب استحباب تغيير الاسم القبيح إلی حسن : ٢\٢٠٨ ، و أبوداود فی کتاب الأدب ، باب فی تغيير الاسم القبيح : ٢\٣٢١)
(٤) ارشاد الساری : ١٣\١٩٦)
(٥) الحديث أخرجه مسلم فی کتاب الأداب ، باب استحباب تغيير الاسم القبيح ...[بقيه برصفحه آئنده....

دلته څو بابونه امام بخاری رحمه الله د نومونو په سلسله کښې ذکر کړدی ، دینه وړاندې د امام طبری په حواله سره تیر شودی چه قبیح المعنی نوم یا داسې چه د هغې نه ددې انسان تزکیه او د تقوی او دده پاکبازئ اظهار کیږی ایخودل مناسب نه دی -

**د محمد د نوم احترام ضروری دې** بعض حضرات وائی چه د " محمد " نوم ایخودل هم نه دی پکار ، خکه چه د دې نوم د ادب تقاضې پوره کول د هر یو په وس کښې نه ده ......
حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه د یو سړی نه واوریدل چه دې محمد بن یزید بن الخطاب ته وائی ، فعل الله بك یامحمد . حضرت فاروق اعظم دې راوبللو او ورته ئې اوویل : چه د ستا په وجه د رسول الله ﷺ نوم ته بد رد ویلې کیږی ، دې وجه نه دینه پس به د ستا دا نوم نه وی اوبیائې اهل کوفه ته خط اولیکلو " لاتسموا أحدا باسم النبی صلی الله علیه وسلم " (د حضور نوم دې څوك هم نه ایږدی) ملاعلی قاری رحمه الله په مرقاة شرح مشکاة کښې دا واقعه لیکلې ده - (۱)
د دې حاصل دا دې چه ددې نوم احترام او ددې ادب ملحوظ ساتل ضروری دی ، د هغه کس دپاره هم چه د چا دا نوم دې او د هغه خلقو دپاره هم چه دې په دې نوم رابللی ، دې سلسله کښې بزار د حضرت ابو رافع نه یو مرفوع حدیث هم نقل کړیدې إذا سمیتم محمدا ، فلا تضربوه ، ولا تحرموه (۲) (چه کله تاسو د چا نوم محمد کیخودو نو مه ده لره وهئ او مه ئې محروم کوئ ) او خطیب بغدادی د حضرت علی نه یو روایت رانقل کړیدې . دیکښې دی " إذا سمعتم الولد محمدا ، فأکرموه ، وأوسعوا له فی المجلس ولا تقبحوا له وجها " (۳) ( چه کله تاسو اوګورئ چه د یو ماشوم نوم محمد دې نو دده خیال اوساتئ او ده نه په مجلس کښې ځائې ورکړئ او ده ته بد رد مه وائې )

**د فرشتو د نوم ایخودو حکم** امام مالك رحمه الله د فرشتو نومونو ایخودو ته مکروه ویلې دی (۴) مثلا جبریل وغیره ... امام بخاری رحمه الله په خپل تاریخ کښې د عبد الله بن جراز نه روایت نقل کړیدې . دیکښې دی "سموا بأسماء الأنبیاء ، ولا تسموا بأسماء الملائکة " (۵)
لکه چه روایت کښې تیر شویدی چه احب الاسماء عبد الله او عبدالرحمن دی ، ملا علی قاری رحمه الله دلته د " بعد أسماء الأنبیاء " قید لګولې دې - (۶)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] إلی حسن : ۲۰۸/۱۲ ، و ابوداود فی کتاب الأدب ، باب فی تغییر الاسم القبیح : ۱۲/ ۳۲۱ ، مسند الامام أحمد بن حنبل ، مرویات ابن عباس : ۳۱۶/۱۱ ، البخاری فی الأدب المفرد مع فضل الله الصمد : ۳۹٤/۲ )

(۱) المرقاة شرح المشکاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ۱۰۶/۹ )
(۲) المرقاة شرح المشکاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ۱۰۶/۹ )
(۳) المرقاة شرح المشکاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ۱۰۶/۹ ) ...
(۴) ارشاد الساری : ۱۹۳/۱۳ )
(۵) المرقاة شرح المشکاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ۱۰۶/۹ )
(۶) المرقاة شرح المشکاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ۱۰۶/۹ )

او اصدق الاسماء حارث او همام دی (1)

ځکه چه د حارث معنی ده دهقانی کوونکې او الدنیا مزرعة الآخرة... مطابق دلته هر یو سړې حارث دې او د همام معنی د فکر مند ده ، او دلته هر یو کس فکر مند دې ، دې وجه نه دې دواړو نومونو ته اصدق الاسماء اوویلې شو -

د صحیح مسلم روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ د یسار ، رباح ، نجیح او د افلح نومونو نه منع کړیده ، د حدیث الفاظ دی "لا تسمین غلامك یسارا ، ولا رباحا ، لا نجیحا ، لا أفلح ، فإنك تقول: أثم هو؟ فیقول: لا" (2) یعنی د خپل څوی نوم یسار ، رباح ، نجیح او افلح مه اږده ځکه ډیر کرته به ته دا نوم واخلې او تپوس به اوکړې هغه دغلته شته ؟ نو هغه به درته په جواب کښې وائی : نه -

خو جمهور عالمان وائی دا نهي تنزیهی ده او دارنګه نومونه ایخودل ناجائز نه دی (3)
ځکه چه په خپله د رسول الله ﷺ د یو غلام نوم رباح او د یو ازاد کړی غلام نوم یسار وو ، حضرت ابن عمر د خپل یو ازاد کړې غلام نوم " نافع کیخودو چه روستو مشهور محدث جوړ شو - (4)

د دې تائید په صحیح مسلم کښې د حضرت جابر روایت نه هم کیږی دیکښې دی "أراد النبی صلی الله علیه و سلم أن ینهی عن أن یسمی بیعلی ، وببركة ، وبأفلح ، وبیسار ، وبنافع ، ونحو ذلك ، ثم رأیته سكت بعد عنها ، ثم قبض ولم ینه عن ذلك" (5) یعنی رسول الله ﷺ اراده اوکړه چه د یعلی ، برکت ، افلح ، یسار ، نافع وغیره نومونو ایخودو نه منع اوکړی خو بیا ما اوکتل چه دوی ﷺ خاموش شو ، د دوی ﷺ وفات اوشو خو دوی دینه څوك منع نه کړل -

حاصل دا چه قبیح نوم ایخودل هم صحیح نه دی او داسې نوم چه د هغې نه د تزکیه یا د بد شګون موقع ملاویږی ، دا هم مناسب نه دی ، لکه چه امام نووی رحمه الله په " شرح مسلم " کښې لیکی : " معنی هذه الأحادیث تغییر الإسم القبیح أو المكروه إلی حسن ، وقد ثبت أحادیث بتغییره صلی الله علیه وسلم أسماء جماعة كثیرین من الصحابة ، وقد بین صلی الله علیه وسلم العلة فی النوعین وما فی

---

1) المرقاة شرح المشكاة ، باب الأسامی ، الفصل الثالث : ٩\١٢٠، روی أبوداود رحمه الله فی سننه ، قال رسول الله صلی الله علیه و سلم : تسموا بأسماء الأنبیاء ، أحب الأسماء إلی الله عبد الله و عبد الرحمان و أصدقها حارث و همام و أقبحها حرب و مرة ، كتاب الأدب ، باب فی تغیر الأسماء : ٤\٢٨٨ ( رقم الحدیث : ٤٩٥٠ )

2) الحدیث أخرجه مسلم فی كتاب الأدب ،باب كراهة التسمیة بالأسماء القبیحة و بنافع و نحوه : ٢\٢٠٧)

3) المرقاة شرح المشكاة ، باب الأسامی ، الفصل الأول : ٩\١٠٧ و شرح مسلم للنووی ، كتاب الأدب ، باب كراهة التسمیة بالأسماء القبیحة : ٢\٢٠٧ )

4) زاد المعاد فصل فی موالیه صلی الله علیه و سلم : ١\١١٥ )

5) الحدیث أخرجه مسلم فی كتاب الأدب باب كراهة التسمیة بالأسماء القبیحة ، بنافع و نحوه : ٢\٢٠٧ )

معناهما، وهى: التزكية أو خوف التطير.[1]
د دې احاديثو حاصل دا دې چه قبيح او بد نومونه دې په ښو نومونو سره بدل کړې شى، رسول الله ﷺ د ډيرو خلقو نومونه بدل کړيدى لکه چه په ډيرو احاديثو کښې ثابته ده، حضور ﷺ د قبيح او د مکروه نوم د دواړو علتونه هم بيان کړيدى يعنى داسې نوم چه ديکښې تزکيه او خپله پاکدامنى واضحه کيږى يا داسې نومونه چه هغې کښې بد شګونى رااوخى۔

## ١٠٩ = بَابُ مَنْ سَمَّى بِأَسْمَاءِ الْأَنْبِيَاءِ

وَقَالَ أَنَسٌ قَبَّلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِبْرَاهِيمَ يَعْنِي ابْنَهُ [ر:١٢٤١]

[٥٨٤١] (٢) حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قُلْتُ لِابْنِ أَبِي أَوْفَى رَأَيْتَ إِبْرَاهِيمَ ابْنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَاتَ صَغِيرًا وَلَوْ قُضِيَ أَنْ يَكُونَ بَعْدَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيٌّ عَاشَ ابْنُهُ وَلَكِنْ لَا نَبِيَّ بَعْدَهُ

[٥٨٤٢] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ قَالَ لَمَّا مَاتَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ [ر:١٣١٦]

[٥٨٤٣] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي فَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ وَرَوَاهُ أَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٢٠١٣، ٢٩٤٦]

[٥٨٤٤] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا أَبُو حَصِينٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمُّوا بِاسْمِي وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي وَمَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَقَدْ رَآنِي فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَتَمَثَّلُ فِي صُورَتِي وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ [ر:١١٠]

[٥٨٤٥] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ وُلِدَ لِي غُلَامٌ فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمَّاهُ إِبْرَاهِيمَ فَحَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ وَدَفَعَهُ إِلَيَّ وَكَانَ أَكْبَرَ وَلَدِ أَبِي مُوسَى [ر:٥١٥٠]

[٥٨٤٦] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عِلَاقَةَ سَمِعْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ رَوَاهُ أَبُو بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [ر:٩٩٣، ٩٩٦]

---

[1] شرح مسلم للنووى، كتاب الأداب، باب استحباب تغيير الإسم القبيح إلى حسن ... ٢\٢٠٨)

[2] ٥٨٤١) الحديث أخرجه ابن ماجه فى كتاب الجنائز، باب ما جاء فى الصلوة على ابن رسول الله صلى الله عليه و سلم و ذكر وفاته : ١\٤٨٤ (رقم الحديث : ١٥١٠)

**د پيغمبرانو نومونه ايخودل مستحب دى :** د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دي چه د حضرات انبياء عليهم السلام په نومونو كښې يو نوم كُه چا كيخودو نو دا جائز دي بلكه بعض حضرات وائى چه د الله تعالى په نزد د حضرات انبياء نومونه د ټولو نه زيات محبوب دى(١) رسول الله ﷺ د خپل څوى نوم ابراهيم ايخودي وو - د باب په ړومبى حديث كښې دى چه د رسول الله ﷺ څوى په ماشوموالى كښې وفات شوي وو ،كه د حضور ﷺ نه پس د كوم نبى راتلو فيصله وې نو دې به ضرور ژوندې پاتې شوې وو خو دوى نه پس بل نبى نشته دي -

مسند احمد كښې د حضرت انس روايت دي "كان إبراهيم قد ملأ المهد، ولو بقي لكان نبيا، لكنه لم يكن ليبقى، فإن نبيكم آخر الأنبياء" (٢) يعنى ابراهيم باندې غيره ډكه شوه ( دا د وفات كيدو نه كنايه ده ) كُه ژوندې وې نو نبى به وو خو دې باقى پاتې نه شو ، ځكه چه د ستاسو نبى آخرى نبى دې )

ابن عبدالبر په " الاستيعاب " كښې په دې باندې تنقيد كړيدې او ويلې دى چه د نبى څوې نبى كيدل ضرورى نه ده ، د ابن عبد البر دا خبره صحيح ده خو بيا هم د رسول الله ﷺ څوى متعلق دا حديث د درې اصحابو نه روايت دې او ديكښې دا خبره على سبيل الفرض بيان شويده ، چه كُه ده نه پس څوك نبى وى نو ابراهيم ددې مستحق كيدو ! (٣)

د باب د باقى احاديثو تشريح تيره شويده -

## ١١٠=بَاب تَسْمِيَةِ الْوَلِيدِ

[٥٨٣٧] أَخْبَرَنَا أَبُو نُعَيْمٍ الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ مِنْ الرَّكْعَةِ قَالَ اللَّهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ وَسَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَعَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ بِمَكَّةَ اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا عَلَيْهِمْ سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ [ر:٩٦١]

د امام بخارى رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره د هغه حديث تضعيف ته اشاره كول دى چه كوم امام طبرانى رحمه الله د حضرت عبدالله بن مسعود نه روايت كړيدې "نهى رسول الله صلى الله عليه و سلم أن يسمى الرجل عبده أو ولده حربا أو مرة أو وليدا" (٤) دې حديث كښې د حرب . مره او د " وليد " د نوم ايخودو ممانعت راغلې دې خو دا حديث ضعيف دې - (٥)

١) عمدة القارى : ٢٢\٢٠٩ ، فتح البارى : ١٠\٧٠٧)
٢) په مسند احمد كښې د حديث الفاظ داسې دى : لو عاش كان صديقا نبيًّا ، مسند الإمام أحمد بن حنبل ، مرويات أنس بن مالك : ٣\٢٨١ ) -
٣) فتح البارى : ١٠\٧٠٨)
٤) فتح البارى : ١٠\٧١٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٠١ )
٥) فتح البارى : ١٠\٧١٠ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٠١ )

وطأة نه مراد عذاب دې ، روايت د باب كښې د وليد نوم راغلې دې او حضور په دې څه رد نه دې كړې-

مولانا رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد په ترجمة الباب سره دا دې چه ګه د مشركينو د چا نوم كښې څه قباحت نه وی نو مسلمان دا نوم ايخودې شی - ( [1] )

## ١١١=بَاب مَنْ دَعَا صَاحِبَهُ فَنَقَصَ مِنْ اسْمِهِ حَرْفًا

وَقَالَ أَبُو حَازِمٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا هِرٍّ [ر:٥٠٦٠]

[٥٨٣٨] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَ هَذَا جِبْرِيلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ قُلْتُ وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ قَالَتْ وَهُوَ يَرَى مَا لَا نَرَى [ر:٣٠٤٥]

[٥٨٣٩] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ فِي الثَّقَلِ وَأَنْجَشَةُ غُلَامُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسُوقُ بِهِنَّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَنْجَشُ رُوَيْدَكَ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيرِ [ر:٥٧٩٠]

علامه عينی رحمه الله ليكی :

" أی هذا باب فی بيان من دعا صاحبه بأن خاطبه بالنداء ، فنقص من اسمه حرفا مثل قولك : يا مال فی " يا مالك " وهذا عبارة عن الترخيم ، وهو حذف آخر المنادی ، لأجل التخفيف " ( [2] ) يعنی دې باب كښې امام بخاری رحمه الله د " ترخيم " د جواز بيان كړيدې ، د نوم په آخر كښې دير كرته يو يا دوه حرفه حذف كړې شی ، ديته ترخيم وائی -

د باب تر لاندې امام بخاری رحمه الله دوه روايتونه او يو تعليق ذكر كړيدې ، ديكښې دوی " يا اباهر " يا عائش " او " يا انجش " د آخری حرف په حذف سره ددې نومونو استعمال كړيدې ، د ابو حازم تعليق امام بخاری رحمه الله په كتاب الأطعمة كښې موصولاً نقل كړيدې - ( [3] ) وأم سليم فی الثقل : ثقل : كجاوې ته وائی - ( [4] )

---

[1] ) لامع الدراری : ١٠\٤٢)
[2] ) ٦٤ عمدة القاری : ٢٢\٢١٢ )
[3] ) عمدة القاری : ٢٢\٢١٢ ، ٢١٣ )
[4] ) عمدة القاری : ٢٢\٢١٣ )

## ١١٢ = باب الكنية للصبي وقبل أن يولد للرجل

[٥٨٥٠] حدثنا مسدد حدثنا عبد الوارث عن أبي التياح عن أنس قال كان النبي صلى الله عليه وسلم أحسن الناس خلقا وكان لي أخ يقال له أبو عمير قال أحسبه فطيما وكان إذا جاء قال يا أبا عمير ما فعل النغير نغر كان يلعب به فربما حضر الصلاة وهو في بيتنا فيأمر بالبساط الذي تحته فيكنس وينضح ثم يقوم ونقوم خلفه فيصلي بنا [ر: ٥٧٧٨]

**د بچې هم كنيت ايخودې شى** : په دې ترجمة الباب كښې امام بخارى رحمه الله دوه جزءه قائم كړيدى ، يو خو دا چه د بچى كنيت ايخودې شى او دويم دا چه سړې د بچى پيدا كيدو او د اولاد نه بغير هم د خپل ځان دپاره كنيت ايخودې شى -

د بچى كنيت متعلق خو حديث د باب بالكل صريح دې چه رسول الله ﷺ د حضرت انس وړوكى رور ته اوويل : " يا اباعمير ... "

د ترجمة الباب دويم جزء په طريقه د الحاق سره ثابت دې ، چه كله د بچى كنيت ايخودې شى نو د سړى كنيت بغير د اولاده خو په طريق اولى سره ايخودې شى ، لكه چه حافظ ابن حجر رحمه الله ليكى : " ذكر فيه قصة أبي عمير ، وهو مطابق لأحد ركني الترجمة ، و الركن الثاني مأخوذ من الإلحاق ، بل بالطريق الأولى " (١)

په عربو كښې د كنيت ايخودو لوې رواج وو ، ويلې كيدل به " الكنية للعرب كاللقب للعجم " (٢) يعنى عربو كښې د كنيت داسې رواج وو لكه چه عجمو كښې د لقب رواج دې -

**د اولاد نه كيدو په صورت كښې د كنيت ايخودل صحيح دى** : د بعضو خلقو دا خيال وو چه د اولاد نه كيدو په صورت كښې كنيت ايخودل صحيح نه دى (٣) امام بخارى رحمه الله د دوى ترديد اوكړو -

لكه چه امام ابن ماجه ، امام طحاوى او امام احمد يو روايت نقل كړيدې او حاكم د دوى تصحيح هم كړيده چه حضرت فاروق اعظم د حضرت صهيب رومى نه تپوس اوكړو چه ستا بچى نشته دې نو بيا تا ځنګه د " ابويحي " كنيت ايخودې دې ؟ نو ده اوويل : چه رسول الله ﷺ دا كنيت ځما ايخودې دې - (٤)

د حضرت عبد الله بن مسعود كنيت رسول الله ﷺ " ابو عبد الرحمن " ايخودې وو ، او لا تراوسه د دوى بچې نه وو پيدا شوې - (٥)

---

(١) فتح البارى : ١٠\٧١٢ ، الابواب و التراجم : ٢\١١٩ )
(٢) فتح البارى : ١٠\٧١٢ و عمدة القارى : ٢٢\٢١٣ )
(٣) الابواب و التراجم : ٢\١١٩ ، فتح البارى : ١٠\٧١٢ )
(٤) فتح البارى : ١٠\٧١٢ ، عمدة القارى : ٢٢\٢١٣ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٠٣ ، سنن ابن ماجه ، كتاب الأدب ، باب الرجل يكنى قبل أن يولد له : ٢\١٢٣١ ( رقم الحديث : ٣٧٣٨ )
(٥) فتح البارى : ١٠\٧١٢ ، عمدة القارى : ٢٢\٢١٣ ، ارشاد السارى : ١٣\٢٠٣ )

حضرت عبد الله بن مسعود د خپل شاګرد علقمه کنیت " ابو شبل " ایخودې وو ، او دده بچې هم نه وو (١) ابن ابی شیبه د امام زهری نه نقل کړیدې " کان رجال من الصحابة یکتنون قبل أن یولد لهم " (٢)

عالمان لیکی چه دوی به تفاولاً دا کنیت ایخودلو چه د چا بچې نشته دې چه د دوی اولاد اوشی او د بچی کنیت به ئې ځکه ایخودو چه دې لوې شي او په خپله د بچو والا شی - (٣)
د باب ترلاندې امام بخاری رحمه الله چه کوم روایت رانقل کړیدې ، دا څو باب وړاندې " باب الانبساط إلی الناس " کښې تیر شویدې ، رسول الله ﷺ فرمائی " یاأباعمیر ! ما فعل النغیر ! ؟ " نغیر یو مارغه دې چه ددې ترجمه بعض حضراتو په " بلبل سره کړیده ، حضرت کشمیری رحمه الله په " فیض الباری " کښې د دې ترجمه په " لال " سره کړیده ، دې حدیث نه حضرات محدثین څو فوائد مستنبط کوی ، مشهور شافعی عالم ابو العباس احمد بن ابی احمد طبری چه کوم د " ابن القاص " په نوم مشهور دې ، د دې حدیث فوائد په یو ځانله رساله کښې جمع کړیدی - (٤)

دا اهتمام محدثینو په طور خاص ځکه کړیدې چه بعض خلقو په محدثینو اعتراض اوکړو چه دوی داسې احادیث هم نقل کوی چه هغې کښې هیڅ فائده هم نشته دې او د مثال په طور دا حدیث پیش کوی ،نو محدثینو د شپیتو سره نزدې مختلف فوائد د دې حدیث نه اخذ کړیدی ، حافظ ابن حجر دا تمام په اختصار سره په " فتح الباری " کښې نقل کړیدی او بیا ئې په دې د خپل طرفه اضافه کړیده - (٥)

دا ماشوم چه د کوم په دې حدیث کښې ذکر دې په ماشوم والی کښې وفات شو او دا هم هغه ماشوم دې چه د چا قصه د مسلم وغیره په روایتونو کښې راغلې ده چه حضرت ابوطلحه په سفر تلې وو ، چه په کومه شپه راغلو نو دا ماشوم وفات شوی وو خو حضرت ام سلیم دوی ته او نه ویلې ، دوی تپوس اوکړو نو دې ورته اوویل : هغه آرام کوی شپه دواړو یو ځائې تیره کړه او سحر دوی ابوطلحه ته اطلاع ورکړه ، رسول الله ﷺ ته چه معلومه شوه نو دوی دپاره د دغه شپې د برکت دعا اوکړه - (٦)

ددې ماشوم د نوم په باره کښې د بعضو خیال دې چه دده کنیت هم د ده نوم وو بل جُدا نوم ئې نه وو ..... خو بعض روایتونو کښې د ده نوم " حفص " او په بعضو کښې " عبد الله " راغلې دې - (٧)

---

(١) فتح الباری : ١٠\٧١٢ ، ارشاد الساری : ١٣\٢٠٣ )
(٢) فتح الباری : ١٠\٧١٢ ، عمدة القاری : ٢٢\٢١٣ )
(٣) فتح الباری : ١٠\٧١٢ ، عمدة القاری : ٢٢\٢١٣ ، ارشاد الساری : ١٣\٢٠٣ )
(٤) فتح الباری : ١٠\٧١٢ ، ارشاد الساری : ١٣\٢٠٣ )
(٥) ١٠ فتح الباری : ١٠\٧١٤ )
(٦) فتح الباری : ١٠\٧١٦ )
(٧) ارشاد الساری : ١٣\٢٠٣ ، فتح الباری : ١٠\٧١٧ )

## ١١٣ = بَاب التَّكَنِّي بِأَبِي تُرَابٍ وَإِنْ كَانَتْ لَهُ كُنْيَةٌ أُخْرَى

[٥٨٥١] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ إِنْ كَانَتْ أَحَبَّ أَسْمَاءِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِلَيْهِ لَأَبُو تُرَابٍ وَإِنْ كَانَ لَيَفْرَحُ أَنْ يُدْعَى بِهَا وَمَا سَمَّاهُ أَبُو تُرَابٍ إِلَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَاضَبَ يَوْمًا فَاطِمَةَ فَخَرَجَ فَاضْطَجَعَ إِلَى الْجِدَارِ إِلَى الْمَسْجِدِ فَجَاءَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتْبَعُهُ فَقَالَ هُوَ ذَا مُضْطَجِعٌ فِي الْجِدَارِ فَجَاءَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَامْتَلَأَ ظَهْرُهُ تُرَابًا فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ التُّرَابَ عَنْ ظَهْرِهِ وَيَقُولُ اجْلِسْ يَا أَبَا تُرَابٍ [ر: ٤٣٠]

حضرت سهل بن سعد نه روايت دې چه حضرت علی ته په خپلو نومونو کښې " ابوتراب " ډير خوښ وو او په دې نوم رابللو سره به ډير خوشحاليدلو ، دا نوم ده دپاره رسول الله ﷺ ايخودې وو ، يو ورځ حضرت علی ، د حضرت فاطمه نه ناراضه شو او بهر اووتلو او د جمات د ديوال سره ئې ډډه اووهله او څملاستو ، حضور ﷺ دده د ملا نه خاوره صفا کوله او دوی ته به ئې فرمائل " ابو تراب : کښينه "

**د ترجمة الباب مقصد** : د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه يو سړی دوه کنيته ايخودې شی ، د حضرت علی رضي الله عنه يو کنيت " ابوالحسن " مشهور وو ، خو رسول الله ﷺ به دوی ته په بل کنيت " ابوتراب " هم اواز ورکولو حديثي د باب کښې اګر د يو کنيت او په ترجمة الباب کښې د دوو ذکر دې ، خو بيا هم چه "ابو الحسن" د حضرت علی مشهور کنيت وو ، دې وجه نه چه حضور کله د ده دا بل کنيت " ابوتراب " کيخودو نو دارنګه د ده دوه کنيته شو ، علامه کرمانی رحمه الله ليکی :

" **فإن قلت : ما وجه دلالته على الكنيتين ، وهو الجزء الآخر من الترجمة ؟ قلت : أبو الحسن هو الكنية المشهورة لعلى رضي الله عنه فلما كنى بأبي تراب صار ذا كنيتين** " (١)

شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمه الله فرمائی چه د امام بخاری رحمه الله مقصد په دې ترجمة الباب سره دا دې چه د " ابوتراب " کنيت ايخودل جائز دی ، چا ته وهم کيدې شو چه دې کنيت يو قسم د خپل خان تحقير او ذلت دې ، دې وجه نه دا به جائز نه وی ، امام دا وهم لرې کړو - (٢)

**حضرت علی ته د " ابو تراب " ويلو وجه** : حضرت علی رضي الله عنه ته دوی ﷺ " ابو تراب يو خو په هغه موقع ويلې وو چه د هغې دلته په حديث د باب کښې ذکر دې ، ابن اسحاق د حضرت عمار يو روايت ذکر کړيدې چه ديکښې هغه فرمائی چه دې او حضرت علی غزوه عشيره کښې ملګری وو ، رسول الله ﷺ تشريف راوړو ، حضرت علی اوده وو او د دوی جامې د

---

١) شرح الكرمانى : ٢٢\١٥٤ ( رقم الحديث : ٥٨٦٦ )

٢) ١٤ الابواب و التراجم : ١٢٠\٢ )

دورو وې ، نو دوی ﷺ دې راويخ كړو او ورته ئې اوفرمائل : مالك يا اباتراب - (١)
غزوه عشيره د هجرت په دويم كال شويدې ، دغه وخته پورې حضرت علي د حضرت فاطمه سره نكاح نه وه كړې (٢) چه دينه معلوميږي چه رسول الله ﷺ ده ته په مختلف وختونو كښې په كنيت د "ابوتراب" اواز وركړيدې -
يو بل روايت كښې دی چه حضرت علي به چه كله د حضرت فاطمه نه خفه شو نو دوی ته د څه ويلو په ځائې په خپل سر به خاورې اچول شروع كړل ، نو چه رسول الله ﷺ به كله دې په دې حالت اوليدو نو پوهه به شو چه د دواړو په مينځ كښې خفګان راغلې دې نو دوی به اوفرمائل : مالك يا اباتراب (٣)
دا روايت هم په تعدد دلالت كوی چه دوی په مختلف وختونو كښې دوی ته په دې كنيت اواز وركړې وو -
حديث د باب نه حافظ ابن حجر او ابن بطال مختلف فوائد اخذ كړدی ، دې ليكی :
" ويستفاد من الحديث جواز تكنية الشخص بأكثر من كنية ، و التلقيب بلفظ الكنية و بما يشتق من حال الشخص ، وأن اللقب إذا صدر من الكبير في حق الصغير تلقاه بالقبول و لولم يكن لفظه لفظ مدح ، وأن من حمل ذلك على التنقيص لايلتفت إليه ..... وفيه ان أهل الفضل قد يقع بين الكبير منهم و بين زوجته ما طبع عليه البشر من الغضب ، و قد يدعوه ذلك إلى الخروج من بيته و لا يعاب عليه .... و فيه كرم خُلق النبي صلى الله عليه و سلم لأنه توجه نحو " على " ليترضاه ، و مسح التراب عن ظهره ليبسطه ..... ولم يعاتبه على مغاضبته لابنته مع رفيع منزلتها عنده ، فيؤخذ منه استحباب الرفق بالاصهار و ترك معاتبتهم إبقاء لمودتهم ، لأن التاب إنما يخشى ممن يخشى منه الحقد ، لا ممن هو منزه عن ذلك " (٤)يعنی دې حديث نه څو خبرې معلومې شوې -

① يو سړې دوه كنيته ايخودې شی ،
② د انسان د يو حالت نه كنيت اخذ كولې شي
③ د كشر په باره كښې لوې څه لقب استعمال كړی نو دا مقبول كيږی اګر دا مدحيه نه وی ، كُه څوك دا په تحقير او په تنقيص محمول كړی نو ده ته به توجه نه وركولې كيږی -
④ د اهل علم او د فضل والا هم د كور والا سره خفګان راتلې شی او دې چه خفه شی نو دكور نه وتلې شی ، دا څه معيوب خبره نه ده -
⑤ د رسول الله ﷺ د مشفقانه اخلاقو يو انداز هم په حديث كښې شته ، دوی ﷺ د حضرت علي د شا نه به خاورې لرې كولې او دوی به ئې راضی كولو ، غصه به ئې ورته نه

(١) فتح الباری : ١٠\٧١٩ ) ( ابو تراب ! په تا څه شويدی ؟ )
(٢) فتح الباری : ١٠\٧١٩ )
(٣) فتح الباری : ١٠\٧١٩ )
(٤) فتح الباری : ١٠\٧١٨ ، شرح ابن بطال : ٩\٣٥٢-٣٥٣ )

كوله ، معلومه شوه چه د خوم سره نرمى كول مستحب دى -

## ۱۱۴- باب أبغض الأسماء إلى الله

[۵۸۵۲\۵۸۵۳] حدثنا أبو اليمان أخبرنا شعيب حدثنا أبو الزناد عن الأعرج عن أبي هريرة قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم أخنى الأسماء يوم القيامة عند الله رجل تسمى ملك الأملاك

[۵۸۵۳] حدثنا علي بن عبد الله حدثنا سفيان عن أبي الزناد عن الأعرج عن أبي هريرة رواية قال أخنع اسم عند الله وقال سفيان غير مرة أخنع الأسماء عند الله رجل تسمى بملك الأملاك قال سفيان يقول غيره تفسيره شاهان شاه-

**بدترين نوم** : په حديث د باب كښې دى چه بدترين نوم د الله تعالى په نزد د هغه سړى نوم دې چه چا خپل نوم " ملك الاملاك " ايخودې وى -

تركيب كښې " أخنى الأسماء " مبتداء او " رجل دې دپاره خبر دې ، " رجل " حمل " په " أخنى ... " باندې صحيح نه دې ، دې وجه نه په خبر كښې د " رجل " نه وړاندې مضاف محذوف دې أى أخنى الأسماء إسم رجل (۱)

اودا تاويل هم شويدې " أخنى الأسماء " كښې اسماء " نه " رجال " مراد دى ، ذكر د اسم اوشى مجازا ترينه مسمى مراد واخستې شى ، نو تقدير د عبارت به دا وى " أخنى الرجال رجل....(۲)

أخنى: دخَنَا ( د خاء په فتحه او د نون په تخفيف سره ) نه د اسم تفضيل صيغه ده ، خَنَا قول او كلام كښې بې هودګئ او فحاشئ ته وائى (۳)

أخنى الأسماء په ځائې " أخنع " " أذل " أبغض " " أكره " او " أغيظ الفاظ هم مروى دى - (۴) حضرت كشميرى رحمه الله د " أخنى " ترجمه په " ذليل ترين " سره كړيده - (۵)

**قوله:** <u>ملك الأملاك</u> : مَلِك ( د ميم په فتحه او د لام په كسره سره ) : بادشاه - **أملاك**: د مليك هم جمع كيدې شى او د مِلْك ( د ميم په كسره سره ) هم جمع كيدې شى - (۶)

سفيان بن عيينه ددې تفسير په " شاهان شاه " سره كړيدې ، ځكه چه په عجمو كښې او خاص كر فارسى خوانانو علاقو كښې ددې نوم رواج وو ، دې وجه نه سفيان بن عيينه ددې تفسير اوكړو او بيان ئې اوكړو چه صرف د عربى ژبې دپاره دا ممانعت نشته دې ، بلكه په

---

۱) ارشاد السارى : ۱۳\۲۰۵ )

۲) ارشاد السارى : ۱۳\۲۰۵ )

۳) فتح البارى : ۱۰\۷۲۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۱۵ ، ارشاد السارى : ۱۳\۲۰۵ )

۴) فتح البارى : ۱۰\۷۲۰ ، عمدة القارى : ۲۲\۲۱۵ ، ارشاد السارى : ۱۳\۲۰۵ )

۵) فيض البارى : ۴\۴۰۱ )

۶) فتح البارى : ۱۰\۷۲۰ ، ارشاد السارى : ۱۳\۲۰۵ )

نورو ژبو كښې هم ددې مفهوم نوم كه كيخودې شي نو دا به هم په دې ممانعت كښې داخل وى - [١]

" شاهان شاه " په تخفيف سره " شهنشاه " هم ويلې كيږى د " شهنشاه " په شان د " احكم الحاكمين " " سلطان السلاطين " او د " امير الامراء " هم دا حكم دې -[٢]

" أقضى القضاة " په باره كښې اختلاف دې ، د علامه زمخشرى په " تفسير كشاف " كښې ددې ممانعت ليكلې دې [٣] خو ابن منير د دوى ترديد كړيدې او ويلې دى په حديث كښې د حضرت على دپاره " اقضاكم على " استعمال شويدې - [٤]

د " قاضى القضاة " په باره كښې هم بعض خلقو د ممانعت حكم كړيدې ، خو اكثر حضرات وائى چه دا لفظ د امام ابويوسف رحمه الله د زمانې نه رائج دې او چا په دې تنقيد نه دې كړې - [٥]

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى چه څمونږ په زمانه كښې بعض جاهلان منشيان نائب قاضى ته " أقضى القضاة " او لوې قاضى ته " قاضى القضاة " ليكى ، حال دا دې چه " أقضى القضاة " د " قاضى القضاة " په مقابله كښې زيات بليغ دې - [٦]

فائده : ابن التين د داودى نه نقل كړيدې ، چه په بعض روايتونو كښې راغلې دى " أبغض الأسماء إلى الله خالد و مالك " ابن التين وائى چه دا روايت محفوظ نه دې ځكه چه په اصحابو كښې د خالد او د مالك نوم والا څو اصحاب دى [٧] قرآن كريم كښې د جهنم د داروغه دپاره د " مالك " د نوم استعمال شويدې - [٨]

حافظ ابن حجر فرمائى چه داودى چه د كوم روايت ذكر كړې وو ، هغه ما ته په ډير تلاش كولو هم ملاو نه شو ، بيا د حضرت ابوهريره يو روايت د ابراهيم بن الفضل په تذكره كښې ما ته ملاو شو ، د هغې الفاظ دى ، " أحب الأسماء إلى الله ما سمى به ، وأصدقها الحارث وهمام ، و أكذب الأسماء خالد و مالك ، و أبغضها إلى الله ما سمى لغيره " .... يعنى الله ته ټولو كښې محبوب نوم هغه دې چه د الله د نوم سره وى ( لكه عبد الله ، عبدالرحمن ) او حارث او همام په ټولو كښې زيات رشتونې نومونه دى ، او خالد او مالك د ټولو نه زيات د دروغو نومونه دى ،

---

[١] ) فتح البارى : ١٠\ ٧٢١ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ ، الابواب و التراجم : ٢\ ١٢٠ )
[٢] ) فتح البارى : ١٠\ ٧٢١ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ )
[٣] ) تفسير الكشاف للزمخشرى : ٢\ ٣٩٨ ، ٣٩٩ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ )
[٤] ) فتح البارى : ١٠\ ٧٢١ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ )
[٥] ) فتح البارى : ١٠\ ٧٢٢ ، عمدة القارى : ٢٢\ ٢١٥ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ )
[٦] ) عمدة القارى : ٢٢\ ٢١٥ ، ارشاد السارى : ١٣\ ٢٠٦ ، فتح البارى : ١٠\ ٧٢١ )
[٧] ) فتح البارى : ١٠\ ٧١٩ ، عمدة القارى : ٢٢\ ٢١٥ )
[٨] ) فتح البارى : ١٠\ ٧١٩ ، عمدة القارى : ٢٢\ ٢١٥ )

او غير الله ته چه كوم نومونه منسوب شى نو الله ته تولو كښې زيات مبغوض دا نومونه دى (لكه عبد الغزى وغيره) -
داودى دحديث متن صحيح ياد نه دې ساتلې ، او دا هم ممكن ده چه دا د بل روايت الفاظ وى - ([1]) حديث د باب امام بخارى رحمه الله دلته په رومبي ځل ذكر كړيدې او صرف هم په دې يو ځائې كښې دې -

**قوله**: قال سفيان: يقول غيره: تفسيره: شاهان شاه: د غيره ضمير ابوالزناد ته راجع دې - علامه انورشاه كشميرى رحمه الله ليكى :

" واعلم أن المشهور على الألسنة أن الأسماء تنسلخ عن معنى الخبرية قطعا وليس بصحيح، فإنها وإن لم تكن كالأخبار الصريحة ولكن يبقى فيها إيماء إلى الخبرية، ولذا كان ملك الأملاك من أخنى الأسماء، ولو انسلخ عن معنى الخبرية أصلا ولما كان أخنى، نعم قد ينكشف ذلك في المواضع كما في ملك الأملاك وقد لا ينكشف كما في التكنى بأبي عمير، فذلك، من باب المراتب في الشيء " ([2])

يعنى دا خبره مشهوره ده چه د اسماء نه د خبريت معنى سلب كيږى، اسماء صرف په مسمى باندې دلالت كولو دپاره وى ، ددې بله لغوى معنى نه وى معتبر ، خو دا خبره مطلقًا صحيح نه ده ، ځكه چه اسماء اګر چه د اخبار صريحه په شان نه وى ، بيا هم خبرى او لغوى معنى ته ديكښې اشاره خامخا وى ، دې وجه نه ملك الاملاك " ئې په ذليل ترين نومونو كښې داخل كړل ، كه لغوى معنى ته ديكښې اشاره نه وى نو ديته به " ذليل ترين " نوم نه ويلې كيدلو -
خو بعض نومونو كښې لغوى معنى ته څه قسم اشاره نه وى لكه " ابوعمير " يو كنيت دې خو ديكښې په څه لغوى معنى دلالت نشته دې ، بهر حال دا د " باب المراتب فى الشيء " د قبيله نه دې ، يعنى يو څيز كښې مختلف مراتب كيدې شى ، دارنګه بعض نومونو كښې په معنى لغوى دلالت كيدې شى او په بعضو كښې نه شى كيدې -
**تنبيه** : سفيان بن عيينه د " ملك الاملاك " تفسير په " شاهان شاه " سره نقل كړيدې ، خو دا تركيب مقلوب دې ، اصل كښې " شاه شاهان " دې ([3])
حافظ ابن حجر او نور شارحين وائى چه عجمى ژبه كښې مضاف اليه مقدم وى " ([4]) خو دا خبره مطلقًا صحيح نه ده ځكه اردو او هندى وغيره كښې مضاف ، په مضاف مقدم وى خو په فارسى كښې د عربئ په شان مضاف مقدم وى ، لكه چه حضرت ګنګوهى رحمه الله او ددوى په اتباع كښې شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله دا تركيب " مقلوب " ګرځولې دې - ([5])

---

[1]) فتح البارى : ١٠\٧١٩)
[2]) فيض البارى : ٤\٤٠١)
[3]) فيض البارى : ٤\٤٠١)
[4]) فتح البارى: ١٠\٧٢١ ،عمدة القارى:٢٢\٢١٦ ارشاد السارى: ١٣\٢٠٦ ،الابواب و التراجم:٢\١٢٠)
[5]) لامع الدرارى : ١٠\٤٢ ، الابواب و التراجم : ٢\١٢٠)

## ١١٥ — باب كُنْيَةِ الْمُشْرِكِ

وَقَالَ مِسْوَرٌ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِلَّا أَنْ يُرِيدَ ابْنُ أَبِي طَالِبٍ [ر: ٢٩٣٢]

[٥٨٥٣] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ عَلَيْهِ قَطِيفَةٌ فَدَكِيَّةٌ وَأُسَامَةُ وَرَاءَهُ يَعُودُ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ فِي بَنِي حَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ قَبْلَ وَقْعَةِ بَدْرٍ فَسَارَا حَتَّى مَرَّا بِمَجْلِسٍ فِيهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ وَذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ يُسْلِمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ فَإِذَا فِي الْمَجْلِسِ أَخْلَاطٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ وَالْيَهُودِ وَفِي الْمُسْلِمِينَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَلَمَّا غَشِيَتِ الْمَجْلِسَ عَجَاجَةُ الدَّابَّةِ خَمَّرَ ابْنُ أُبَيٍّ أَنْفَهُ بِرِدَائِهِ وَقَالَ لَا تُغَبِّرُوا عَلَيْنَا فَسَلَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ وَقَفَ فَنَزَلَ فَدَعَاهُمْ إِلَى اللّٰهِ وَقَرَأَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنَ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ أَيُّهَا الْمَرْءُ لَا أَحْسَنَ مِمَّا تَقُولُ إِنْ كَانَ حَقًّا فَلَا تُؤْذِنَا بِهِ فِي مَجَالِسِنَا فَمَنْ جَاءَكَ فَاقْصُصْ عَلَيْهِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَاغْشَنَا فِي مَجَالِسِنَا فَإِنَّا نُحِبُّ ذٰلِكَ فَاسْتَبَّ الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشْرِكُونَ وَالْيَهُودُ حَتَّى كَادُوا يَتَثَاوَرُونَ فَلَمْ يَزَلْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّضُهُمْ حَتَّى سَكَتُوا ثُمَّ رَكِبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَابَّتَهُ فَسَارَ حَتَّى دَخَلَ عَلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْ سَعْدُ أَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالَ أَبُو حُبَابٍ يُرِيدُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أُبَيٍّ قَالَ كَذَا وَكَذَا فَقَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ أَيْ رَسُولَ اللّٰهِ بِأَبِي أَنْتَ اعْفُ عَنْهُ وَاصْفَحْ فَوَالَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ لَقَدْ جَاءَ اللّٰهُ بِالْحَقِّ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ وَلَقَدِ اصْطَلَحَ أَهْلُ هٰذِهِ الْبَحْرَةِ عَلَى أَنْ يُتَوِّجُوهُ وَيُعَصِّبُوهُ بِالْعِصَابَةِ فَلَمَّا رَدَّ اللّٰهُ ذٰلِكَ بِالْحَقِّ الَّذِي أَعْطَاكَ شَرِقَ بِذٰلِكَ فَذٰلِكَ فَعَلَ بِهِ مَا رَأَيْتَ فَعَفَا عَنْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ يَعْفُونَ عَنِ الْمُشْرِكِينَ وَأَهْلِ الْكِتَابِ كَمَا أَمَرَهُمُ اللّٰهُ وَيَصْبِرُونَ عَلَى الْأَذَى قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ الْآيَةَ وَقَالَ وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَأَوَّلُ فِي الْعَفْوِ عَنْهُمْ مَا أَمَرَهُ اللّٰهُ بِهِ حَتَّى أَذِنَ لَهُ فِيهِمْ فَلَمَّا غَزَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدْرًا فَقَتَلَ اللّٰهُ بِهَا مَنْ قَتَلَ مِنْ صَنَادِيدِ الْكُفَّارِ وَسَادَةِ قُرَيْشٍ فَقَفَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ مَنْصُورِينَ غَانِمِينَ مَعَهُمْ أُسَارَى مِنْ صَنَادِيدِ الْكُفَّارِ وَسَادَةِ قُرَيْشٍ قَالَ ابْنُ أُبَيٍّ ابْنُ سَلُولَ وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ عَبَدَةِ الْأَوْثَانِ هٰذَا أَمْرٌ قَدْ تَوَجَّهَ فَبَايِعُوا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْإِسْلَامِ فَأَسْلَمُوا [ر: ٢٨٢٥]

[۵۸۵۵]حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ نَفَعْتَ أَبَا طَالِبٍ بِشَيْءٍ فَإِنَّهُ كَانَ يَحُوطُكَ وَيَغْضَبُ لَكَ قَالَ نَعَمْ هُوَ فِي ضَحْضَاحٍ مِنْ نَارٍ لَوْلَا أَنَا لَكَانَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ[ر:۳۶۷۰]

**مشرک لره په کنیت سره رابللې شي:** د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د مشرک کُه څه کنیت وی نو دې په دې کنیت سره رابللې شي-

مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله په لامع الدراری کښې فرمائی چه د کنیت استعمال په طور د احترام او د اکرام کیږی ، او کافر چه مستحق د احترام نه دی دې وجه نه د چا په زړه کښې به شبه راتلې شوه چه د کافر او د مشرک دپاره د کنیت استعمال مکروه دې ، امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب سره دا وهم لرې کوی - (۱)

باب کښې امام بخاری رحمه الله درې روایتونه رانقل کړیدی ، ړومبې روایت ئې تعلیقاً ذکر کړیدې ، امام دا په کتاب النکاح ، باب ذب الرجل عن ابنته فی الغیرة و الإنصاف کښې موصولاً نقل کړیدې - پوره حدیث داسې دې " سمعت النبی صلی الله علیه و سلم یقول وهو علی المنبر: إن بنی هاشم بن المغیرة استأذنوا فی أن ینکحوا ابنتهم علی بن أبی طالب، فلا آذن، ثم لا آذن، ثم لا آذن إلا أن یرید ابن أبی طالب أن یطلق ابنتی وینکح ابنتهم " دیکښې دوی د ابوطالب کنیت استعمال کړیدې حال دا دې چه د ده نوم عبد مناف دې - (۲)

دویم روایت ، کتاب التفسیر کښې د سورة آل عمران تر لاندې تیر شویدې ، هلته د دې او هلته د دې ترجمه او د مشکلو الفاظو معنی هم تیره شویده (۳)

**قوله: يتشاورون:** یتشاوبون یعنی په یو بل باندې راټوپ وهل ..... شرق بذلك یعنی دا حق د ده په مرئ کښې اونختلو ، ، ده ته اټکې اولګیدلو -

دې روایت کښې رسول الله ﷺ د عبد الله بن ابی بن سلول کنیت استعمال کړیدې ، فرمائی : " أی سعد، ألم تسمع ما قال ابوحباب " ابوحباب د عبد الله بن ابی کنیت دې -

د باب دریم روایت د حضرت عباس رضی الله عنه دې ، دوی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو ، اے د الله رسوله : تا ابوطالب ته څه فائده ورکړیده ، څکه چه هغه به د ستا حفاظت کولو او د ستا دپاره به ئې خپله غصه ښکاره کوله ، حضور ﷺ اوفرمائل : هو ، هغه په کم اور کښې دی - که څه نه وې نو هغه به د جهنم په لاندینئ حصه کښې وو -

دې روایت کښې حضرت عباس د ابوطالب کنیت استعمال کړیدې او رسول الله ﷺ پرې بد نه دی ګڼړلې ، معلومه شوه د یو کافر او د مشرک دپاره کنیت استعمالیدې شی -

---

۱) لامع الدراری : ۱۰\۴۴ ، تعلیقات لامع الدراری : ۱۰\۴۴ )

۲) ۳۹ ارشاد الساری : ۱۳\۲۰۷ ، شرح الکرمانی : ۲۲\۵۵

۳) کشف الباری : کتاب التفسیر ، باب ( و لتسمعن من الذین أوتو الکتاب من قبلکم ) الخ : ۱\۲۵۱ ، ۱۲۶)

**د کافر دپاره کنیت کله استعمالولې شي؟:** امام نووی رحمه الله په " کتاب الاذکار " کښې لیکلې دی ، چه کنیت هغه وخت د کافر دپاره استعمالولې شي چه کله دې په کنیت سره مشهور وی او ددینه بغیر د ده پیژندګلو مشکل وی یا په نوم اخستو کښې د څه فتنې یره وی ...... قرآن کریم کښې " ابولهب " کنیت استعمال شویدې ، د ده نوم عبد العزی دې ، ځکه چه دې په دې کنیت سره مشهور وو ، دارنګه نوم ذکر کول دې وجه نه هم مناسب نه وو چه ده عزی صنم ( بت ) ته د عبد نسبت کړې وو ([1])

امام نووی رحمه الله فرمائی چه کُه دا شرط نه وی نو بیا صرف نوم ذکر کول پکار دی او په دې اضافه نه دی کول پکار - ([2])

ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د حدیث د باب نه معلومیږی چه د تالیف قلبی دپاره ، یا د یو کافر د اسلام قبلولو امید وی یا د څه بلې فائدې ترینه امید وی نو داسې صورت کښې ده دپاره د کنیت استعمال کیدې شی - ([3])

**قوله: یحوطك :** حاط – حَوْطًا : حفاظت کول - ضحضاح : لږ او کم ، ډوبې اوبه -

## ۱۱۶ = بَابُ الْمَعَارِيضُ مَنْدُوحَةٌ عَنِ الْكَذِبِ

وَقَالَ إِسْحَاقُ سَمِعْتُ أَنَسًا مَاتَ ابْنٌ لِأَبِي طَلْحَةَ فَقَالَ كَيْفَ الْغُلَامُ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ هَدَأَ نَفَسُهُ وَأَرْجُو أَنْ يَكُونَ قَدِ اسْتَرَاحَ وَظَنَّ أَنَّهَا صَادِقَةٌ [ر:۱۲۳۹]

[۵۸۵۶\۵۸۵۷] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسِيرٍ لَهُ فَحَدَا الْحَادِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْفُقْ يَا أَنْجَشَةُ وَيْحَكَ بِالْقَوَارِيرِ

[۵۸۰۷] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ وَأَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ وَكَانَ غُلَامٌ يَحْدُو بِهِنَّ يُقَالُ لَهُ أَنْجَشَةُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُوَيْدَكَ يَا أَنْجَشَةُ سَوْقَكَ بِالْقَوَارِيرِ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ يَعْنِي النِّسَاءَ

حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا حَبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَادٍ يُقَالُ لَهُ أَنْجَشَةُ وَكَانَ حَسَنَ الصَّوْتِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُوَيْدَكَ يَا أَنْجَشَةُ لَا تَكْسِرِ الْقَوَارِيرَ قَالَ قَتَادَةُ يَعْنِي ضَعَفَةَ النِّسَاءِ

---

[1]) فتح الباری : ۱۰ \ ۷۲۳ ، عمدة القاری : ۲۲ \ ۲۱۸ ، ارشاد الساری : ۱۳ \ ۲۱۰ ، الأذکار النووية مع الفتوحات الربّانية ، کتاب الأسماء ، باب جواز تکنية الکافر : ۶ \ ۱۵٤ ) .....

[2]) الأذکار النووية مع الفتوحات الربّانية ، کتاب الأسماء ، باب جواز تکنية الکافر : ۶ \ ۱۵٤ )

[3]) شرح صحيح البخاری لابن بطال : ۹ \ ۳۵۵ )

[٥٨٥٨] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي قَتَادَةُ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ بِالْمَدِينَةِ فَزَعٌ فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ فَقَالَ مَا رَأَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا [ر: ٢٤٨٤]

امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې چه كوم الفاظ ذكر كړيدى ، دا د مرفوع حديث الفاظ دى ، چه كوم د حضرت عمران بن الحصين ﷺ نه روايت دې - (١)

مولانا انورشاه كشميرى رحمه الله په فيض البارى كښې ليكى :

" قوله : مندوحة أى متسع و مفر ، أراد المصنف من المعاريض التورية ، أى التكلم بكلام لا يفهم المخاطب ما أراد منه المتكلم ، ما يفهم منه يظنه صادقا باعتباره ، ولم يرد تعريض علماء البيان " (٢) يعنى د معاريض نه دلته توريه مراد ده ، مقصد دا دې چه داسې خبره كول چه مخاطب دينه د متكلم په مراد پوه نه شي او چه كوم مفهوم مخاطب ترينه واخلى ، دې متكلم په ديكښې رښتونې او صادق خيال كړى ، دينه د علم بيان اصطلاحى تعريفونه مراد نه دى ، علامه ابن اثير په " النهايه " كښې ليكى :

" المعاريض : جمع مِعْراض ، من التعريض ، و هو خلاف التصريح من القول " (٣) يعنى معاريض د معراض جمع ده او دا د تعريض نه دې ، تعريض د صريح ضد دې -

د المعاريض مندوحة عن الكذب مطلب دا دې چه كُه چا توريه اوكړه او تصريح سره ئې خبره نه وى كړې نو دا په دروغو كښې داخل نه دى ، علامه قسطلانى رحمه الله ددې ترجمه ليكى : " أى فى المعاريض من الاتساع ما يغنى عن الكذب " (٤)

امام بخارى رحمه الله د دې په جواز باندې ړومبې استدلال د حضرت ام سليم د قصې نه كړيدې ، حضرت ابوطلحه دينه تپوس اوكړو ، هلك څنګه دې ؟ نو دې اوويل : په سكون او په آرام دې څما اميد دې چه ده راحت بيا موندو " ابو طلحه خيال اوكړو چه دا رښتيا وائى او ماشوم د بيمارئ نه ښه شويدې ، حال دا وو چه د بچى وفات شوې وو خو حضرت ام سليم توريه اوكړه او ده ته ئې اصل حقيقت د شپې خودل مناسب اونه ګڼړل ، ديته دروغ نه وائى بلكه توريه ورته وائى ، جنائز كښې امام دا موصولاً نقل كړيدې ، لكه چه قسطلانى رحمه الله ليكى :

" و ظن أبو طلحة أنها صادقة باعتبار ما فهمه من كلامها ، لأن مفهومه أن الصبى تعافى ، لأن النفس إذا سكن ، أشعر بالنوم ، و العليل اذا نام ، أشعر بزوال مرضه أو خفته ، فالمرأة صادقة باعتبار مرادها ، و أما خبرها بذلك فهو غير مطابق للأمر الذى فهمه أبو طلحة ، فمن ثم قال الراوى : و ظن أنها صادقة ، و مثل ذلك لا يسمى كذبا .

---

(١) النهاية لابن الاثير : ٢١٢\٣ )
(٢) فيض البارى : ٤٠١\٤ )
(٣) النهاية لابن الاثير " مادة عرض : ٢١٢\٣ )
(٤) ٤٧ ارشاد السارى : ٢١٠\١٣ )

على الحقيقة، بل مندوحة عن الكذب" (١)
باب كښې دننه چه کوم دوه حديثونه دى ، ديکښې يو انجشه والا حديث دې ، چه ديکښې رسول الله ﷺ د ښځو دپاره " قوارير " لفظ په طور د تشبيه استعمال کړيدې ، او دويم حديث کښې د آس دپاره " بحر " لفظ په طور د تشبيه استعمال کړيدې ، دا دواړه حديثونه د معاريض د قبيل نه نه دې ، بلکه دا الفاظ مجازا استعماليږي -
ابن منير تکلف کړيدې او ويلې دى چه د امام بخارى رحمه الله مقصد دا دې چه کله کلام کښې د مجاز استعمال جائز دې ، نو د معاريض استعمال په طريق اولى جائز کيدل پکار دى ، ځکه چه معاريض کښې کلام په خپله حقيقى معنى کښې استعماليږى - (٢)
علامه انور شاه کشميرى رحمه الله دې دواړو حديثونوکښې د يو بل سره مناسبت بيانوى او ليکى: "قوله : ما رأينا من شيء ، مع أنه كان رأى شيئا من الأشياء لا محالة ، فيكون المراد شيء يعتد به ، فسماها معاريض ، مع أنها ليست من المعاريض فى شيء ..... و بالجملة : مراد المصنف أن المعاريض و أمثالها ليست من الكذب فى شيء و لكنها أنواع من الكلام....." (٣)
(يعنى حضور ﷺ " ما رأينا من شيء " اوفرمائل چه ما څه نه دى ليدلې ، حال دا دې چه دوى خو به څه ځيز خامخا ليدلې وى ، مطلب دا وو چه ما څه قابل ذکر او قابل توجه ځيز نه دې ليدلې ، ديته معاريض اوويلې شو ، حال دادې دا د معاريض د قبيله نه دې ، خلاصه دا چه معاريض وغيره د کلام يو قسم ضرور دې خو ديته دروغ نه شى ويلې کيدې -

## ١١٧: بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ لِلشَّيْءِ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَهُوَ يَنْوِي أَنَّهُ لَيْسَ بِحَقٍّ

وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْقَبْرَيْنِ يُعَذَّبَانِ بِلَا كَبِيرٍ وَإِنَّهُ لَكَبِيرٌ [ر:٢٠٨]

[٥٨٥٩] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ أَخْبَرَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيدَ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ عُرْوَةَ أَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ يَقُولُ قَالَتْ عَائِشَةُ سَأَلَ أُنَاسٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْكُهَّانِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسُوا بِشَيْءٍ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَإِنَّهُمْ يُحَدِّثُونَ أَحْيَانًا بِالشَّيْءِ يَكُونُ حَقًّا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الْكَلِمَةُ مِنَ الْحَقِّ يَخْطَفُهَا الْجِنِّيُّ فَيَقُرُّهَا فِي أُذُنِ وَلِيِّهِ قَرَّ الدَّجَاجَةِ فَيَخْلِطُونَ فِيهَا أَكْثَرَ مِنْ مِائَةِ كَذْبَةٍ [ر:٥٤٢٩]

ډير کرتې يو ځيز معيارى نه وى ، يا حق نه وى ، دې دپاره په عربئ ژبه کښې او دا رنګه په نورو ژبو کښې هم ويلې کيږى چه " ليس بشيء " هيڅ هم نه دې " ليس بشيء " مطلب دا دې

---

(١) ارشاد السارى : ١٣\٢١٠ )
(٢) فتح البارى : ١٠\٧٢٦ )
(٣) فيض البارى : ٤\٤٠٢ )

چه دا حق نه دې ، اردو ژبه کښې هم عموما د چا باره کښې ويلې کيږی چه " وه تو کچھ بهي نهين " ( دې خو هيڅ هم نه دې ) په داسې کلام سره د ده د وجود او د شيء کيدو نفی مقصود نه وی ، بلکه د دې د معياری کيدو ، د حق کيدو او صحيح کيدو نفی وی -
د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه داسې کلام د کذب په زمره کښې داخل نه دې ، د " ليس بشيء " مطلب دا دې چه ليس بشيء معتد به يعنی څه قابل ذکر او قابل اعتبار څيز نه دی - ( [1] )
باب کښې امام بخاری رحمه الله د حضرت ابن عباس تعليق ذکر کړيدې ، چه دوی ﷺ د دوه قبرونو متعلق اوفرمائل : چه دوی دواړو ته عذاب ورکولې کيږی ، څه لوې څيز کښې نه دې ، خو دا لوې دې ، رومبې ئې نفی اوکړه او بيا ئې اثبات اوکړو فكأنه قال لشيء : ليس بشيء ( [2] ) أی ليس بشيء له أهميته عند الناس وإن كان في نفسه أهم ، كتاب الطهارة ، باب من الكبائر أن لا يستتر من بوله کښې امام بخاری رحمه الله دا تعليق موصولاً ذکر کړيدې -
دباب دويم روايت کښې حضور اکرم ﷺ نه د کاهنانو متعلق تپوس اوشو ، دوی اوفرمائل " ليسوا بشيء " هيڅ هم نه دی ، يعنی ليس بشيء يعتد به ( [3] )
كَذْبة د كاف په فتحه او د ذال په سكون سره ، دروغو ته وائی .

## ١١٨ = بَاب رَفْعِ الْبَصَرِ إِلَى السَّمَاءِ

وَقَوْلِهِ تَعَالَى أَفَلَا يَنْظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ [الغاشية:١٨٫١٧] وَقَالَ أَيُّوبُ عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ [ر:٣٨٦]

[٥٨٦٠] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَقُولُ أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ثُمَّ فَتَرَ عَنِّي الْوَحْيُ فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِي سَمِعْتُ صَوْتًا مِنْ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِي إِلَى السَّمَاءِ فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِي جَاءَنِي بِحِرَاءٍ قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ [ر:٣]

[٥٨٦١] حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي شَرِيكٌ عَنْ كُرَيْبٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ بِتُّ فِي بَيْتِ مَيْمُونَةَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا فَلَمَّا كَانَ ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ أَوْ بَعْضُهُ قَعَدَ فَنَظَرَ إِلَى السَّمَاءِ فَقَرَأَ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ [ر:١١٧]

---

[1] ) الابواب و التراجم : ٢\١٢٠ )
[2] ) ارشاد السارى : ١٣\٢١٢ ، عمدة القارى : ٢٢\٢٢٠ )
[3] ) لامع الدرارى : ١٠\٤٤ ، الابواب و التراجم : ٢\١٢٠ )

**د ترجمة الباب مقصد** :ابن التين فرمائى چه د امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب سره مقصد د هغه ترديد دې چه كوم اسمان ته سترگې اوچتول مكروه گنړى - (١)
لكه چه امام طبرى رحمه الله د حضرت ابراهيم تيمى او د عطا سلمى نه نقل كړيدې چه څلويښتو كالو پورې هغوى اسمان ته سترگې نه وې پورته كړې دوجه د يرې دالله تعالى نه(٢)
امام بخارى رحمه الله د دې مسلك ترديد كوى ، هو د مانځه په حالت كښې آسمان ته سترگې اوچتول ممنوع دى ، په كتاب الصلاة كښې د حضرت انس مرفوع روايت تير شويدې ، چه هغې كښې دى : ما بال أقوام يرفعون أبصارهم إلى السماء ، فى صلاتهم ، فاشتد قوله فى ذلك حتى قال لينتهين عن ذلك أو لتخطفن أبصارهم (٣) په هغه خلقو څه شوېدى چه دوى په مانځه كښې اسمان ته بره گورى ، حضور د دې باره كښې سخته منع اوكړه او ارشاد ئې اوكړو چه دا خلق دې دې حركت نه منع شى گنى د دوى به نظر واخستې شى )
بهر حال دا د مونځ په حالت كښې آسمان ته د سترگو اوچتولو حكم دې ، تر كومې چه عام حالاتو كښې آسمان ته د كتلو حكم دې ، دا بغير د كراهته جائز دې ، بلكه ددې څو فوائدهم بيانيږى -
باب كښې ذكر د ايوب سختيانى تعليق امام احمد په مسند كښې او امام بخارى رحمه الله په كتاب المغازى ، باب مرض النبى ﷺ و وفاته كښې موصولاً نقل كړيدې ، هلته د روايت الفاظ دى " فرفع رأسه إلى السماء ...." (٤)
امام ابوداود رحمه الله په " سنن ابى داود " كښې يو روايت نقل كړيدې ، ديكښې دى " كان رسول الله صلى الله عليه و سلم إذا جلس يتحدث ، يكثر أن يرفع بصره إلى السماء " (٥) يعنى رسول الله ﷺ چه به كله ناست وو او خبرې به ئې كولې نو آسمان ته به ئې ډيرې سترگې اوچتولې -

## ١١٩= بَاب نَكْتِ الْعُودِ فِي الْمَاءِ وَالطِّينِ

[٥٨٦٢] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّهُ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَائِطٍ مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ وَفِي يَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُودٌ يَضْرِبُ بِهِ بَيْنَ الْمَاءِ وَالطِّينِ فَجَاءَ رَجُلٌ يَسْتَفْتِحُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَذَهَبْتُ فَإِذَا أَبُو بَكْرٍ فَفَتَحْتُ لَهُ وَبَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ آخَرُ فَقَالَ افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَإِذَا عُمَرُ فَفَتَحْتُ لَهُ وَبَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ آخَرُ وَكَانَ

---

(١) فتح البارى : ١٠ \ ٧٢٨ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٢٠ )
(٢) فتح البارى : ١٠ \ ٧٢٨ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٢٠ )
(٣) صحيح البخارى : باب رفع البصر إلى السماء فى الصلوة " : ١٦٦ ( رقم الحديث : ٧٥٠ )......
(٤) فتح البارى : ١٠ \ ٧٢٨ ، عمدة القارى : ٢٢ \ ٢٢١ ، ارشاد السارى : ١٣ \ ٢١٤ )
(٥) الحديث أخرجه أبوداود فى كتاب الأدب ، باب الهدى فى الكلام : ٢ \ ٣٠٩ )

مُتَّكِئًا فَجَلَسَ فَقَالَ افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ أَوْ تَكُونُ فَذَهَبْتُ فَإِذَا عُثْمَانُ فَقُمْتُ فَفَتَحْتُ لَهُ وَبَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي قَالَ قَالَ اللَّهُ الْمُسْتَعَانُ [ر:٣٤٧١]

د حضرت ابوموسی اشعری ﷺ نه روايت دې چه دې د مديني منورې په يو باغ کښې د رسول الله ﷺ سره وو ، د دوی په لاس کښې يو لرګې ( چوکه ) وو ، چه دا دوی په مينځ د اوبو او د خاوره کښې وهلو ، يو سړې راغلو او د باغ د دراوزې د خلاصولو ئې اوويلې نو رسول الله ﷺ اوفرمائل : دروازه ورته خلاصه کړه او ده ته د جنت زيرې ورکړه ، نو څه چه دروازې ته ورغلم نو اومې کتل چه حضرت ابوبکر صديق دې ، ما دوی ته دروازه خلاصه کړه او د جنت زيرې مې ورته ورکړو ، بيا بل يو کس د دروازې خلاصولو اوويلې : نو حضور ﷺ اوفرمائل : دروازه ورته خلاصه کړه او ده ته د جنت زيرې ورکړه ، څه چه ورغلم نو اومې کتل چه حضرت عمر دې ، ما دوی ته دروازه خلاصه کړه او د جنت زيرې مې ورته ورکړو ، بيا يو بل سړی د دروازې خلاصولو اوويلې دغه وخت دوی ﷺ ډډه وهلې وه نو دوی کښيناستل : نو دوی ﷺ اوفرمائل : دروازه ورته خلاصه کړه او ده ته د جنت زيرې ورکړه په هغه مصيبت چه ده ته به ملاويږی ، نو چه څه لاړم نو دې حضرت عثمان وو ، ما دوی ته دروازه خلاصه کړه او د جنت زيرې مې ورته ورکړو او حضور ﷺ چه کومه خبره کړې وه ، هغه مې ورته اوخودله نو دوی اوويل : الله المستعان ( الله مددګار دې ) -

**د ترجمة الباب مقصد** : د يو سړې په لاس کښې ډير کرته يو همسا يا څه لرګې يا څه ډکې وی او دې سره دې زمکه ګروی يا په زمکه ئې رو رو وهی ، دا عموماً هله کيږی چه کله انسان په ډير ډوب سوچ کښې وی نو په بې خيالئ کښې ئې د لاسونو دا حرکت په خپله جاری وی - د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه داسې حرکت بې د څه کراهته جائز دې او دا په لهو او عبث کښې داخل نه دې - ([1])

شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رحمه الله فرمائلې دی چه امام بخاری رحمه الله دا ترجمة الباب د دې عمل د عدم جواز د وهم لرې کولو دپاره قائم کړيدې چه کوم په ترمذی او په ابن ماجه کښې د حضرت عقبه بن عامر د يو مرفوع حديث نه پيدا کيږی ، د هغې الفاظ دی " كل شيء يلهو به الرجل باطل إلا رميه بقوسه ، وتأديبه فرسه ، وملاعبته إمرأته ، فإنهن من الحق ..... ([2]) يعنی سړې چه د کوم څيز سره هم لوبې کوی باطل دې ماسو دا غشې ويشتلو نه او آس جوتې کولو نه او د خپلې ښځې سره د لوبې کولو نه ، دا جائز دی -

مولانا انورشاه کشميری رحمه الله په " فيض الباری " کښې فرمائی چه رسول الله ﷺ داسې کړيدی نو دا د وقار او د متانت خلاف نه ده - ([3]) دينه د امام بخاری رحمه الله يو بل مقصد ته هم اشاره اوشوه چه دا عمل د وقار او د ادب خلاف نه دې -

د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضحه دې ديکښې دی و فی يد النبی ﷺ عود

---

[1]) فتح الباری : ١٠ \ ٧٢٩ ، الابواب و التراجم : ٢ \ ١٢٠ )

[2]) الابواب و التراجم : ٢ \ ١٢٠ )

[3]) فيض الباری : ٤ \ ٤٠٢ )

يضرب به بين الماء و الطين ..... دا حديث په كتاب المناقب ، باب مناقب عمربن الخطاب رضي الله عنه كښې تير شويدې -

## ١٢٠=بَاب الرَّجُلِ يَنْكُتُ الشَّيْءَ بِيَدِهِ فِي الْأَرْضِ

[٥٨٦٣] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ وَمَنْصُورٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنَازَةٍ فَجَعَلَ يَنْكُتُ الْأَرْضَ بِعُودٍ فَقَالَ لَيْسَ مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا وَقَدْ فُرِغَ مِنْ مَقْعَدِهِ مِنْ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَقَالُوا أَفَلَا نَتَّكِلُ قَالَ اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى الْآيَةَ [ر:١٢٩٦]

دينه وړاندې باب كښې د " ينكت العود.... " ذكر دې دينه مراد همسا ده او دې باب كښې ئې " الشيء " اوويلې نو دې سره ډكې وغيره ته اشاره كوي او مطلب دا دې چه كه په لاس كښې لرګې وى او خبرې كوې يا سوچ كوې او دا په زمكه وهې يا ډكې وى اودې سره زمكه ګرولې شى نو دا ټول جائز دى - (١)

مولانا زكريا رحمه الله فرمائى چه د امام مقصد دينه د غور او د فكر كولو تاكيد سره سره توجه وركول مقصود دى ځكه چه داسې عمل د غور وفكر په وخت كيږى ، قرآن كريم په څو آيتونو كښې هم ئې ( لعلكم تفكرون ) اوويل او د غور اوفكر ترغيب ئې وركړو لكه چه حضرت ليكى : " قلت : ولعل التبويب بهذه الترجمة مع أن معناه قد تقدم فى باب السابق إشارة منه إلى مزيد الإهتمام فى أمر التفكر و التدبر ، و إلا فأصل النكت قد ثبت جوازه فى الباب السابق و قد ورد الحث و التحريض فى عدة آيات من القرآن فى الأمر بالتفكر بقوله : (لعلكم تتفكرون) فتأمل ، فإنه لطيف " (٢)

حديث د باب كتاب التفسير كښې د سورة الليل په تفسير كښې تير شويدې ، ديكښې دى فجعل ينكث الأرض بعود

**قوله: فكلٌّ ميسّرٌ:** مولانا انور شاه كشميرى رحمه الله د دې په تشريح كښې ليكى :

" أى لستم فى مكنة من فعل شيء ، وتركه من عند أنفسكم وإنما هو أمر مقدر ، فتفعلون وتتركون ما قدر لكم ، و ذلك يكون ميسرا لكم ، فلا يأتى منكم خلافه ، فالاتكال وترك الجهد فى الأعمال عبث " (٣)

د دې حاصل دا دې چه د يو كار پريخودل يا د يو كار كولو د انسان دپاره د مخكښې نه مقرر او مقدر وى ، دې چه څه هم كوى يا څه هم پريږدى دا د تقدير مطابق ده دپاره ميسر كيږى ، دې وجه نه اعمالو كښې دننه په تقدير توكل كول او محنت پريخودل دا عبث دى ، ځكه چه تقدير كښې څه ليكلې شويدى هغه خو به خامخا كوې -

---

١) ارشاد السارى : ١٣\٢١٧ ، و الابواب و التراجم : ٢\١٢٠ )

٢) الابواب و التراجم : ٢\١٢٠ )

٣) فيض البارى : ٤\٤٠٢ )

## ١٢١=بَاب التَّكْبِيرِ وَالتَّسْبِيحِ عِنْدَ التَّعَجُّبِ

[٥٨٦٤] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَتْنِي هِنْدُ بِنْتُ الْحَارِثِ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَتْ اسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ مَاذَا أُنْزِلَ مِنْ الْخَزَائِنِ وَمَاذَا أُنْزِلَ مِنْ الْفِتَنِ مَنْ يُوقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجَرِ يُرِيدُ بِهِ أَزْوَاجَهُ حَتَّى يُصَلِّينَ رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الْآخِرَةِ [ر:١١٥]

وَقَالَ ابْنُ أَبِي ثَوْرٍ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عُمَرَ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَّقْتَ نِسَاءَكَ قَالَ لَا قُلْتُ اللَّهُ أَكْبَرُ [ر:٨٩]

حضرت ام سلمه فرمائي چه رسول الله ﷺ د خوبه رابيدار شو نو وې فرمائل : سبحان الله ! څه څه خزانې او څه څه فتنې نازلې شوې ، څوك شته چه د دې كوټو زنانه ( ازواج مطهرات ) راويښې كړى ، دې دپاره چه مونځ اوكړى ، دنيا كښې به ډيرې جامې اغوستونكې ښځې ( د ناقص لباس په وجه ) په آخرت كښې به بربنډې وى -

[٥٨٦٥] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ الزُّهْرِيِّ ح وحَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي أَخِي عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ عَنْ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا جَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزُورُهُ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي الْعَشْرِ الْغَوَابِرِ مِنْ رَمَضَانَ فَتَحَدَّثَتْ عِنْدَهُ سَاعَةً مِنْ الْعِشَاءِ ثُمَّ قَامَتْ تَنْقَلِبُ فَقَامَ مَعَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْلِبُهَا حَتَّى إِذَا بَلَغَتْ بَابَ الْمَسْجِدِ الَّذِي عِنْدَ مَسْكَنِ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِمَا رَجُلَانِ مِنْ الْأَنْصَارِ فَسَلَّمَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَفَذَا فَقَالَ لَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رِسْلِكُمَا إِنَّمَا هِيَ صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ قَالَا سُبْحَانَ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَبُرَ عَلَيْهِمَا مَا قَالَ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنْ ابْنِ آدَمَ مَبْلَغَ الدَّمِ وَإِنِّي خَشِيتُ أَنْ يَقْذِفَ فِي قُلُوبِكُمَا [ر:١٩٣٠]

ام المؤمنين حضرت صفيه بنت حي نه روايت دې چه دا د رسول الله ﷺ ملاقات دپاره راغله ، دغه وخت دوى په جمات كښې د رمضان د آخرى عشرې د اعتكاف دپاره ناست وو - دوى سره د عشاء څه خبرې اوشوې ، بيا د واپس تللو دپاره اودريدله ، نو نبى كريم ﷺ دا كور ته رسولو دپاره اودريدو ، تر دې چه كله دې د جمات هغه دروازې ته اورسيدو چه كومه د ام سلمه د كور سره نزدې وه ، نو يو دوه انصار دوى سره په خواه كښې تير شو او دوى دوارو رسول الله ﷺ ته سلام اوكړو ، بيا په تيزئ سره وړاندې شو ، رسول الله ﷺ دې دوارو ته اوفرمائل : لږ اودريږئ ، دا صفيه بنت حي ده ( څوك پردئ ښځه نه ده ) ، دې دوارو اوويل : سبحان الله اے د الله رسوله : دا وضاحت كول دوى ته ډير سخت اولګيدلو ، نو حضور ﷺ اوفرمائل : شيطان د اولاد د آدم په رګونو كښې په شان د وينې ګرځي ، دې

وجه نه ما ته يره اوشوه چه اسې نه شيطانه د ستاسو په زړه كښې وسوسه وانه چوی -
باب كښې د ابن ابی ثور تعليق په كتاب العلم باب التناوب فى العلم كښې موصولاً تير شويدې ، د ابن ابی ثور نوم عيدالله بن عبدالله دې - العشر الغوابر : المراد بها هنا البواقى يعنى د رمضان آخرى عشره ! (1)

تنقلب : أی تنصرف إلى بيتها -يقلبها : جمله حاليه ده ، أی يصرفها إلى بيتها -ثم نفذا : والى ، رجل نافذ فى أمره أی ماض و المعنى نفذا مسرعين يعنى دواړه په تيزئ سره تير شو - على رسلكما : يعنى اودريږئ ..... يقذف فى قلوبكما أی يقذف الشيطان شيئًا فى قلوبكما - (2) يعنى شيطان به د ستاسو زړونو كښې وسوسه واچوی -

**د ترجمة الباب مقصد :** د تعجب په وخت " الله اكبر " او سبحان الله " ويل حديث سره ثابت دې د الله په بركتى نوم باندې مشتمل داسې جملو سره چه ژبه تازه وی ، بعض خلق دا ممنوع گرځوی او وائی چه د الله ذكر د خپلو عامو خبرو داسې حصه نه دی جوړول پكار ، ځكه چه دا د آدب د ذكر خلاف دی ، امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره د دوی ترديد كړيدې ، حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن بطال په حواله سره ليكی :

" التسبيح و التكبير معناه تعظيم الله و تنزيهه من السؤ ، و استعمال لك عند التعجب ، و استعمال الأمر حسن ، وفيه تمرين اللسان على ذكر الله تعالى ، وهذا توجيه جيد ، كأن البخاری رمزا إلى الرد على من منع ذلك " (3)

مولانا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله فرمائي چه دينه د هغه خلقو د مسلك ترديد باندې استدلال كيږی چه كوم وائی چه يو سړی بل ته اوويل : " خوراك اوكړه " او ده جواب كښې اوويل : اذكروا باسم الله د الله نوم واخله نو دې كافر شو - (4)

دحديث د باب نه ددې غلط كيدل ثابتيږی چه د الله نوم او ذكر په كلام الناس كښې داسې استعماليدې ، لكه چه حضرت ليكی

" فيه دلالة على رد ما قال بعضهم إن من قال للآخر : كُل ، فقال الذكروا باسم الله كفر ، وجه الرد ظاهر ، فإن الحديث وضع اسم الله موضع كلام الناس ، كمافی مسألة "بسم الله " فافهم " (5)

...

(1) فتح البارى : ۱۰ \ ۷۳۱ ،عمدة القارى : ۲۲ \ ۲۲٤ )
(2) عمدة القارى : ۲۲ \ ۲۲٤ )
(3) فتح البارى : ۱۰ \ ۷۳۱ ، شرح صحيح البخاری لابن بطال : ۹ \ ۳٦٤ )
(4) لامع الدرارى : ۱۰ \ ٤٥ ، ٤٦ ) ايضاً تعليقات لامع الدرارى : ۱۰ \ ٤٥ ، ٤٦ )_
(5) لامع الدرارى : ۱۰ \ ٤٥ ، ٤٦ )

## ۱۲۲=بَاب النَّهيِ عَنْ الْخَذْفِ

[۵۸۶۶] حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ صُهْبَانَ الْأَزْدِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ الْمُزَنِيِّ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْخَذْفِ وَقَالَ إِنَّهُ لَا يَقْتُلُ الصَّيْدَ وَلَا يَنْكَأُ الْعَدُوَّ وَإِنَّهُ يَفْقَأُ الْعَيْنَ وَيَكْسِرُ السِّنَّ [ر: ۵۱۶۲]

**خذف** ( د خاء په فتحه او د ذال په سکون سره ) په ګوتو سره کانړو ويشتلو ته وائی ، ابن بطال فرمائی : چه د متې ګوتې او د مسواکې ګوتې سره کانړی ګزارولو ته خذف وائی (۱) رسول الله ﷺ دينه منع کړيده او فرمائی چه دې سره نه ښکار ويشتې کيدې شی او نه دښمن زخمی يا قتل کيدې شی ، خو دې سره سترګه اوخې يا غاښ ماتيږی -

مقصد دا دې چه د دښمن څه نقصان په دې نه شی کيدې ، خو د خوا کښې ناستو خلقو نقصان کيدې شی ، چه د چا سترګه پرې اولګی يا ئې پرې غاښ اولګی نو سترګه به ئې زخمی او غاښ به ئې مات شی -

**قوله: لاينكأ العدو:** د دا نکاية نه دې ، نکاية د دښمن قتل کولو او زخمی کولو ته وائی (۲)

## ۱۲۳=بَاب الْحَمْدِ لِلْعَاطِسِ

[۵۸۶۷] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَلَمْ يُشَمِّتْ الْآخَرَ فَقِيلَ لَهُ فَقَالَ هَذَا حَمِدَ اللَّهَ وَهَذَا لَمْ يَحْمَدْ اللَّهَ [ر: ۵۸۷۱]

دې باب کښې امام بخاری رحمه الله د پرنجي کوونکي دپاره " الحمد لله " ويلو مشروعيت او د دې استحباب بيان کړيدې ، د پرنجی په وجه دماغ خلاصيږی ، او طبيعت کښې ئې تازګی پيدا کيږی - (۴) بعضې وائی چه په پرنجي کولو سره د دماغو بعض بيماري ختميږی دې وجه نه ده لره پۀ طور د شکر " الحمد لله " ويل مسنون او مستحب دی ، امام نووی

---

۱) ۷۲ شرح ابن بطال : ۹\۳۶۴ )

۲) عمدة القاری : ۲۲\۲۲۴ )

۳) ۵۸۶۷ ) الحديث أخرجه البخاری ايضا فی كتاب الأدب ، باب لا يشمت العاطس إذا لم يحمد الله ( رقم لحديث : ۵۸۷۱ ) و أخرجه مسلم فی كتاب الزهد و الرقائق ، باب تشميت العاطس و كراهة التثاؤب : ۴\۲۲۹۲ ( رقم الحديث : ۲۹۹۱ ) و أخرجه أبوداود فی كتاب الأدب ، باب من يعطس و لا يحمدالله : ۱۴\۳۰۹ ( رقم الحديث : ۵۰۳۹ ) و أخرجه الترمذی فی كتاب الأدب ، باب ما جاء فی إيجاب التشميت بحمد العاطس ۱۵\۸۴ ( رقم الحديث : ۲۷۴۲ ) و أخرجه النسائی فی كتاب عمل اليوم و الليلة ، باب ما يقول إذا عطس : ۶\۶۴ (رقم الحديث : ۱۰۰۵۰ ) و أخرجه ابن ماجه فی كتاب الأدب ،باب تشميت العاطس : ۱۲\۱۲۲۳ ( رقم الحديث : ۳۷۱۳ )

۴) ارشاد الساری : ۱۳\۲۱۹ )

رحمه الله د دې په استحباب اجماع نقل کړېده (١)

**د پرنجې نه پس څومره الفاظ ویل پکار دی** : اوس دا خبره پاتې کېږی چه څومره الفاظ ویل پکار دی ، دیکښې روایتونه مختلف دی :

① شارح بخاری ابن بطال د یو جُماعت نه نقل کړیدې چه صرف " الحمد لله " ویل پکار دی ، او په دې څه اضافه نه دی کول پکار (٢) د دوه بابونو نه پس د حضرت ابوهریره روایت راځی دیکښې صرف د " الحمد لله " ذکر دې

② امام ترمذی رحمه الله د حضرت ابو ایوب ﷺ نه مرفوع حدیث نقل کړیدې چه هغې کښې دی " إذا عطس أحدكم، فليقل : الحمد لله على كل حال " (٣)

امام ابوداود رحمه الله په سنن کښې د حضرت ابوهریره ﷺ نه هم ددې مفهوم یو روایت نقل کړیدې -(٤)

③ امام بخاری رحمه الله په " الادب المفرد " کښې د حضرت ابن عباس نه یو روایت نقل کړیدې دینه معلومیږی چه " الحمد لله رب العالمین " ویل زیات بهتر دی ، د روایت الفاظ دی ...إذا عطس الرجل، فقال : الحمد لله، قال الملك : رب العالمين، فإن قال : رب العالمين، قال الملك : يرحمك الله (٥) یعنی چه کله سړې د پرنجی نه پس الحمد لله اووایی نو یو فرشته ورسره د رب العالمین " اضافه اوکړی او چه دې الحمد لله رب العالمین اووائی نو فرشته " یرحمك الله " اووائی او د پرنجی کوونکی دپاره د رحمت دعا اوکړی -

④ امام بخاری رحمه الله په " الادب المفرد " کښې او طبرانی په معجم کښې د حضرت علی نه یو روایت نقل کړیدې ، دیکښې ئې دواړه جمع کړیدی ، دیکښې دی " من قال عند عطسة سمعها : الحمد لله رب العالمين على كل حال، ما كان لم يجد وجع الضرس ولا الأذن أبدا " (٦)

یعنی چه چا د پرنجی نه پس " الحمد لله رب العالمين على كل حال " اوویلې نو د ده داړې او د غوږ درد به پاتې نه شی -

دا حدیث اګرچه موقوف دې خو ددې رجال ثقه دی (٧)

او د غیر مدرك بالقیاس امورو کښې حدیث موقوف هم د مرفوع په درجه کښې وی ، د

---

(١) شرح النووی علی صحیح مسلم کتاب الزهد ، باب تشمیت العاطس: ٢\٤١٣ ، فتح الباری : ١٠\٧٣٢)

(٢) شرح ابن بطال : ٩\٣٦٨)

(٣) الحدیث أخرجه الترمذی فی أبواب الآداب ، باب ما جاء كيف تشمیت العاطس : ٥\٨٣ ( رقم الحدیث : ٢٦٤١ )

(٤) الحدیث أخرجه أبوداود فی كتاب الأدب ، باب ما كيف تشمیت العاطس : ٢\٣٣٠)

(٥) الأدب المفرد مع فضل الله الصمد : ٢\٣٧٦)

(٦) الأدب المفرد مع فضل الله الصمد : ٢\٣٨٣ ، فتح الباری : ١٠\٧٣٢ )

(٧) فتح الباری : ١٠\٧٣٢ )

اصول عالمانو ددې قاعدې تصريح کړيده - (١)

⑤ امام طبری رحمه الله د حضرت ام سلمه ﷞ نه يو روايت نقل کړيدې ، هغه فرمائی :

" عطس رجل عند النبی صلی الله عليه و سلم ، فقال : الحمد لله ، فقال النبی صلی الله عليه و سلم : يرحمك الله ، و عطس آخر ، فقال : الحمد لله رب العالمين حمدا طيبا كثيرا مباركا فيه ، فقال : ارتفع هذا على هذا تسع عشرة درجة " (٢)

د دې مفهوم يو روايت امام ترمذی رحمه الله د حضرت رفاعه بن رافع نه هم نقل کړيدې ، هغه فرمائی : " صليت مع النبی صلی الله عليه و سلم فعطست ، فقلت : الحمد لله حمدا طيبا مباركا فيه ، مباركا عليه كما يحب ربنا ويرضى ، فلما انصرف ، قال : مَن المتكلم ؟ ثلاثا ، فقلت : أنا ، فقال : والذی نفس بيده لقد ابتدرها بضعة وثلاثون ملكا أيهم يصعد بها " (٣)

حضرت رفاعه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ سره مونځ اوکړو ، ما ته د مانځه دوران کښې پرنجې راغلو نو ما دا الفاظ اوويل : الحمد لله حمدا طيبا مباركا فيه ، مباركا عليه كما يحب ربنا و يرضى " حضور ﷺ چه کله د مانځه نه فارغه شو نو درې ځله ئې تپوس اوکړو چه دا الفاظ چا اوويل ؟ ما ورته اوويل : ما ، نو حضور اوفرمائل " قسم مې دې وی په الله باندې چه د ديرشو نه زياتې فرشتې د دې اسمان ته اوړو دپاره د يو بل نه وړاندې کيږی " - ددې مفهوم يو روايت امام بخاری رحمه الله هم ذکر کړيدې ، خو ديکښې د " عطاس " ذکر نشته دې ، بلکه د امام د سمع الله لمن حمده ويلو نه پس د ربنا لك الحمد .... ذکر دې (٤)

⑥ ابن السنی د حضرت ابورافع نه يو روايت نقل کړيدې ، چه رسول الله ﷺ فرمائی :

" أتانی جبريل ، فقال : إذا أنت عطست ، فقل : الحمد لله لكرمه ، الحمد لله لعز جلاله ، فمن الله عزو جل يقول : صدق عبدی ثلاثا مغفوراله " (٥) يعنی ما ته جبرائيل ﷺ راغلو او وې ويل : چه کله تا ته پرنجی راشی نو دا الفاظ وايه " الحمد لله لكرمه ، الحمد لله لعز جلاله " الله تعالى ددې په جواب کښې درې ځله اوويل : " ځما بنده رښتيا اوويلې " داسې حالت کښې چه دده مغفرت به اوکړې شی -

**د پرنجې نه پس د حمد سره د درود او د سلام د اضافې حکم :** د حمد نه علاوه د درود او د سلام ديکښې اضافه کيدې شی او که نه ؟ دې سلسله کښې بيهقی په " شعب الايمان " کښې دضحاك بن قيس يکشری په طريق سره يو روايت رانقل کړيدې - ديکښې دی : عطس رجل عند ابن عمر ، فقال : الحمد لله رب العالمين ، فقال ابن عمر : لوتممتها : و السلام على رسول الله (٦)

---

(١) ظفر الأمانی : ٣٢١ ، شرح نخبة الفكر للإمام ملا على القاری :٥٤٦ ، ٥٤٧)

(٢) فتح الباری : ١٠ \ ٧٣٣)

(٣) الحديث أخرجه الترمذی فی ابواب الصلوة باب ما جاء فی الرجل يعطس فی الصلوة: ١|٩١)

(٤) الحديث أخرجه البخاری فی كتاب الأذان،باب بلاترجمة،بعدباب فضل اللهم ربنا ولك الحمد:١\ ١٠٩)

(٥) فتح الباری : ١٠ \٧٣٣)

(٦) شعب الايمان للبيهقی ، باب فی تشميت العاطس ، فصل فی تشميت العاطس...[بقيه برصفحه آئنده....

دې روایت نه معلومیږی چه د حمد سره د سلام هم اضافه کیدې شی ، خو د حضرت ابن عمر ﷺ نه امام ترمذی رحمه الله ددې معارض یو روایت رانقل کړیدې چه هغې کښې دی:

"إن رجلاً عطس إلى جنب ابن عمر، فقال: الحمد لله والسلام على رسول له، قال ابن عمر: وأنا أقول: الحمد لله والسلام على رسول الله، ليس هكذا علمنا رسول الله صلى الله عليه وسلم، علمنا أن نقول الحمد لله على كل حال......" (1)

یعنی یو سړی د حضرت ابن عمر سره پرنجی اوکړو نو ده اوویل : الحمد لله والسلام علی رسول الله " حضرت ابن عمر اوویل : خه هم وائم " الحمد لله و السلام علی رسول الله خو رسول الله ﷺ په دې موقع مونږ ته دا کلمات نه دی خودلې ، بلکه دوی مونږ ته خودلې دی چه مونږ دا الفاظ اووایو : الحمد لله على كل حال " -

امام ترمذی رحمه الله فرمائی .... هذا حديث غريب لا نعرفه إلا من حديث زياد بن الربيع" (2) د زیاد بن ربیع په باره کښې حافظ ابن حجر فرمائی : صدوق (3) ابن عدی فرمائی : أرى بروايته بأسا (4) امام بیهقی رحمه الله ړومبې روایت ته ترجیح ورکړیده - (5)

ددې تمامو روایتونو حاصل دا دی چه د پرنجی نه پس " الحمد لله " هم ویلې شي " الحمد لله رب العالمین " هم ویلې شی او الحمد لله علی کل حال هم ویلې شي -

د باب روایت دلته امام بخاری رحمه الله په ړومبی ځل ذکر کړیدې

**قوله: عطس رجلان عند النبي صلى الله عليه وسلم:** عطس د باب د ضرب او د نصر دواړو نه راځی ، دوه سړو د رسول الله ﷺ په مجلس کښې پرنجی اوکړو ، د معجم طبرانی په روایت کښې دی چه دوی کښې یو عامر بن الطفیل وو او دویم د ده وراره وو (6) عامر بن الطفیل د کفر په حالت کښې مړ شوې وو -

**قوله: فشمّت أحدهما ولم يشمت الآخر:** دوی کښې یو ته رسول الله ﷺ " یرحمك الله " اوویل او بل ته ئې اونه ویلې -

شمّت -- تشمیتًا د باب د تفعیل نه دې ، ددې معنی ده پرنجې والا ته یرحمك الله ویل - (7)

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] إذا حمد : ٧\٢٤ ( رقم الحديث : ٩٣٢٦ )

1) سنن الترمذی ، کتاب الأدب ، باب ما یقول العاطس إذا عطس : ٥\٨١ ( رقم الحدیث : ٢٧٣٨ )

2) سنن الترمذی ، کتاب الأدب ، باب ما یقول العاطس إذا عطس : ٥\٨١

3) فتح الباری : ١٠\٧٣٣ ).

4) تهذيب التهذيب : ٣| ٣٦٥. (رقم الترجمة: ٦٧٠)

5) فتح الباری : ١٠\٧٣٣ )

6) مجمع الزوائد للهيثمی ، كتاب الأدب وباب فيمن عطس فلم يحمد الله : ٨\٥٨ )

7) عمدة القاری : ٢٢\ ٢٢٨ ، قال ابن الأثير : و فی حدیث العطاس " فشمت أحدهما و لم يشمت الآخر " التشميت الشين و السين : الدعاء بالخير و البركة ، النهاية لابن الأثير : ٢\٤٩٩ )

